# اسوہ رسول اکرم

## صلی اللہ علیہ وسلم

مؤلف

حضرت عارف باللہ ڈاکٹر
محمد عبدالحی عارفی صدیقی

مکتبہ عمریہ

0301-3746018

# اسوه رسول اکرم

## صلی الله علیه وسلم

**مؤلف**

حضرت عارف بالله ډاکټر
محمد عبد الحی عارفي صدیقي

**ترجمه او خپروندوی**

عمریه کتب خانه
کاسي روډ کوټه

## کتاب پېژندنه:-

د کتاب نوم: اسوه رسول اکرم ﷺ

مؤلف محمد عبد الحی

ترجمه او خپرندوی مکتبه عمریه

د چاپ کال ۲۰۱۵م

فون نمبر 03013746018

# فهرست

# د شیخ الحدیث مولانا حافظ

# محمد زکریا کاندهلوي نظر

د اسوه رسول اکرم ﷺ د کتاب لومړی چاپ محترم شیخ الحدیث صاحب ته چي اوس په مدینه منوره کي مېشت دی وړاندي شو. ده چي تر کتنې وروسته کوم نظر څرګند کړ اقتباس يې دادی: (ليکوال)

لومړی لیک:-

ستا لومړنی لیک را ورسېد او تر دې وړاندي مي هم د څه لیکنې اراده درلوده خو په هغو ورځو کي مي طبیعت ډېر خراب وو، ستا کتاب ډېر برکتمن دی الله دي قبول کړي چي خلګو ته یې ډېره ګټه ورسېږي او تاسو ته دي الله د دواړو جهانونو ترقي درکړي. ستا کتاب مي ډېر خوښ شو مګر ما ته ډېر بې وخته را ورسېد، د حج پر مهال په مدینه منوره کي تر مازیګر وروسته د څلورو پنځو سوو کسانو مجلس وي، کله چي وخت تېرېده او د هندوستان و پاکستان الوتکو پروازونه کول انسانان کمېدل. که وړاندي را رسېدلی وای نو نور به هم پرې خبر شوي ول خو زه په هغو ورځو کي ډېر وخت ناروغ وم، د ډېري ناروغۍ او خپګان په حالت کي مي کتاب واورېد، د اورېدو پر مهال چي مي کوم ځای شک شو هلته مي پر حاشیه په نښه کړ. ممکن ځیني شیان له اورېدو پاتي شوي وي.

محمد زکریا

مدینه منوره / ۱۹۷۵، می، ۲۲

# د عارف بالله ډاکټر محمد عبد الحی نور الله مرقده لنډ ژوند لیک

محترم ډاکټر عبد الحی د الهي دربار له ځانګړو کسانو څخه وو، د هغه شخصیت پېژندنې ته اړتیا نه لري ځکه د کوچنۍ وچې هره سیمه د ده د علمي، روحاني او تصنیفي کارنامو له برکتونو ډکه ده او په ځانګړي ډول پاکستان ته د ده باطني تعلیماتو او تزکیې ګټه رسولې ده.

محترم ډاکټر صیب د کدوره ولایت جهانسي ولسوالۍ په یوه ډېره علمي او مذهبي کورنۍ کې د (۱۳۱۸هـ) محرم الحرام پر اتمه د سې شنبې په ورځ چې د (۱۸۹۸) له جون سره سمون خوري سهار مهال وزېږېد. د ده پلار مولوي علي عباس د شاه ابو الخیر مجددي دهلوي د ځانګړي خلیفه مولوي کاظم حسین زوی وو او په کانپور کې د اټاوه د استوګن منشي نادر حسین د ځانګړي مرید او مشهور بزرګ حضرت شاه غلام رسول د نېکي لور لمسی وو.

په ماشومتوب کې یې خپل نېکه مولانا کاظم حسین روزنه وکړه، د (۱۹۰۴م) پر مهال یې پر قرآن کریم سربېره د عربي، فارسي او صرفو د کتابونو لوست پیل کړ. د (۱۹۰۸م) پر مهال یې د انګلش ښوونځي په درېیمه درجه کې داخله واخیسته، په کانپور او وروسته یې عالیګړ کې زده کړې وکړې. د (۱۹۲۶م) پر مهال یې له لکهنو پوهنتون څخه د حقوقو سند ترلاسه کړ. څه موده په سهارنپور کې وکیل وو او له (۱۹۲۷م) څخه یې په

هردويي کي رسمي وکالت پيل کړ، بيا په (۱۹۳۳م) کي له هردويي څخه جونپور ته راغی او هلته يې هم وکالت پيل کړ. د (۱۹۳۵م) په ډسمبر کي يې د وکالت دنده خوشي کړه او د (۱۹۳۶م) له جنوري څخه يې د هوميوپيتيک ډاکټري کاروبار شروع کړ او په شاوخوا ټولو سيمو کي يې د الله په فضل او کرم شهرت وموند.

په (۱۹۵۰م) کي پاکستان ته ولاړ او ترمړينې څو ورځې وړاندي يې د عوامو بدني او روحاني اصلاح کوله.

په تېره نيمه پېړۍ کي چي د مشرانو صوفيانو، عاملينو او کاملينو طريقه د دين شريعت او تصوف و طريقت کوم پياوړي خدمات ترسره کړل په هغو کي مولانا اشرف علي تهانوي يو وتلی شخصيت وو چي د حاجي امداد الله مهاجر مکي مريد، خليفه او د کوچنۍ وچې وتلی ديني عالم وو. حاجي امداد الله صاحب د چشتيې صابريې له مهمو مشايخو وو او د دې مهمې روحاني لړۍ نعمت په شلمه عيسوي پېړۍ کي د ده د وتلي شخصيت په وسيله عام شو. مولانا تهانوي له ده څخه طريقت زده کړ او د مجاهدې، رياضت، کسب و سلوک په وسيله هغه مقام ته ورسېد چي د خپل وخت مشران علماء د ده په عقيدوي کړۍ کي داخل شول.

مولانا تهانوي د خپلو مشرانو د تعليماتو امين او وارث وو، زمانه بدله شوې وه، د مغربيت او ماديت تسلط وو، مګر دی د تهانه بون په خپله خانقاه کي کښېناست او د خپل باطن په نور يې رڼا خپره کړه. د نوي او زاړه ذهنيت هر ډول خلک د ده عرفاني مجلس ته ورغلل او د عرفان له منزل سره اشنا شول. په همدې ښاغليو کي ډاکټر عبد الحی هم وو چي د (۱۹۲۷م) اګست

پر شلمه د شنبې په ورځ يې د ماښام تر لمانځه وروسته د مولانا تهانوي پر لاس د حق بيعت وکړ او د خپل اخلاص، مجاهدې او رياضت په برکت يې (د وکالت د دندې تر پرېښودو وروسته) د (۱۹۳۶ م) په جنوري کي خلافت تر لاسه کړ او په مشرانو خلفاوو کي وشمېرل شو. ده ويلي: ما چي څه موندلي د حکيم الامت په وسېله مي موندلي دي.

ده ګڼ مريدان درلودل، دی په خورا پاملرنه او جديت تر نيمې پېړۍ زيات وخت د رشد وهدايت او باطني اصلاح په کار اخته وو او د عرفان و سلوک اسرار او رمزونه يې نورو ته رسول. ګڼ عوام، خواص او علماء يې مريدان شول او د ده له روحاني تعليماتو يې برکت تر لاسه کاوه.

ډاکټر صيب د رسول الله ﷺ په مينه خمار او د نبوي سنت د کاملې اتباع غوره نمونه وو، د ده د مقام او درجې اټکل له دې دوو ژړو څخه کېدای شي: په مدينه منوره کي د ده يو مخلص ليکي چي د حج د فريضې ادا کولو پر مهال يې په خوب کي زېری تر لاسه کړ چي رسول الله ﷺ وايي: ډاکټر عبد الحی زما له منل شويو کسانو څخه دی. دويم زېری دا دی چي يوه بزرګ د کشف په حالت کي وليدل چي د رسول الله ﷺ په مبارک لاس کي د يوې بادامي رنګه کتې ټوټه ده او په تور رنګ پرې ليکلي: ډاکټر عبد الحی قطب الارشاد ذالک فضل الله يؤتيه من يشاء.

د ډاکټر صاحب ژوند د ساده توب او پاکۍ يوه زړه وړونکې ګډوله وه، الله پر غوره باطن سربېره ښه ظاهر هم ورکړی وو. دی د لوړ قد، پړانيستي رنګ، ځلېدونکي تندي او روحاني عظمت څښتن وو. د طبيعت صفايي، پاکوالی او ښه مزاج يې له حرکاتو څرګند وو. محترم ډاکټر صيب ډېري

پاکې جامې کارولې چې عموما به یې ښه خوشبویي هم وربانديلګولې وه، په جامه کې یې د تصنع او تکلف نوم هم نه وو، له ساده توب سره به چې یې کومه پاکه جامه وموندله اغوستله یې او له سنت سره سم یې سپینه جامه ډېره خوښه وه. د ناستې په طریقه کې یې هم دا حالت وو چې ټول ژوند په کوم مجلس کې د تکیې په وهلو نه دی کښېنستلی، ده ته الله د تسلیم، رضا، هیلو او فنا داسې مقام ورکړی وو چې په هر ډول سختو پېښو کې به یې هم پر څېره د خپګان، غوسې او وېرې اثار نه ښکارېدل. د ده اخلاق او عادات د سنتو په ښکلي قالب کې اچول شوي ول، ډېر وخت به موسکی او خوشاله وو، پر څېره به یې موسکا وه، له هر چا سره به په ورین تندي او مینه مخ کېده، هغوی ته به یې دومره دعاوې کولې چې هغه به خوښ شو او داسې فکر به یې کاوه چې محترم ډاکټر صیب صرف له ما سره مینه لري، ډېر ځله به یې پر ژبه د الله د نعمت یاد او اللهم لک الحمد و لک الشکر الفاظ وو. د غم پر مهال به یې ورو – ورو د انا لله و انا الیه راجعون وینا وه، د خپګان او غوسې پر مهال به یې بې اختیاره تر خولې د لا اله الا الله کلمه وتله.

محترم ډاکټر صیب هره ورځ له بوختیا او ناروغۍ سره – سره په ډېره لوړه حوصله خپل معمولات تر سره کول، ما یې د لوړ همت یوه کیسه په خپله د ده له ژبې اورېدلې ده. ویې ویل: یوه شپه مې تبه وه پر ټول بدن مې درد وو، له عادت سره سم مې د شپې په وروستۍ برخه کې سترګې پرانیستې نو کمزوري دومره زیاته وه چې د پورته کېدو هیڅ ډول توان مې نه احساسوه، فکر مې وکړ چې هم کمزوري ده او هم مریضي، که دا عمل یوه شپه قضا شي څه پروا لري؟. مګر خپل نفس ته مې وویل چې لږ را پورته شه کښېنه د

حاضري وخت دی، تر یو څو دعاوو وروسته به ویده شې لمونځ مه کوه. په همدې فکر را کښېنستم، بیا مي سوچ وکړ چي کله الله دومره توان درکړ نو له تیمم سره څو رکعته وکړه، نو را کښېنستم او غسل خانې ته ولاړم، هلته په رسېدو مي وویل: تر غسل خانې په ولاړه راغلې نو لمونځ ولې په ناسته کوې؟. ژر مي تیمم وواهه، په ولاړه مي نیت وکړ او الحمدلله په لړزېدو مي خپل معمول پوره کړ. باید ووایو چي ډاکټر صاحب یوازي خپلو خادمانو ته د تعلیم ورکولو لپاره دا کیسه وکړه چي په دوی کي هم د خپلو اعمالو د پوره کولو عادت پیدا شي، الله دي موږ ته وس راکړي. آمین ثم آمین

د محترم ډاکټر صیب په هر رګ کي د خدمت کولو جذبه وه، نه دا چي بل څوک د ده چوپړ ووهي. ده به ویل: یوه لویه دنده داسي ده چي له هغه څوک ګوښه کېدای نه شي، حسد ورسره نه شي کېدای او څوک یې په لار کي خنډ نه شي جوړولای. دا د خدمت دنده ده، تاسو خادمان شئ او په هر کار کي د نورو د خدمت نیت وکړئ ټول فساد و نه له دې را زېږي چي له نورو خدمت غواړئ، خدمت کول نه فساد دی او نه شخړه دا تر ټولو لوی منصب دی ځکه زموږ رب ته د بنده عبدیت تر ټولو خوند ورکوي، سید القوم خادمهم دا منصب هم تر ټولو لوړ دی او هم تر ټولو محبوب. ده به ویل: د علم شکل په کتابونو کي موندل کېږي، حقیقت یې په عمل کي او خوند یې د دین د بزرګانو په ملګرتیا کي.

محترم ډاکټر صیب د مولانا اشرف علي تهانوي په خلیفه ګانو کي یو وتلی ځای درلود، دی د خپل شیخ حقیقي ذهنیت پېژندونکی او د هغه د لارښوونو امین وو. ټول ژوند یې د خپل شیخ د لارښوونو ترجماني کوله، د

اصلاح له بیعت او روزنې سره – سره یې د یاد وړ لیکلې پانګه هم پرېښې چې د حق زده کوونکو او د معرفت تږو ته به لار ښیي. د ده په ارزښتمنو لیکنو کې صبهای سخن، بصایر حکیم الامت، مآثر حکیم الامت، معمولات یومیه او اسوه رسول اکرم ﷺ مشهور دي. وروستي کتاب ته الله ځانګړی عامه مقبولیت ور بخښلی او بېلا بېلو ژبو ته په ژباړل کېدو په نړۍ کې خپور او په زرګونو ټوکه چاپ شوی دی.

د خپل شیخ کامله نمونه، د سنت و شریعت تابع، له باطني او روحاني پلوه بې جوړې او د چشتیه صابریه لړۍ تاریخي او روښانه ستورې تر لنډې ناروغۍ وروسته د (۱۴۰۶ هـ) رجب پر پنځلسمه د پنج شنبې په ورځ چې د (۱۹۸۶ م) مارچ له اوولسمې سره سمون خوري عیني د سهار د اذان پر مهال اذان ته په ځواب ورکولو له دې فاني نړۍ د خپل حقیقي هستوګنځای (جنت) پر لور کوچ وکړ. انا لله و انا الیه راجعون او د پاکستان د مشهورې دیني ادارې دار العلوم کورنګي کراچۍ په منوره او ډاډمنه هدیره کې له ورو مشرانو سره ښخ دی. الله دې ډاکټر صاحب ته بشپړه بخښنه وکړي او په نېل لوړ دربار کې دې نژدېکت ورکړي. آمین

د عارف بالله یو خادم

محمد عاصم ذکي عفی عنه

کراچي

۱۴۰۹ / شوال المکرم / ۲۶

# د لیکوال خبرې

الحمد لله و کفی و سلام علی عباده الذین اصطفی. اما بعد :

د حکیم الامت د دربار کشر خادم احقر او بې کاره محمد عبد الحی وايي چې د اقدس رحمة الله علیه د عامو لاربښوونو او نورو ټولو مشرانو د هدایاتو اصل هدف دا پاتي شوی چې د دین او دنیا بریا د رسول الله ﷺ د لاښوونو او د هغه د عاداتو و سننو په اتباع پورې تړلې چې یوازې د لمانځه، روژې او نورو عباداتو تر کچې نه بلکې د ژوند هرې څانګې اخلاقو، عاداتو ، ټولنې او معاملاتو ته شمول لري. د نبوي احادیثو او شمایلو په اړه چې د هرې زمانې مشایخو او محدثینو د امت لپاره څو مره کتابونه چمتو کړي د هغو ټولو لنډیز دادی چې امت د ژوند په هره څانګه کې د رسول الله ﷺ په قولي او عملي هدایاتو خبر شي او د خپل ژوند هدف يې وګرزوي.

څرنګه چې دا مهال د دواړو جهانونو د سردار محمد مصطفی ﷺ له سنتو مخ اړول ورځ تر بلې ډېرېږي او مسلمانان د خپلو دیني تعلیماتو په خوشي کولو د نورو طریقې غوره کوي ځکه نو دې خبرې ته سخته اړتیا ده چې مسلمانان بیا - بیا اسلامي لاربښوونو او د دواړو جهانونو د سردار د سنتو پر خوا دعوت شي ځکه د مسلمانانو د دنیا او اخرت هر ډول سمون او بریا د سنتو په اتباع کې نغښتي دي،

په همدې موخه مې له اوږدې مودې په زړه کې هیله درلوه چې یو داسې اسانه او لنډ کتاب ولیکل شي چې مطالعه یې عام مسلمانان د سنتو له زړه

ورونکي ژوند سره اشنا کړای شي او په وسیله یې هغوی په اساني له سنت سره د برابر ژوند بنستیزې غوښتنې معلومې کړای شي. همدا انګېزه وه چي زه یې د دې کتاب چمتو کولو ته تیار کړم.

احقر کوم عالم نه دی مګر دا صرف د الله یو لوی فضل دی چي د علماوو، متقیانو او مشایخو له برکتمن مجلس او روزنې څخه د فیض تر لاسه کولو ویاړ یې را بخښلی دی. دا د همدې بزرګانو د نظر فیض دی چي د احقر په زړه کي یې د داسي کتاب د ترتیب غوښتنه پیدا کړه چي پکي د نبي الرحمت د اسوه حسنه په اړه داسي احادیث را غونډ شي چي د انساني ژوند له هرې څانګې او هر حالت سره تړاو ولري او په رڼا کي یې د اتباع سنت صحیح مفهوم په علمي او عملي ډول ښه څرګند شي څو یې مسلمانان په وسیله وکولای شي د الحاد او بې لارۍ په دې چاپیریال او تولنه کي خپل ایمان او اسلام خوندي کړي.

له همدې کبله احقر د ځان په څېر د عامو مسلمانانو لپاره د علماء کرامو په مشوره د نبوي احادیثو او شمایلو له مستندو کتابونو څخه د رسول الله ﷺ سنت او تعلیمات غوره کړل او په اردو ژبه کي یې تر اسانه عنوانو لاندي یوه ګټوره او د باور وړ ذخیره را غونډه کړه.

احقر له خپل ضعف او نورو بوختیاوو سره اوږده موده په ډېره مینه او تلوسه د دې کار په پوره کولو بوخت وو. لله الحمد له خپل علمي توان او د فهم له وړتیا سره چي څه ترتیب شوي لوستونکو ته یې ډالۍ کوي. د الله لویه پېرزوینه ده چي دې کتاب له لیکل کېدو سره دومره مقبولیت وموند چي نژدې په یوه میاشت کي د ننه یې نسخې ختمې شوې او د مینوالو تنده و

فرمایشات باقي پاتي شول. له همدې امله پر له پسې غوښتنو ته په پام یې ژر تر ژره د دویم چاپ تابیا ونیول شوه.

په همدې ترڅ کي دا کتاب په خپله چاپي پڼه د ځینو علماوو تر نظر هم تېر شو چي ځیني خبرې یې له فقهي پلوه د سمون وړ وې نو دا چاپ د ځینو مستندو علماوو تر بیا نظر وروسته خپرېږي او یې یاد فقهي مشکلات له منځه وړل شوي دي. خو له دې سره - سره زه یو ځل بیا دا خبره تکراروم چي دا د فقهې رسمي کتاب نه دی څو له موضوع سره تړلي ټول جزیات یې کښې وي او یا د مسئلې هر اړخ ته شمول ولري. له همدې امله باید د دا ډول فقهي تفصیلاتو لپاره د باوري علماوو فتواوو ته رجوع وشي، یا مفصل فقهي کتابونه مطالعه او تر فهم وروسته عملي شي. د دې هدف لپاره زما د مشر او مرشد حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي صاحب کتاب بهشتي زیور بې جوړې دی.

همدا راز دا د علم حدیث رسمي کتاب هم نه دی چي یې کي د اصول الحدیث ټولو فني باریکیو ته پام شوی وي بلکي که له فني پلوه ځیني تېروتنې ولري ناشونې نه ده، که څه هم ما ټول مواد له هغو مستندو کتابونو را اخیستي چي نومونه یې د ماخذونو تر سرلیک لاندې راغلي دي مګر دا ټول ماخذونه له عربي څخه اردو ته شوې ژباړې دي. له همدې کبله شونې ده چي په نقل، ترتیب او انتخاب کي هغه احتیاط نه وي پاتي شوی چي د احادیثو په نقل کي اړین دی. له همدې وجې که د یوه حدیث علمي تحقیق غواړئ نو اصل ماخذ ته دي رجوع وشي. مثلا امکان لري له یو حدیث سره تشریحي زیاتونې چي باید په قوسونو کي راشي ځیني ځایونه بې قوسه

وي، البته علماوو ته تربیا - بیا ور ښودلو وروسته لله الحمد د دې اطمنان شته چي د احادیثو مرکزي مفهوم حتما تشریح شوی او له عملي پلوه داسي هیڅ خبره نه ده پاتي شوې چي مستنده نه وي.

پر دې سربېره د کتاب په ظاهري ښکلا او ترتیب کي ځیني داسي شیان پاتي وو چي د ذوق ځینو خاوندانو ته یې خوند نه ورکاوه په دې چاپ کي د هغو دلرې کولو هڅه هم شوې ده. له الله ځخه غوارم چي د احقر تر کوتاهیو په ور تېرېدو دې کتاب ته په خپل دربار کي د مقبولیت شرف ورکړي، عامو مسلمانانو ته یې ګټه ورسوي، د رسول الله ﷺ په مینه له نبوي سنتو سره د رښتني جذبې را ویښولو وسیله یې کړي او موږ ټولو ته پرې په اخلاص د عمل توفیق راکړي. آمین ثم آمین و ما ذالک علی الله بعزیز

احقر محمد عبد الحی عفی عنه

۱۹۷۵/ډسمبر/ ۲۴

# لومړی برخه، ابتدايي مضامين

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده و نصلی علی رسوله الکريم.

## خطبه

سبحنک اللهم و بحمدک و تبارک اسمک و تعالٰی جدک و لا اله غيرک. اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له. و اشهد ان محمدا عبده و رسوله. ارسله الله تعالٰی الی کافة الناس بالحق بشيرا و نذيرا و داعياً الی الله بأذنه و سراجاً منيرا و صلی الله عليه و علی آله و صحبه و سلم تسليما کثيرا کثيرا. سبحن ربک رب العزة عما يصفون و سلام علی المرسلين و الحمدلله رب العالمين. اللهم صل علی محمد و علی آل محمد کما صليت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انک حميد مجيد. اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انکم حميد مجيد. ربنا تقبل منا انک انت السميع العليم.

## پلوشې

د رسول الله ﷺ لوړ شان او نبوي کمالات په خپله د الله په څرګند کلام کې دي.

محمد حامد حمد خدا بس - خدا مدح آفرين مصطفی بس

الله ﷺ زموږ رسول احمد مجتبی محمد مصطفی ته په ټولو انبياوو او رسولانو کې يو خاص امتياز ورکړی دی. دی يې سيد الانبياء وګرځاوه او د

هغه لوړ شخصیت یې د نړۍ لپاره د یوې بېلګه ییزې نمونې په توګه را لېږلی دی. له همدې امله یې د نړۍ والو لپاره د ده پېژندنه او د کاملو صفاتو بیان هم په خپل کلام کي په پوره پاملرنه بیان او تشریح کړ.

## قرآني ایاتونه

۱) هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَكَفَى بِاللَّهِ شَهِيدًا * مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا (الفتح: ۲۸، ۲۹)

ژباړه: دی (الله) هغه دی چي خپل رسول یې د هدایت له وسایلو (قرآن) او رښتني دین (اسلام) سره را لېږلی چي پر ټولو دینونو یې غالب کړي او الله کافي شاهد دی، محمد د الله رسول دی او کومو کسانو چي د ده ملګرتیا تر لاسه کړې هغوی د کافرانو په مقابله کي سخت دي او تر خپل منځ مهربان. اې مخاطبه! ته به دوی وویني چي کله رکوع کوي، کله سجدې کوي، د الله د فضل او رضا په لټه اخته دي. (بیان القرآن)

۲) همدا رنګه یې ویلي:

لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ (آل عمران: ۱۶۴)

ژباړه: په حقیقت کي الله پر مسلمانانو هغه وخت احسان وکړ چي د دوی له جنسه یې یو داسي رسول را ولېږه چي دوی ته د الله ایاتونه اوروي او

دوی (د جهالت له افکارو او دودونو) پاکوي او دوی ته کتاب و د فهم خبرې ور ښيي. (بيان القرآن)

۳) همدا رازيې ويلي:

اَلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ يَأْمُرُهُم بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنزِلَ مَعَهُ أُولَـٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (الأعراف: ۱۵۷)

ژباړه: څوک چي د داسي امي رسول اتباع کوي چي دوی يې له ځان سره په تورات او انجيل کي ليکلی مومي (يو صفت يې دا هم دی چي) دوی ته د نېکو خبرو امر کوي او له بدو يې منعه کوي، پاک شيان ورته حلالوي او ناپاک شيان حراموي او پر دوی چي (د مخکينيو شريعتونو د سختو احکامو) کوم بوج وو هغه ترې لرې کوي نو څوک چي پر دې نبي ايمان راوړي او ملاتړيې کوي له هغه سره مرسته کوي او په هغه نور پسې کېږي چي ده راوړی، نو داسي کسان پوره نجات موندونکي دي. (بيان القرآن)

۴) د ده د خبرو په اړه يې ويلي:

وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ * إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ* (النجم: ۳، ۴)

ژباړه: او هغه له ځاني خواهشاتو خبرې نه کوي، د هغه ارشاد صرف ور لېږل کېدونکې وحې ده. (بيان القرآن)

۵) بيا يې خپلو بندګانو ته د خپل محبوب نبي خصوصيات داسي ور پېژندلي دي:

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَؤُوفٌ رَّحِيمٌ (التوبة: ۱۲۸)

ژباړه: (اې خلګو!) تاسو ته يو داسي رسول راغلی چي ستاسو له جنس (بشر) څخه دی چي ستاسو د تاوان خبري پرې ثېتېږي، ستاسو د ګټې ډېر غوښتونکی دی (دا حالت خو يې له هر چا سره دی بيا په ځانګړي ډول) پر مومنانو ډېر شفيق (او) مهربان دی.

۶) النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ (الأحزاب: ۶)

ژباړه: نبي له مومنانو سره د دوی تر ځان هم ډېر تعلق لري او د هغه مېرمنې د دوی (مومنانو) مندې دي (پر مسلمانانو د رسول الله ﷺ حق تر خپلو ځانونو هم زيات دی او د ده مطلق اطاعت او په کامله درجه تعظيم واجب دی، په دې کي احکام او معاملات راځي.) (بيان القرآن)

۷) ورپسې يې خلګو ته د خپل حق رسول او څرګند هدايت کوونکي د پيروي داسي امر کړی:

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ (الأحزاب: ۲۱)

ژباړه: ستاسو لپاره د الله د رسول (په شخصيت کي) يوه غوره نمونه وه او تل به وي. (بيان القرآن)

۸) وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا (الحشر: ۸)

ژباړه: او رسول چې تاسو ته څه درکړي واېې خلئ او د څه له اخيستلو چې يې منعه کړي ياست او (بالعموم په افعالو او احکامو کې هم دا حکم دى) تاسو منعه شئ.

۹) مَّنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ (النساء: ۸۰)

ژباړه: چا ته چې د رسول اطاعت وکړ هغه د الله اطاعت وکړ.

(بيان القرآن)

۱۰) وَمَنْ يُطِعْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا (الأحزاب: ۷۱)

ژباړه: او څوک چې د الله او د هغه د رسول پيروي وکړي نو هغه به لويې بريا ته ورسېږي. (بيان القرآن)

۱۱) د خپل محبوب نبي امتيانو ته يې دا زيرى هم ورکړى دى:

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَـٰئِكَ مَعَ الَّـذِينَ أَنْعَـمَ اللَّـهُ عَلَيْهِم مِّـنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَـٰئِكَ رَفِيقًا

(النساء: ٦۹)

ژباړه: او څوک چې د الله او رسول وينا ومني نو داسي اشخاص به هم له هغو ښاغليو سره وي چې الله پرې نعمت کړى يعني نبيان، صادقين، شهداء او صالحين او دا ښاغلي ډېر ښه ملګري دي. (بيان القرآن)

۱۲) خو په دې يې هم خبر کړي:

وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَـهُ الْهُـدَىٰ وَيَتَّبِـعْ غَيْـرَ سَـبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا (النساء: ۱۱۵)

ژباړه: او څوک چي د حق تر وضاحت وروسته د رسول مخالفت وکړي او د مسلمانانو د لارې په پرېښودو بله لار ونيسي نو دى چي څه کوي موږ به يې ور پرېږدو دوزخ ته به يې ننباسو او هغه د ورتلو بد ځاى دى. (بيان القرآن)

۱۳) وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُّهِينٌ (سورة النساء: ۱۴)

ژباړه: او څوک چي د الله او رسول وينا ونه مني او بالکل يې له اصولو ووزي هغه به اور ته ننباسي په دې ډول چي تل به پکښې وي او داسي سزا به ورکړل شي چي ذلت هم پکښې دى. (بيان القرآن)

۱۴) بيا يې په خپله د هغه په ژبه د خپل ګران رسول د رسالت د منصب او رشد و هدايت د مرتبې اعلانولو لپاره دا الفاظ ورکړل:

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ يُحْيِـي وَيُمِيتُ (الأعراف: ۱۵۸)

ژباړه: ورته ووايه اې (د نړۍ) خلکو! زه تاسو ټولو ته د هغه الله را لېږلى رسول يم چي پاچاهي يې په ټولو اسمانونو او ځمکه کي ده، له ده پرته د عبادت لايق نه شته، ژوند او مرګ دى کوي. (بيان القرآن)

۱۵) قُلْ هَـذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللّهِ عَلَى بَصِيرَةٍ أَنَاْ وَمَنِ اتَّبَعَنِي (يوسف: ۱۰۸)

ژباړه: ووايه دا زما طريقه ده زه (خلک) د الهي توحيد لور ته په داسي ډول را بولم چي زه هم دليل لرم او ملګري مي هم. (بيان القرآن)

۱۶ ) قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ (الأنعام: ۱۶۱)

ژباړه: ووایه ما ته خپل رب یوه سیده لار را ښودلې ده. (بیان القرآن)

۱۷ ) قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (آل عمران: ۳۱)

ژباړه: ووایه چي که تاسو له الله سره مینه لرئ نو زما اتباع وکړئ الله به درسره مینه وکړي، ټول ګناهونه به مو وبخښي، الله ښه بخښونکی ډېر مهربان دی. (بیان القرآن)

۱۸ ) الله خپل محبوب او حبیب په ډېر لطف او کرم سره د احترام په دې الفاظو مخاطب کړ:

يس * وَالْقُرْآنِ الْحَكِيمِ * إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ * عَلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ* (يس: ۱- ۴)

ژباړه: یس، په حکمت درلودونکي قران قسم چي بې شکه ته له رسولانو او پر نېغه لار یې. (بیان القرآن)

۱۹ ) يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا* وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا* (الأحزاب: ۴۵)

ژباړه: اې نبي! بې شکه ته مو د داسي رسول په توګه ورلېږلی یې چي د امت شاهد شې، مومنانو ته زېری ورکوې او کفار وېروې، د الله په امر بلونکی او یو روښانه څراغ یې.

۲۰ ) وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاَّ كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا (سبا: ۲۸)

ژباړه: او ستا د لیږلو هدف د ټولو انسانانو لپاره بشیر او نذیر کېدل دي.

۲۱) وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلاَّ رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ (الأنبياء: ۱۰۷)

ژباړه: او موږ ته (له داسي ګټورو مضامینو سره) د بلې هیڅ خبرې لپاره نه یې لیږلی مګر د نړۍ له خلګو (یعني مکلفینو) سره د رحمت لپاره. (بيان القرآن)

۲۲) وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ (القلم: ۴)

ژباړه: بې شکه ته د ښکو اخلاقو پر لوړه کچه یې. (بيان القرآن)

۲۳) وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ (الشرح: ۴)

ژباړه: او ستا په خاطر مو ستا ذکر لوړ کړ.

۲۴) وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى (الضحى: ۵)

ژباړه: او ژر به الله تا ته (په اخرت کي ډېر نعمتونه) درکړي نو ته به خوشاله شې.

۲۵) وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ (الحجر: ۸۷)

ژباړه: او موږ تا ته اووه ایاتونه درکړي چي په لمانځه کي مکرر ویل کېږي (مراد یې سورت الفاتحه ده) او (د عجیبو مضامینو له کبله یې ورکړه داسي بلل شوې ګواکي) قرآن عظیم یې ورکړی. (بيان القران)

۲۶) وَأَنزَلَ اللّهُ عَلَيْكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ وَكَانَ فَضْلُ اللّهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا (النساء: ۱۱۳)

ژباړه: الله پر تا کتاب او د حکمت خبرې نازلې کړې، هغه څه یې در وښودل چې ته نه پرې پوهېدې او پر تا د الله لوی فضل دی. (بیان القرآن)

۲۷) د اسلام د کڼو دښمنانو له پر له پسې او بې پایانه مخالفتونو، زورونو او جګړو سره - سره چې رسول الله ﷺ په لړ موده کې د خپل رسالت په دنده او اعلاء کلمة الحق کې کومه بې جوړې او تلپاتې بریا ومونده پر دې الله خپل محبوب خاتم النبیین او سید المرسلین ته د ځانګړې رضا او کاملې خوشالۍ امتیازي سند په ورکولو وویل:

إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ * وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا * فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا* (سورة النصر)

ژباړه: اې محمده! کله چې د الله مرسته او د مکې فتحه (له خپلو اثارو سره) را ورسېږي (یعني واقع شي او پر دې فتح مرتب کېدونکي اثار دا دي چې) ډله - ډله خلک به د اسلام دین ته پر راتلو ووینې (نو هغه وخت وپوهېږه چې په دنیا کې د اوسېدو هدف د دین پوره کول دي، هغه پوره شو د اخرت سفر نژدې دی تیاری یې وکړه)، د خپل رب حمد او تسبیح ووایه او له هغه د استغفار غوښتنه وکړه (د فضیلت خلاف چې کومې چارې ترسره شوې وي له هغو د مغفرت غوښتنه وکړه دی ډېر توبه قبلوونکی دی.

۲۸) بیا یې د خاتم المرسلین او رحمة للعالمین په وسیله د نړۍ پر مخلوق خپلې ټولې پېرزوینې او انعامات داسې اعلان کړل:

الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا (المائدة: ۳)

ژباړه: نن مي ستاسو دين درته پوره او خپل نعمت مي درباندي بشپړ کړ، ستاسو لپاره مي د اسلام دين خوښ کړ. (بيان القرآن)

۲۹) بيا يې د انسانيت پر دې ستر احسان کوونکي د خپل نژدېکت او ځانګړي محبت پېرزوينه وکړه ويې ويل:

إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا(الأحزاب: ۵۶)

ژباړه: يقينا الله او د هغه فرښتې پر نبي درود وايي نو اې مومنانو! تاسو هم پر ده درود او سلام وواياست. (بيان القرآن)

اللهم صل علی محمد و علی آل محمد کما صليت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انک حميد مجيد. اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انک حميد مجيد.

د کايناتو خالق الله تبارک و تعالی چي کله د انسانانو لپاره د شرف، انسانيت او کاملې بندګۍ د تر لاسه کولو او د خپلو ټولو احساناتو او انعامونو څخه د برخې او حصې تر لاسه کولو لپاره دا ډول خير البشر نبي د يوې نمونې په توګه را ولېږه، نو لکه څرنګه چي يې پر مومنانو د شکر او احسان لپاره پر ده د درود او سلام ويل واجب کړل همدا رنګه يې د ژوند په هره څانګه کي د هغه په اتباع او اطاعت هم مکلف کړل.

له دې الهي لارښوونو ښېخي په ډاګه شوه چي که هر څوک رسول الله ﷺ ته څومره نژدې کېږي په هغو مره اندازه به الله ته نژدې او محبوب وي ګواکي د سنتو اتباع د عبادت روح او بندګۍ حاصل دی، د بنده کوم کار چي د سنت

خلاف وي هغه په خپل ذات کي عبادت نه بلکي څرګنده ګمراهي ده.

اوس به پر دې رڼا واچوو چي د رسول الله ﷺ اتباع د امت پر افرادو په کومو چارو کي واجبه او په کومو ځايونو کي د مينې د تقاضا له مخې مستحب ده؟. د سپېڅلي سېرت دوې برخې دي: يوه يې برخه يې د هغو عقايدو او اعمالو ده چي رسول الله ﷺ د شرعي اوامرو په توګه ترسره کړي او هر سړى پرې مکلف دى. دې ته سنن هدى ويل کېږي او بله برخه يې هغه چارې دي چي د رسول الله ﷺ خصوصيت او کرامت دى. مثلاً پر له پسې روژه او نور، امت ته د دې چارو اجازه نه شته.

بله برخه يې هغه کارونه دي چي رسول الله ﷺ د شرعي مامور په توګه نه بلکي د اتفاقي عاداتو په توګه غوره کړي دي، دې ته سنن زوايد ويل کېږي. که څه هم امت په دې چارو مکلف نه دى، مګر د توان په اندازه د دې چارو پيروي هم د مينې او محبت خبره ده ځکه د محبوب هره ادا محبوبه وي. همدا وجه ده چي صحابه کرامو په دا ډول اتفاقي چارو کي هم د ده پيروي ته ډېره پاملرنه کوله او معرفت درلودونکو د ده د ترټولو وړو کي سنت پيروي د ټولي نړۍ تر شتمني ارزښتمنه بلله مګر دا پرېکړه چي کوم شيان په سنن هدى کي داخل دي او کوم په سنن زوايد کي؟، کوم حکم د عام امت لپاره دى او کوم په ده پوري مخصوص دى؟. دا زما او ستا کار نه بلکي د محترمو مجتهدينو او دين د امامانو کار دى او دې اکابرو ټول شيان په ښه ډول څرګند کړي دي.

دا هم بايد ياد ولرو چي د سنن هدى دوه اړخونه دي يو دا معلومول چي فلاني شى فرض دى که واجب؟، موکد دى او که مستحب؟ او بيا چي د هر

شي کومه مرتبه وی په هماغه مرتبه کي يې ترسره کول. دا اړخ د ډېري پاملرنې وړ دی، په ګډ - وډ يې په سنت او بدعت کي فرق را منځ ته کېږي او د دين تحريف ته لار خلاصېږي او دويم اړخ د هر عمل په اړه دا زده کول چي په اخرت کي به يو څه ثواب او يا عذاب وي. دا اړخ هم پر خپل ځای ډېر مهم دی ځکه د اعمالو ترغيب او ترهيب له همدې سره تړاو لري، له همدې کبله ضروري ده چي د کوم نېک عمل فضيلت او يا د بد عمل سزا په قرآن او نبوي احاديثو کي راغلې وي هغه بيان شي، له خپله ځانه پرې زيادت او کمبوت ناسم کار دی.

له پورتنيو يادونو سره سم د رسول الله ﷺ ټول غوره اخلاق، د اطاعت او عبادت طريقه، د خلوت او اجتماعي ژوند حالات، ټول اعمال او اقوال او د ژوند اړيکې او معاملات د هر قوم، هرې طبقې او هر فرد لپاره په هره زمانه او هر وخت کي غوره نمونه و مثال دی. له همدې کبله الله ﷻ ويلي: لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ (الأحزاب: ۲۱)

الله دي موږ ټولو مسلمانانو ته د ګران رسول د ټولو برکتمنو سننو د اتباع او د ده په سپېڅلو لاربښوونو له اخلاص او صدق سره د عمل پوره او ټينګ توفيق راکړي او د هغه په بدل کي دې د دې دنيا د ژوند او مرګ نېکي او په اخرت کي خپله پراخه او کامله رضا او د رسول الله ﷺ د ستر شفاعت دايمي دولت را نصيب کړي. آمين

اللهم ارزقنا حبک و حب نبيک و اتباع سنته و توفنا على ملته واحشرنا فی زمرته امين يا رب العالمين

# د اتباع هوډ (عزم)

انما الاعمال بالنیات (صحیح البخاري)

هر عمل پر نیت موقوف دی.

محترم شیخ محقق شاه عبد الحق محدث دهلوي وایي چي دا حدیث د دین یو ستر اصل او په ټولو احادیثو کي هر اړخیزاو ډېر ګټور دی، ځیني حضرات خو یې د دین درېیمه برخه بولي ځکه چي دین پر قول، فعل او عمل مشتمل دی او ځینو په دې وجه نیم علم ګڼلی چي اعمال دوه ډوله دي یو د زړه او بل د اندامونو. د زړه په اعمالو کي نیت تر ټولو غوره دی، پر همدې بنسټ به عمل له دې نیم علم یعني نیت سره تړلی وي بلکي په دواړو نصفونو کي بېخي ډېر.

په حقیقت کي نیت د قلبي، جسماني او ټولو عباداتو اصلي بنسټ دی، که له همدې وجې ټول علم و بلل شي نو مبالغه به نه وي. (مدارج النبوة)

د دې لیکنې اصل هدف، مقصد او اهمیت دادی چي د الله په فضل د رسول اللهﷺ د ټولو سپېڅلو عاداتو، شمایلو، عباداتو او خاصیتونو پوره ذخیره مو مخ ته پرته ده چي د انسانیت د بریا او نېکمرغی کامل نصاب هم دی او د ژوند مکمل قانون هم، د ده د سنتو لاره له هر ډول خطر څخه خوندي او له هرې نیمګړتیا پاکه ده. له همدې کبله زموږ د نېکمرغی، بریا او پوهي فطري تقاضا داده چي د ده د اسوه حسنه پیروي وکړو په هر عمل کي د ده پر نقش قدم روان شو او کله چي د الله له خوا د هغه د لارې په غوره کولو د

محبوبیت د ډالۍ ورکولو وعده هم شوې نو د رباني حکم غوښتنه همدا ده چې موږ ټول اعمال، فرایض او واجبات، اوامر او نواهي باید د رسول الله ﷺ د اطاعت په نیت عملي کړو او د مینې له مخې د ده ټول اداب، خاصیتونه او عادي سنت هم د ژوند شعار وګرزوو.

په دې کې هم باید د نبوي اتباع نیت او هوډ وي چې ان شاء الله هر عمل به مو هم مقبول او هم د الله په نزد محبوب وي. په دنیا کې به ښه ژوند ولرو او په اخرت کې به رسول الله ﷺ ته د نسبت له کبله د عمل په مېزان کې وزن ولري، نیت او اراده یو اختیاري کار دی چې هر سړی پرې مکلف شوی دی او دا ورته ډېر اسانه هم ده نو د اسوه رسول اکرم تر ویلو وړاندې په خپل هر عمل او د ژوند په هره طریقه کې د رسول الله ﷺ د اتباع نیت وکړئ ان شاء الله دا به مو د دواړو جهانونو بریا وي. والله المستعان

پسند ار سعدی که راه صفا - توان یافت جز در پی مصطفی

خلاف پیمبر کسی ره گزید - که هرگز به منزل نه خواهد

بنده عاجز

محمد عبد الحی عفی عنه

## د دواړو جهانونو بری

## او په دنیا او اخرت کې د ساتنې دعا

له ابو بکر رضی الله عنه څخه روایت دی چې له رسول الله ﷺ مې واورېدل، ویې ویل: له الله یقین او سلامتي وغواړئ ځکه له یقین څخه وروسته هیڅ ته تر سلامتیا غوره شی نه دی ورکړل شوی. په دې کې رسول الله ﷺ د دنیا او اخرت سلامتیا یو ځای کړې او حقیقت همدا دی چې په دواړو جهانونو کې د بندګانو حالات له یقین او سلامتیا پرته اصلاح کېدای نه شي. په یقین سره د اخرت سزاوې له منځه ځي او سلامتیا د زړه و بدن ناروغۍ ختموي.

نو چې سلامتیا او صحت دومره مهم دي نو موږ به په دې اړه د رسول الله ﷺ هغه سپېڅلي سنت بیان کړو چې که یې یو څوک ولولي پوه به شي چې د رسول الله ﷺ سپېڅلي سنت په مطلق ډول د ژوند کامله تګلاره ده او په دې سره زړه و بدن د دنیا و اخرت د ژوند صحت او نعمت تر لاسه کولای شي.

(زاد المعاد)

## بلغوا عنی ولو آية (حديث)

## د دعوت زېری

رسول الله ﷺ ویلي: الله دې هغه بنده تر او تازه لري چې زما خبره واوري، یاده یې کړي، ویې ساتي او نورو ته یې ورسوي. ډېر کسان د فقهي (دیني علم) درلودونکي وي خو په خپله نه پوهېږي او د دیني علم ډېر

خاوندان یې داسې خلګو ته رسوي چې تر دوی ډېر پوه وي. (جامع الترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

## دین مبین في اربعین

ژباړه: سلمان ﷺ وایي چې له رسول اللهﷺ مې پوښتنه وکړه هغه څلویښت احادیث کوم دي چې تاویلي که یې څوک یاد کړي جنت ته به ځي؟. رسول اللهﷺ وویل:

۱) پر الله ایمان.

۲) د اخرت پر ورځ.

۳) د فرشتو پر وجود.

۴) پر ټولو اسماني کتابونو.

۵) پر ټولو انبیاوو.

۶) او تر مرګ وروسته پر بیا ژوند ایمان راوړه.

۷) د خیر او شر هر تقدیر د الله له خوا دی.

۸) او دا شاهدي ورکړه چې له الله پرته هیڅ معبود نه شته او محمد د الله رښتنی رسول دی.

۹) د هر لمانځه پر مهال په کامل اوداسه لمونځ وکړه (کامل اودس دې ته وایي چې ټولو ادابو او مستحباتو ته یې پام وشي، د هر لمانځه لپاره نوی اودس مستحب دی او د لمانځه قایمولو هدف دادی چې ټول ظاهري او باطني اداب یې پر ځای شي.)

۱۰) زکات ورکړه.

۱۱) د رمضان روژې نیسه.

۱۲) که مال لرې نو حج وکړه.

۱۳) د ورځې دوولس موکد سنت کوه (تر سهار وړاندي دوه رکعته، تر ماپښین وړاندي ځلور رکعته، وروسته دوه رکعته، تر ماښام وروسته دوه رکعته او تر ماخوستن وروسته دوه رکعته.)

۱۴) هیڅ شپه وتر مه ایله کوه.

۱۵) له الله سره هیڅ شی مه شریکوه.

۱۶) د مور و پلار نافرماني مه کوه.

۱۷) په ظلم د یتیم مال مه خوره.

۱۸) شراب مه څښه.

۱۹) زنا مه کوه.

۲۰) په دروغو قسم مه اخله.

۲۱) د دروغو شاهدي مه ورکوه.

۲۲) په نفسي خواهشاتو عمل مه کوه.

۲۳) د مسلمان ورور غیبت مه کوه.

۲۴) په پاک لمنې ښځې یا نارینه تور مه لګوه.

۲۵) له خپل مسلمان ورور سره حسد مه کوه.

۲۶) په لهو و لعب مه اخته کېږه.

۲۷) له نندارچیانو سره مه یو ځای کېږه.

۲۸) د ټیټ قد خاوند ته ټیټکی مه وایه.

۲۹) په چا ملنډې مه وهه.

۳۰ ) د مسلمانانو تر منځ شیطانت مه کوه.

۳۱ ) د الهي نعمتونو شکر کاږه.

۳۲ ) پر تکلیف او غم صبر کوه.

۳۳ ) د الله له عذابه وېرېږه.

۳۴ ) له خپلوانو سره اړیکې مه شلوه.

۳۵ ) بلکې له هغوی سره خپلوي پاله.

۳۶ ) د الله پر هیڅ مخلوق لعنت مه وایه.

۳۷ ) د سبحان الله، الله اکبر او لا اله الا الله ذکر ډېر کوه.

۳۸ ) د جمعې او اخترانو حاضري مه پرېږده.

۳۹ ) او پر دې باور ولره چې تا ته کوم تکلیف او راحت رسېدلی هغه تا ته مقدر وو چې له منځه تلونکی نه وو او څه چې نه دي در رسېدلي هغه په هیڅ ډول در رسېدونکي نه وو.

۴۰ ) په هیڅ حال کې د قرآن کریم تلاوت مه پرېږده.

سلمان ﷺ وایي: ما پوښتنه وکړه چې که څوک دا یاد کړي هغه ته به یې اجر څه وي؟. رسول الله ﷺ وویل: الله به یې له انبیاء کرامو او علماوو سره را پاڅوي.

دویمه برخه

# غوره اخلاق

## سپیڅلې ځانګړتیاوې

### الهي پېژندنه، قدسي حدیث:-

په صحیح البخاري کي له عطاء څخه داسي یو حدیث روایت شوی چي رسول اللهﷺ د ډېرو اخلاقو جامع دی او په هغو کي ځیني لوړ صفات یې قرآن کریم هم یاد کړي. په حدیث قدسي کي دي:

۱) یا ایها النبی انا ارسلنک شاهدا و مبشرا و نذیرا و حرزا للامیین. اې نبي! بې شکه ته مو د خپل شاهد په توګه ور لېږلی یې، امر منونکو ته زېری ورکوونکی، له عذابه د ګمراهانو وېروونکی او د نالوستو لپاره پناه ورکوونکی یې.

۲) انت عبدی و رسولی. ته زما ځانګړی بنده او رسول یې.

۳) سمیتک المتوکل. پر تا مي د متوکل نوم ایښی دی ځکه په هره معامله کي پر ما توکل کوې.

۴) لیس بفظ و لا غلیظ. نه بد خویه او نه سخت زړی دی.

۵) و لا سخاب فی الاسواق. نه په بازارونو کي شور جوړوونکی دی.

۶) و لا یدفع السیئة بالسیئة. د بدی بدله هیڅکله په بدي نه ورکوي.

۷) و لکن یعفو و یغفر. بلکي معافي او بخښنه کوي. ګواکي رسول

الله ﷺ د دې قرآني حکم (ادفع بالتی هی احسن) يعني د بدی بدله په ډېره غوره طريقه ورکوه عملي کوونکی وو.

۸) و لا يقبضه الله حتی يقيم به الملة العوجاء. الله به يې تر هغه وخته وفات نه کړي چي د ده په وسيله بې لاري قوم پر لار نه کړي يعني ټولو هغوی د لا اله الا الله محمد رسول الله په ويلو مسلمان شوي نه وي.

۹) و يفتح به اعين عميا. الله به يې تر هغه وخته وفات نه کړي چي د کافرانو ړندې سترګې يې بنا کړې نه وي.

۱۰) و اذانا صما و قلوبا غلفا. کاڼه غوږونه او په پردو کي پټ زړونه يې خلاص کړي نه وي. په ځينو رواياتو کي دا صفات هم پرې اضافه شوي:

۱۱) اسدده بکل جميل. په هر غوره خصلت به دی روزم.

۱۲) واهب له کل خلق کريم. ده ته به هر غوره خاصيت ورکړم.

۱۳) واجعل السکينة لباسه و شعاره. زه به اطمنان د ده لباس او شعار (له بدن سره نښتې جامه) وګرزوم.

۱۴) والتقوی ضميره. پرهېزګاري به د ده زړه وټاکم.

۱۵) والحکمة معقوله. حکمت به د ده د پوهي خبره وټاکم.

۱۶) والصدق و الوفا طبيعته. رښتنولي او وفاداري به يې طبيعت وګرزوم.

۱۷) والعفو و المعروف خلقه. معافي او نېکي به يې مزاج کړم.

۱۸) والعدل سيرته و الحق شريعته والهدی امامه و الاسلام ملته.

انصاف به يې سېرت، حق به يې شريعت، هدايت به يې امام او د اسلام دين ته به يې د ملت درجه ورکړم.

۱۹) احمد اسمه. د ده نوم (لقب) به احمد وي.

۲۰) اهدی به بعض الضلالة. د ده په وسيله به بې لارې خلکو ته تر ګمراهۍ وروسته لارښوونه کوم.

۲۱) واعلم به بعض الجهالة. تر پوره جهالت وروسته به د ده په وسيله خلکو ته علم او عرفان ورکړم.

۲۲) وارفع به الخمالة. د ده په وسيله به خلک له ذلت څخه را وباسم د عروج بام ته به يې ورسوم.

۲۳) واسمی به بعد النکرة. د ده په وسيله به خپل مخلوق ته تر جهالت او د حق تر نه پېژندنې وروسته لوړتيا ورکړم.

۲۴) واکثره بعد القلة. د ده د هدايت په وسيله به د ده د پيروانو لږ شمېر ډېر کړم.

۲۵) واغنی به بعد العيلة. په لوږه او مسکنت د خلکو تر اخته کېدو وروسته به د ده په وسيله د هغوی حالت په غنا بدل کړم.

۲۶) واالف بين قلوب مختلفة واهواء مشتة وامم متفرقة. د ده په وسيله به د اختلاف کوونکو، د تيت - پرک خواهشاتو درلودونکو او ډلو - ټپلو په زړونو کې محبت پيدا کړم.

۲۷) واجعل امته خير امة اخرجت للناس. د ده امت به غوره امت وګرزوم چې د خلګو د لارښوونې لپاره را ايستل شوي. (مدارج النبوة)
صلی الله عليه وسلم وعلی آله وصحبه اجمعين.

## کامل بشريت

د سيد عالم حضور اکرم ﷺ برکتمن شخصيت د لوړو صفاتو، هر ډول ښو اخلاقو، خويونو او ښکلو صفتونو له مخې تر ټولو لوړ، وتلی او قوي دی. د دې ټولو ښېګڼو او کمالاتو احاطه او بيان د انسان تر توان او وس وتلې ده ځکه د امکان په دنيا کې چې د کومو ټولو کمالونو تصور ممکن دی رسول الله ﷺ درلودل. ټول انبياء او رسولان د ده د لوړ کمال څرګندوونکي او د ښکلو پلوشو ښودونکي دي.

فلله الحمد رب العالمين

الله د ټولو ښېګڼو څښتن دی

وصل الله عليه وعل آله قدر حسنه وجماله وکماله وبارک وسلم

### ځانګړی امتياز:-

امام نووي په خپل کتاب تهذيب کې ليکي: الله د اخلاقو او عاداتو ټولې ښېګڼې، کمالات او لوړ صفات د رسول الله ﷺ په لوړ شخصيت کې را يو ځای کړي ول. الله ده ته د مخکينيو او وروستنيو ټول هغه علوم ورکړل چې ورسره مناسب وو. په داسې حال کې چې امي وو، نه يې ليک - لوست کولای شو او نه يې په انسانانو کې څوک ښووونکی وو. له دې سره - سره الله داسې علوم ورکړل چې الله په ټولو کايناتو کې بل چا ته نه دي

ورکړي. ده ته د ځمکنیو کایناتو د خزانو کیلی ورانديې شوې خو ده تل د دنیوي وسایلو په بدل کې اخرت ته ترجیح ورکړې ده.

انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ تر هر چا په علم او حکمت ډېر پوهېده، تر ټولو عزتمن، عادل، تر هر چا زغم درلودونکی، تر ټولو پاک لمنی، خلکو ته ګټه رسوونکی او د هغوی پر زورونه تر هر چا زیات صبر کوونکی وو. (رسایل الوصول شمایل الرسول)

په بخاري و مسلم کې له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ تر ټولو خلکو ډېر ښکلی، زړور او سخي وو ځکه دی تر ټولو انسانانو غوره وو، تر هر چا یې په مزاج کې اعتدال درلود او څوک چې دا صفات ولري د هغه هر کار به د غوره کارونو نمونه وي. په ټولو خلکو کې به د ښکلي صورت څښتن وي او د هغه کردار به د لوړو اخلاقو سمبول وي.

رسول الله ﷺ د ټولو بدني او روحاني کمالاتو جامع، د ښکلا او نېک سېرت څښتن، تر هر چا مهربان، سخي او تر ټولو ډېر جود او فیض څښتن وو.

**ښکلې څېره:-**

ابو هریره ﷺ وایي: ما هیڅوک تر رسول الله ﷺ ښایسته نه دی لیدلی ګواکې په څېره کې یې لمر حرکت کوي. کله چې به یې خندل نو پر دیوالونو به یې رڼا لوېده. (مدارج النبوة د کتاب الشفا په حواله)

له هند بن ابی هاله ﷺ څخه روایت دی چې کتونکو ته د رسول الله ﷺ څېره د لوی دبدبه درلودونکې په څېر معلومېده او مخ یې داسې ځلېده لکه د څورلسم سپوږمۍ چې ځلېږي.

## د نبوی شخصیت خوشبو: –

انس ﷺ وایي چي ما هيڅ عنبر، مشک او خوشبویه شی د رسول الله ﷺ تر خوشبویي زیات خوشبو نه دی لیدلی. رسول الله ﷺ چي به کله له چا سره روغبړ کاوه نو ټوله ورځ به یې بوی تلی او چي کله به یې د یوه ماشوم پر سر لاس تېر کړ نو هغه به د خوشبو له وجې په نورو ماشومانو کي پېژندل کېده. کله چي به رسول الله ﷺ پر لار تېر شو او څوک به یې په لټه ووت نو له خوشبویي به یې معلومېده چي پر دې لار تللی دی. دا خوشبویي د عطرو له لګولو پرته د ده په مبارک بدن کي وه.

## غوره اخلاق: –

الله ﷻ د رسول الله ﷺ د غوره اخلاقو په اړه ویلي:

وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ (القلم: ۴)

بې شکه ته د سترو اخلاقو څښتن یې.

او ویلي یې دي:

وكَانَ فَضْلُ اللهِ عَلَيكَ عَظِيمًا (النساء: ۱۱۳)

پر تا د الله ډېر لوی فضل دی.

او په خپله رسول الله ویلي: بعثت لاتمم مکارم الاخلاق.

یعني زه د ښو اخلاقو پوره کولو لپاره را لېږل شوی یم.

په یوه بل روایت کي دي: لاکمل محاسن الافعال.

یعني د ښو چارو د پوره کولو لپاره را لېږل شوی یم.

له دې په ډاګه شوه چې د رسول الله ﷺ شخصیت د ټولو ښېګڼو او غوره اخلاقو جامع وو، دا ځکه چې د ده ښوونکی الله دی. له عائشې ؓ څخه روایت دی چې له دې څخه د رسول الله ﷺ د غوره اخلاقو په اړه پوښتنه وشوه نو ورته وېې ویل: کان خلقه القرآن. یعني د رسول الله ﷺ اخلاق قرآن وو.

د دې ظاهري معنا داده چې په قرآن کې کوم اخلاق او غوره صفات یاد شوي رسول الله ﷺ هغه ټول درلودل. په کتاب الشفا کې قاضي عیاض زیاتوي: او دا هم ده چې د ده خوشالي د قرآن له خوشالي او خپګان یې د قرآن له خپګان سره وو. مطلب دا چې د رسول الله ﷺ رضا د الهي امر پر ترسره کولو او خپګان یې د الهي حکم په مخالفت او ګناه کولو کې وو. په عوارف المعارف کې ویل شوي چې د عائشې ؓ مراد دا وو چې یوازې قرآن د رسول الله ﷺ اخلاقي تګلاره وه یعني د کان خلقه القرآن معنا او مطلب همدا دی.

حقیقت دادی چې د هیچا فهم او عقل د رسول الله ﷺ د مقام حقیقت او د ده د حال ستر ماهیت ته نه شي رسېدلای او له الله پرته یې هیڅوک نه شي پېژندلای، لکه د رسول الله ﷺ په خبر چې بل هیڅوک الله په حقیقي ډول نه شي پېژندلای. لا یعلم تأویله الا الله، په تاویل یې له الله پرته هیڅوک نه پوهېږي.
(مدارج النبوة د شیخ عبد الحق محدث دهلوي)

**عفوه او نرمي:-**

صبر، حوصله او عفوه د رسول الله ﷺ له سترو نبوي صفاتو دي، په حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ هیڅکله د خپلو شخصي چارو او مال دولت په لړ کې له چا غچ نه دی اخیستی، مګر چا چې به د الله حلال کړي شیان حرام کړل نو له هغه یې د الله لپاره بدله اخیستې ده او د رسول الله ﷺ تر ټولو زیات

او سخت صبر د احد په غزا کي وو چي کفاريې په جګړه مقابلې ته راغلل او ده ته يې سخت دردونه ورسول مګر ده نه يوازي صبر او عفوه وکړه بلکي د شفقت او رحمت له مخې يې هغوی د ظلم او جهل په وجه معذور وبلل او ويې ويل: اللهم اهد قومي فانهم لا يعلمون. يعني اې الله! زما قوم ته هدايت وکړه ځکه هغوی نه پوهېږي.

او په يوه بل روايت کي د اللهم اغفر لهم يعني اې الله دوی وبخښه الفاظ دي. کله چي دا خبره پر صحابه کرامو سخته شوه نو ويې ويل: اې د الله رسوله! کاش هغوی ته دي د هلاکت ښېرا کړې وای. ده وويل: زه د لعنت لپاره نه يم را لېږل شوی، بلکي د حق دعوت او جهان لپاره رحمت را لېږل شوی يم. (الشفاء مدارج النبوة)

## صبر او ثبات

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: زه د الله په لار کي دومره وويرول شوم او ګواښونه را ته وشول چي هيڅوک به دي دومره نه وي ويرول شوی او د الله په لار کي دومره وزورول شوم چي هيڅوک به دومره نه وي زورول شوی او يو ځل دېرش شپې او ورځې په داسي حال کي را باندي تېري شوې چي ما او بلال د خوراک لپاره داسي هيڅ شی نه درلود چي کوم حيوان يې وخوري، پرته له هغه څه چي بلال په خپل بغل کي پټ کړي وو.
(معارف الحديث، شمايل ترمذي)

## د طایف پېښه:-

رسول الله ﷺ د توحید د تبلیغ لپاره زید بن حارث ؓ له ځان سره کړ، پیاده طایف ته ورسېد او د هغه ځای اوسېدونکي یې اسلام ته را وبلل خو هغوی وپارېدل او ورپسې شول. د هغه ځای مشرانو د خپلې سیمې او ښار هلکان ورپسې کړل او هغوی به د وعظ پر مهال پر رسول الله ﷺ دومره ډبرې ویشتې چې وینې به ترې بهیدې، پایزار ته به یې رسېدې او د اوداسه لپاره به یې ایستل سخت وو. یو ځل اوباشانو رسول الله ﷺ ته دومره ښکنځلې وکړې، دومره لاسونه یې وټکول او نارې یې جوړې کړې چې رسول الله ﷺ د یوه سرای په انګړ کې پناه اخیستو ته مجبور شو.

یو ځل په همدې ځای کې د وعظ پر مهال رسول الله ﷺ دومره وهل وخوړل چې بې سده ولوېد، زید ؓ را په شا کړ او له ابادۍ یې را وایست او د اوبو په پاشلو پر سد راغی.

په دې سفر کې تر ستونزو او کړاوونو وروسته چې یو کس هم مسلمان نه شو د رسول الله ﷺ زړه د غم او تکلیف پر مهال د الله له عظمت او محبت ډک وو. پر دې مهال چې ده کومه دعا وکړه الفاظ یې دا دي:

اللهم الیک اشکوا ضعف قوتی و قلة حیلتی و هوانی علی الناس یا ارحم الراحمین انت رب المستضعفین و انت ربی الی من تکلنی الی بعید یتهجمنی او الی عدو ملکته، امری ان لم یکن بک علی غضب فلا ابالی و لکن عافیتک هی اوسع لی اعوذ بنور وجهک الذی اشرقت له. الظلمات و صلح علیه امر الدنیا و الاخرة من ان ینزل بی غضبک او یحل علی سخطک لک العتبی حتی ترضی لا حول و لا

قوة الا بک.

ژباړه: اې الله! زه له خپلې ناتوانۍ، بې وسۍ او د خلګو په نظر د دومره حقارت او وسایلو نه درلودلو فریاد تا ته کوم. اې ارحم الراحمینه!، اې د بې وسو مالکه ته مي رب یې، اې الله! که ته ما هغو پردیو ته سپارې چي تریو مخي وي یا هغه دښمن ته چي زما پر ښه و بدو به ولکه ولري خو چي ته خوښ یې پروا یې نه لرم ځکه ستا ساتنه او بخښنه زما لپاره ډېره پراخه ده، زه ستا د پاک ذات نور غواړم چي اسمان پرې رڼا شي، تیارې له منځه یوسي او د دنیا و اخرت کار سم شي او له تا د دې خبرې پناه غواړم چي پر ما غضب نازل کړې، یا په خپګان ستا عذاب را باندي راشي، تر هغو دي لمانځم چي ته راضي شې او ستا له مرستې و تائید پرته هیڅوک د هیڅ شي قدرت نه لري.

(طبري ۲/ ۸۱)

رسول الله ﷺ له طایف څخه په راستنېدو دا دعا هم وکړه: زه ولي دې خلګو ته د هلاکت ښېرا وکړم؟ که دوی پر الله ایمان نه لري نو امید شته چي ضرور به یې راتلونکی نسلونه پر یوه الله ایمان راوړي. (صحیح مسلم عن عائشة، کتاب رحمة اللعالمین)

## د رسول الله ﷺ عفوه او کرم:-

د مکې کفارو تر یوویشتو کالو رسول الله ﷺ او د هغه ملګري زوروړ، د ظلم او وحشت هیڅ داسي طریقه نه وه چي دوی د یوه الله پر لمانځونکو و نه ازمویله. ان هغوی د خپل کور او ټاټوبي خوشي کولو ته مجبور شول، خو کله چي مکه فتحه شوه نو د اسلام دا تر ټولو سخت دښمنان په بشپړ ډول د

رسول الله ﷺ رحم او کرم ته پاتي وو او د هغه يوې اشارې ټول له وینو او خاورو سره یو ځای کولای شو ای مګر څه وشول؟. رسول الله ﷺ د قریشو له هغو ټولو ظالمانو او جابرانو څخه چي له وېرې او پښېماتتیا یې سرونه ټیټ نیولي او د ده مخ ته ولاړ ول وپوښتل: تاسو پوهېږئ زه به څه درسره وکړم؟. هغوی په ترټرې ژبه ځواب ورکړ: اې صادقه اې امینه! ته زموږ شریف ورور او د شریف ورور زوی یې او تل مو در څخه زړه سوی لیدلی دی. رسول الله ﷺ وویل: زه نن هغه څه درته وایم چي یوسف ﷺ خپلو ورونو ته ویلي وو، رسول الله ﷺ زیاته کړه: نن پر تاسو هیڅ تور نه شته ځئ ټول ازاد یاست. (کتاب الشفا د ابن هشام)

## سالم فطرت: ـ

رسول الله ﷺ په ټولو حالاتو، اقوالو او افعالو کي له لويو ګناهونو او د محققینو په نزد له کوچنیو ګناهونو هم پاک وو. د ده لپاره په هیڅ ډول د وعدې مخالفت او یا له حقه اعراض ممکن نه وو، نه قصدا، نه په سهوه، نه په روغتیا او نه په ناروغي کي، نه د يو حقیقي مطلب په غوښتنه کي، نه په ټوکو کي او نه په خوشالي و غوسه کي. (نشر الطیب)

## په وعده وفا: ـ

د بدر د جګړې پر مهال د مسلمانانو شمېر ډېر لږ وو او هر سړي ته یې ډېر ضرورت درلود. حذیفه بن الیمان او ابو سهیل رسول الله ﷺ ته راغلل او ویې ویل: اې د الله رسوله! موږ له مکې را روان وو چي په لاره کي کفارو ونیولو او په دې شرط یې خوشي کړو چي په جګړه کي به ستا ملګرتیا نه

کوو، مګر دا د مجبوریت وعده وه موږ به حتما د کافرانو پر خلاف جنګیږو. رسول الله ﷺ وویل: هیڅکله نه، تاسو خپله وعده پوره کړئ او د جګړې له ډګره ستانه شئ، موږ مسلمانان په هر حالت کي وعده پوره کوو او موږ یوازي د الله مرستې ته اړتیا لرو.

(صحیح مسلم باب الوفاء بالعهد ۲/۸۹، ۲/۱۰۶)

عبدالله بن ابی الحماد ﷺ وایي چي تر رسالت وړاندي مي له رسول الله ﷺ څخه یو شی واخیست او یو څه پیسې پاتي شوې. له رسول الله ﷺ سره مي وعده وکړه چي همدلته به یې درته راوړم. بیا مي له یاده ووتلې، درې ورځې وروسته مي را یاد شول هلته ورغلم نو که ګورم رسول الله ﷺ پر هماغه ځای ولاړ دی. راته ویې ویل: زه خو دي په تکلیف اخته کړم، له درو ورځو را هیسې همدلته درته انتظار کوم. (دا روایت ابوداود نقل کړی) او له دې پیښې د رسول الله ﷺ تواضع او په اخیري کچه د وعدې پوره کول ښکاري.

**مېړانه:-**

انس ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: ما ته پر نورو خلکو د څلورو شیانو فضیلت را کړل شوی دی، د سخا، مېړانې، جنسي طاقت او پر مقابل لوري غلبه. رسول الله ﷺ تر نبوت وړاندي هم او وروسته هم د وقار څښتن وو. (نشر الطیب)

د حنین په غزا کي د کافرانو ګڼو غشو په صحابه کرامو کي یو ډول وارخطایي او ګډ - وډي پیدا کړه، خو رسول الله ﷺ له خپله ځایه حرکت هم ونه کړ په داسي حال کي چي پر اس سپور وو او ابو سفیان بن الحارث یې د اس کیزه نیولې وه، کفارو غوښتل چي پر رسول الله ﷺ برید وکړي دی له اس

څخه را کښته شو او له الله یې مرسته وغوښته، له ځمکې یې یو موټ خاوره ور واخیسته د دښمنانو پر لوری یې ور وغورځوله نو داسي هیڅ کافر نه وو چي سترګې یې له خاورو نه وي ډکې شوې. رسول الله ﷺ په همدې وخت کي وویل: انا النبی لا کذب، انا ابن عبد المطلب. معنا زه نبي یم دا دروغ نه دي، زه د عبد المطلب زوی یم.

په دې ورځ تر ده هیڅ زړور، دلاور او غیرتمن نه دی لیدل شوی.

(مدارج النبوة)

ابن عمر ﷺ وایي چي ما نه تر رسول الله ﷺ بل زړور لیدلی، نه سخي او نه د نورو اخلاقو له مخې غوره، موږ به د بدر په جګړه کي د رسول الله ﷺ شا ته پناه اخیستله او ډېر غیرتمن هغه څوک ګڼل کېده چي د جګړې په ډګر کي له ده سره د دښمن را نژدې کېدو پر مهال موجود وو ځکه په دې صورت کي به هغه سړی هم دښمن ته ور نژدې کېده. (نشر الطیب)

**سخاوت:۔**

ابن عباس ﷺ وایي چي لومړی خو رسول الله ﷺ تر ټولو خلکو ډېر سخي وو (هیچا یې هم د سخاوت مقابله نه شوای کولای) په خپله یې فقیرانه ژوند درلود او په ورکړه کي یې پاچاهان شرمول. یو ځل د سختې اړتیا پر مهال یوې ښځې څادر ورکړ او ده واغوست چي پر همدې مهال یو بل چا ترې غوښتنه وکړه او ده هغه ته ورکړ. د پور په اخیستلو به یې د اړو خلکو اړتیاوې پوره کولې، که به د پوره ورو د سختې غوښتنې پر مهال څه په لاس ورغلل او د قرض تر ورکړې وروسته به یو شی پاته شول نو تر وېش وړاندي کور ته نه تلې، په خاصه توګه د روژې په میاشت کي به تر پایه ډېر سخي وو

(د رسول الله ﷺ د یوولسو میاشتو سخا به له دې میاشتې سره برابره نه وه) په دې میاشت کې چې به هر وخت جبریل راتلی او ده ته به یې قرآن اوراوه نو پر دې مهال به په نېکي او ګټه رسونه کې د سخت باران تر اورونکي باد هم ډېر سخي وو. (خصائل نبوي)

په ترمذي کې یو حدیث نقل شوی چې یو ځل رسول الله ﷺ ته نوي زره درهمه له یو خوا راغلل، ده پر یوه بوری واچول او همالته یې تقسیم کړل. تر ختمېدو وروسته یو سایل راغی رسول الله ﷺ وویل: هیڅ را سره پاتي نه دي، ته زما په نوم له یو چا پور واخله کله چې یې پیدا کړم زه به یې ورکړم.

(خصائل نبوي)

له جابر ﷺ څخه روایت دی، ده ویلي: هر وخت چې له رسول الله ﷺ څخه د یوه شي غوښتنه شوې ده ورکړې. انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ د راتلونکي لپاره هیڅ نه ساتل، د ابن عباس ﷺ وینا ده چې رسول الله ﷺ تر هر چا ډېر سخي وو، په خاصه توګه د روژې په میاشت کې.

(صحیح بخاري، بدء الوحی)

یو ځل رسول الله ﷺ ابو ذر غفاري ﷺ ته وویل: اې ابو ذره! زه نه غواړم چې د احد په څېر سره زر را سره وي او تر درو ورځو یې یوه روپۍ هم را سره پاتي شي، پرته له هغو چې د قرض ادا کولو لپاره یې ساتم نو اې ابو ذره! زه به دا مال په دواړو لاسونو د الله پر مخلوق تقسیم کړم.

(صحیح البخاري کتاب الاستقراض ص: ۳۲۱)

یوه ورځ له رسول الله ﷺ سره شپږ روپۍ وې څلور یې ولګولې او دوې پاتي شوې چې له امله یې ټوله شپه خوب ونه کړ، عائشې ﷺ وویل: دا

عادي خبره ده سهار به يې تقسيم کړي. رسول الله ﷺ وويل: اې حميرا (د عائشې لقب وو) څه معلومه ده چي زه به تر سهاره پاتي شم او که نه؟.

(مشکوة)

## صبر او توکل:-

د انس ﷺ وينا ده چي رسول الله ﷺ دويمې ورځې ته هيڅ نه ساتل.

(شمايل ترمذي)

فايده:-

يعني څه چي به يې درلودل کارول يې، په دې فکر يې نه خوندي کول چي سبا به مي ورته ضرورت شي. دا د نبوي توکل اخيري درجه ده چي کوم مالک پرون څه راکړي، سبا به يې هم راکړي. دا يوازي د ځان لپاره، مګر مېرمنو ته يې د هغوی نفقه ورکوله، دوی به له خپلې خوښې سره سم پکي تصرف کاوه او يا به يې وېشله خو هغوی هم د رسول الله ﷺ مېرمنې وې. يو ځل عائشې ﷺ ته دوې ګونې درهمونه راوړل شول چي تر يو لک زيات وو. دې يوه لويه کاسه را وغوښته او ډکه - ډکه يې ووېشله، په خپله يې روژه نيولې وه، د روژه ماتي پر مهال يې يوه ډوډۍ او د زيتون تېل وخوړل، مينځې يې وويل: که دي نن په يوه درهم غوښه را غوښتې وای نو روژه به مو پرې ماته کړې وای. دې وويل: اوس تورونه څه کولای شي هغه وخت به دې را ته ويل نو را غوښتې به مي وه. (خصائل نبوي)

رسول الله ﷺ ويلي: زما دا نه خوښېږي چي د احد غر سره زر شي او دشپې تر مهاله يې يو دينار هم را سره وي، پرته له هغه ديناره چي د واجبې غوښتنې لپاره يې ساتم. دا خبره د هغه د کامل سخاوت، ورکړې او جود

دلیل دی، د همدې کامل سخاوت له وجې به پوروړی وو ان کله چې وفات کېده نو زغره یې د کورنۍ د مصارفو له کبله گرو وه. (نشر الطیب)

**تواضع:-**

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ نه د سختو خبرو عادت درلود، نه یې په تکلف خبرې کولې، نه یې په بازار کې د وقار خلاف تگ کاوه او نه یې د بدی بدله په بدي ورکوله بلکې بخښنه یې کوله. له ډېرې حیا څخه یې د یو چا مخ ته مخامخ نه کتل او که به د اړتیا له مخې د نا مناسبې خبرې کولو ضرورت شو نو په کنایه به یې کوله. له علي ﷺ څخه روایت دی چې د ده زړه تر هر چا پراخ، خبرې یې رښتنې، طبیعت یې نرم او اخلاق یې غوره وو. چا چې به بلنه ورکړه منله یې، هدیه یې قبلوله، که څه هم هغه ډالۍ یا د مېلمستیا بلنه به د غوایي یا پسونو د پښو وه.

د هدیې بدله یې هم ورکوله، د مریې، ازاد، مینځې او غریب تولو مېلمستیا یې منله او هیڅکله په خپلو ملگرو کې د پښو په غزولو نه دی لیدل شوی چې نورو یې ته ځای تنگ کړی وي. څوک چې به ورسره وو د هغه یې درناوی کاوه، ځیني وختونه به یې د هغه د ناستې لپاره خپل څادر خپراوه، نالي او بالښت به یې ور خوشي کاوه، د هیچا خبره یې په منځ کې نه پرې کوله، په موسکا او خوشاله مزاج کې تر هر چا وړاندې وو، مگر دا چې د وحې د نزول یا وعظ او خطبې حالت به نه وو (ځکه په دې حالت کې به رسول الله ﷺ یو ډول جوش درلود) په دې وخت کې به ده موسکا او خوشاله مزاج نه ښکاره کاوه. (نشر الطیب)

## دیانت او امانت:-

رسول الله ﷺ چي کله د حق دعوت پیل کړ نو ټول قوم یې دښمن شوا ود ده په زوروونه کي یې له هیڅ شي مخ ونه ګرزاوه خو په دې حالت کي هم داسي هیڅ مشرک نه وو چي د ده پر دیانت او امانت دي شک کړی وي بلکي هغوی به خپلې شتمنۍ راوړې له ده سره به یې د امانت په توګه ساتلې او په مکه کي بل هیڅوک تر ده لوی امین نه بلل کېده.

د هجرت پر مهال د علي ﷺ د پرېښودو یو هدف دا وو چي هغه مدینې ته تر راتلو وړاندي د خلکو امانتونه ور وسپاري. (مدارج النبوة)

## خاکساري:-

له عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! زما داسي ستاینه مه کوئ لکه عیسایانو چي د ابن مریم کړې، ځکه زه د الله بنده یم، زما په اړه صرف دومره ویلای شئ چي محمد د الله بنده او د هغه رسول دی. (مدارج النبوة، زاد المعاد، شمایل ترمذي)

له ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ پر لکړه تکیه کړې وه موږ ته راغی، موږ ورته ودرېدلو. ده وویل: لکه څرنګه چي عجم د یوه بل د درناوي لپاره ولاړېږي تاسو هغه ډول مه ولاړېږئ او ویې ویل: زه د الله بنده یم هماغسي خوراک کوم لکه نور بندګان او هماغسي کښېنم لکه نور بندګان چي کښېني. د رسول الله ﷺ دا وینا د هغه ذ حوصلې او خاکسارۍ د نېک عادت له وجې وه. (مدارج النبوة)

په حدیث کې دي چې یو ځل په سفر کې ځینو صحابه کرامو د یوه پسه د حلالولو اراده وکړه. کارونه یې تر خپل منځ وویشل، یو حلال کړ، بل یې پوست وایست او ځینو پوخ کړ. رسول الله ﷺ وویل: د لرګو را غونډول زما مسئولیت دی. صحابه کرامو وویل: اې د الله رسوله! دا کار به موږ په خپله وکړو. ده وویل: زه هم پوهېږم چې تاسو به یې په خوښۍ وکړئ، مګر ما ته دا خوند نه راکوي چې په یوه ډله کې ممتاز پاتې شم او د الله خوښه نه وي.
(خصائل نبوي)

ابو هریره ؓ وایي چې زه له رسول الله ﷺ سره بازار ته ولاړم او ده په څلور درهمه یو پرتوګ واخیست، وزن کوونکي ته یې وویل: په قیمت کې مال ښه دروند وتله (یعني په وزن کې کم یا برابر مه اخله بلکې زیات واخله، غالبا هغه مهال جامې په تول خرڅېدې) تلونکی حیران شو ویې ویل: ما هیڅکله هم له چا څخه د قیمت ادا کولو پر مهال داسې نه دي اورېدلي. په دې سره ابو هریره ؓ وویل: افسوس پر تا چې خپل نبي نه پېژنې. هغه سړي ترازو خوشې کړ، ودرېد او د رسول الله ﷺ لاس یې ښکل کړ، رسول الله ﷺ خپل لاس تر ې کش کړ او ویې ویل: دا د عجمو رواج دی چې له خپلو پاچاهانو او مشرانو سره داسې کوي، زه پاچا نه یم ستاسو یو سړی یم (دا خبره رسول الله ﷺ د خپل عادت له مخې وکړه او دا یې تواضع وه) تر دې وروسته رسول الله ﷺ پرتوګ ور واخیست. ابو هریره ؓ وایي چې زه ور وړاندې شوم اراده مې وکړه چې پرتوګ زه را واخلم خو رسول الله ﷺ وویل: د سامان مالک حق لري چې خپل سامان په خپله واخلي خو څوک چې کمزوری وي او پورته کولای یې نه شي نو ورور یې باید ورسره مرسته وکړي.

(مدارج النبوة)

انس ﷺ وايي: رسول الله ﷺ پر يوه زاړه زين حج وکړ چي د څلورو درهمو زوړ رخت پرې غوړېدلى وو او رسول الله ﷺ دا دعا غوښته چي اې الله! دا حج مو له ريا او شهرت څخه خالي کړه. (شمايل ترمذي)

کله چي مکه فتحه شوه او رسول الله ﷺ د مسلمانانو له لښکر سره ور ننووت نو الهي حضور ته يې د عجز او تواضع له مخې سر پر زين ځوړند کړى وو، ان نژدې وه چي سر يې د زين له لرګي سره ولګېږي. (کتاب الشفا)

انس ﷺ وايي: د صحابه وو په نزد تر رسول الله ﷺ په دنيا کي څوک محبوب نه وو، مګر له دې سره - سره د هغه په ليدلو ځکه نه ورته ولاړېدل چي رسول الله ﷺ دا کار نه خوښاوه.

يو ځل د حبشې د پاچا نجاشي ځيني استازي راغلل، رسول الله ﷺ د هغوى لپاره ودرېد. صحابه وو وويل: اې د الله رسوله! د هغوى خدمت موږ ته پرېږده. ده وويل: هغوى د صحابه کرامو ډېر خدمت او درناوى کړى، زه غواړم بدله يې ورکړم. (مدارج النبوة)

## د پاک زړه ښتن: -

ابن مسعود ﷺ وايي: رسول الله ﷺ پر دې ټينګار کاوه چي زما په ملګرو کي دي هيڅوک د بل خبره ما ته نه رسوي ځکه زه غواړم کله چي در ته راشم نو زړه مي د ټولو له خوا پاک وي.

(ابوداود، ترجمان السنة، کتاب الشفا)

## نرمي او شفقت: -

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ډېر نېک اخلاقه وو يوه ورځ يې زه د کوم ضرورت لپاره ولېږلم. ما وويل: په الله قسم که ولاړ شم او په زړه کي مي دا وو چي کوم څه رسول الله ﷺ راکړی د هغه لپاره به حتما ځم، زه روان شوم او په بازار کي پر بازي کوونکو ماشومانو ورغلم. په همدې کي رسول الله ﷺ د شا له خوا د سر تر وېښتانو ونيولم کله چي مي ورته وکتل نو په موسکا وو. ويې ويل: انسه ته هلته تللی وې چي ما لېږلی وې؟. ما وويل: هو ولاړ به شم اې د الله رسوله. (مشکوة، حيات المسلمين)

له انس ﷺ څخه روايت دی چي ما له اته کلنۍ د رسول الله ﷺ خدمت کاوه او لس کاله مي يې خدمت وکړ. زه يې هيڅکله پر تېروتنه ملامت کړی نه يم، په اهل بيتو کي چي به هر چا ملامت کړم نو ده به وويل: په ده کار مه لرئ څه چي په تقدير کي ول هغه وشول. (مشکوة)

**قرباني او حوصله:-**

په يوه روايت کي دي چي زيد بن شعنه لومړی يهودي وو، يو ځل يې وويل: د نبوت په نښو کي هيڅ يوه يې داسي نه ده چي ما په رسول الله ﷺ کي نه وي ليدلې، يوازي دوې يې پاتي دي چي ترا اوسه يې د تجربې وخت نه دی راغلی. يوه دا چي د ده حوصله به پر غوسه غالبه وي، دويمه دا چي که يو څوک هر څومره د جهالت چلند ورسره وکړي دی به په هماغه اندازه زغم کوي. زه د همدې دوو د ازموينې په لټه وم او تګ و راتګ مي ډېر ده. يوه ورځ دی له حجرې دباندي راووت، علي ﷺ ورسره وو يو څارايي سړی راغی او ويې ويل: اې د الله رسوله! زما قوم مسلمان شوی دی او ما هغوی ته ويلي وو چي که مسلمانان شئ نو ډېره روزي به تر لاسه کړئ خو اوس

وچکالي راغلې ده، وېرېږم چې هسې نه له اسلامه ووزي نو تاسو را سره مرسته وکړئ. ده يو چا ته چې غالبا علي ﷺ وو وکتل، هغه وويل: هيڅ هم نه دي پاتـه. زيـد چې تـر دې وختـه يهـودي وو، د دې حالـت پـه ليـدو وويـل: محمده! که ته کولای شې د فلاني د باغ دومره خورماوې پر تاکلي وخت ما تـه راکـړې نـو زه بـه يـې وار تـر مخکـي قيمت درکـړم او پـر تـاکلي وخت بـه خورماوې واخلم. رسول الله ﷺ وويل: د اسي خو نه شي کېدای البته که باغ معلوم نه کړې نو زه معامله کولای شم. ما ومنله او د خورماوو اتيا مثقاله سره زر (له مشهور قـول سره سم يو مثقال څلور نيمې ماشې وي) ورکړ، ده هغه سره زر څارايي تـه وسپارل او ويې ويـل: انصاف تـه پـام کـوه او پـه دې اړتياوې پوره کړه.

زيـد وايـي: کله چې د خورماوو د ورکړې وخت تـه دوې - درې ورځې پاتي وې نو رسول الله ﷺ د صحابه وو له يوې ډلې سره چې ابو بکر، عمر او عثمان ﷺ هم ورسره ول د يوې جنازې له لمانځه خلاص شول او يوه دېوال ته نژدې ورغلل. زه راغلم او د ده د کرتې او څادر يو پلو مې ونيو، پـه ډېر تريو تندي مې وويـل: اې محمده! پر تا مې پور باندي دی، قسم پـه الله! زه تاسو ټول د عبد المطلب اولاد ښه پېژنم چې چا ته شی نه ورکوئ. عمر ﷺ پـه غوسه راتـه وويـل: اې د الله دښمنه! دا څـه وايـې؟ قسـم پـه الله کـه لـه رسـول الله نـه وېرېدای نو ستا سر مي غوڅاوه. خو رسول الله ﷺ پـه ډېر ډاډ سره راتـه کتـل او د موسکا پـه لهجه ې عمر ﷺ تـه وويـل: عمره! زه او دغـه سړی يوه شي تـه اړ وو، هغه دا چې ما تـه بـه دې پـه ښه ډول د حق ادا کولو ويلي وو او ده تـه بـه دې پـه ښه ډول د غوښتني نصيحت کړی وو. ورځه دی له ځان سره کړه او حق يې

ورکړه او تا چې دی ګواښلی په بدل کې یې شل صاعه (نژدې دوه ) زیاتې خورماوې ورکړه. عمر رضي الله عنه زه له ځان سره بوتلم، ټول قرض او شل صاعه زیاتې خورماوې یې راکړې. ما پوښتنه وکړه چې دا شل صاعه دې ولې راکړل، عمر رضي الله عنه وویل چې دا د رسول الله ﷺ امر دی. زید وویل: عمره! ته ما پیژنې؟. هغه وویل: نه. ما وویل: زه زید بن شعنه یم، ده وویل: د یهودو ستر عالم؟. ما وویل: هو. ده وویل: نو دومره غټ سړی یې له رسول الله ﷺ سره دې څرنګه چلند وکړ؟. ما وویل: د نبوت په نښو کې د وې داسې وې چې ما یې د ازمویلو نوبت نه وو موندلی، یوه دا چې د ده زغم به پر غوسه غالب وي او دویمه دا چې له ده سره د ډېر جهالت چلند به د هغه زغم نور هم ډېر کړي. اوس مې دا دوې وازمویلې، تا د خپل اسلام شاهد ګرزوم او نیمه شتمني د محمد امت ته ور بخښم. تر دې وروسته د رسول الله ﷺ حضور ته راغی او سلام یې وکړ، وروسته یې په ډېرو غزاوو کې ګډون وکړ او د تبوک په غزا کې شهید شو. (جمع الفوائد، خصایل نبوي)

امام بخاري رحمه الله له انس رضي الله عنه څخه روایت کړی چې زه یو ځل له رسول الله ﷺ سره روان وم او د ده په غاړه کې د حاشیو نجراني څادر وو، یو څارایي نژدې راغی رسول الله ﷺ تر څادر ور کش کړ او هغه سخت ویېچل شو. انس رضي الله عنه وایي چې ما د رسول الله ﷺ غاړې ته وکتل نو نښې یې د هغه په غاړه کې معلومې وې. تر دې وروسته څارایي وویل: اې محمده! له تا سره چې د الله کوم مال دی له هغه څه ما ته د صدقې امر وکړه، رسول الله ﷺ هغه ته وکتل موسکی شو او ما ته یې د ورکولو امر وکړ. ( مدارج النبوة)

یو ځل په مکه کي وچکالي راغله، خلګو د هډوکو او مردارو په خوړلو شروع وکړه. ابو سفیان رضی الله عنه چي په هغو ورځو کي د رسول الله ﷺ سخت دښمن وو ده ته راغی او ویې ویل: محمده ته خلګو ته د خپلوی پالنې تعلیم ورکوې، ستا قول پر ماتېدو دی ته ولي له خپله ربه دعا نه غواړې؟.

که څه هم د قریشو زورونې او شرارتونه تر انساني حد هم اوښتي ول خو د ابو سفیان د خبرې په اورېدو سمدستي د ده لاس دعا ته پورته شول، الله دومره باران واوراوه چي ابادي راغله او وچکالي له منځه ولاړه.

(صحیح البخاري، تفسیر سورت الدخان)

**زهد او تقوی:-**

له انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به دعا کوله ویل به یې: اې الله! ما د مسکینی په حالت کي ژوندی وساته، د مسکینی په حالت کي مي له دنیا پورته کړه او د مسکینانو له ډلې سره مي را وپاڅوه.

(جامع ترمذي، بیهقي، ابن ماجه، معارف الحدیث)

**حدیث:-**

د رسول الله ﷺ له یوه صحابي څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په مجلس کي یو ځل د شتمنی او دنیوي خوښی خبرې کېدې چي دا شی ښه دی که بد؟. د دین او اخرت لپاره ګټور دی که تاواني؟. نو رسول الله ﷺ په دې اړه وویل: که څوک له الله وویرېږي (او احکام یې ترسره کړي) د هغه لپاره شتمني پروا نه لري او هیڅ بده نه ده، صحتمند او د متقي لپاره روغتیا تر

شتمنی هم غوره ده، خوشالي هم د الله یو نعمت دی (چي شکر یې واجب دی). (مسند احمد، معارف الحدیث)

**حدیث:-**

له عائشي ﷺ څخه روایت دی چي دې عروه ته وویل: اې زما خوریه! موږ (اهل بیتو به داسي ګوزاره کوله) چي کله - کله به مو پر له پسې درې میاشتې لیدې (پر له پسې دوې میاشتې به تېرې شوې) او د رسول الله په کور کي به نغری نه ګرمېده. عروه وایي: ما پوښتنه وکړه چي نو بیا په څه شي ژوندي واست؟. عائشې ﷺ وویل: بس د خورماوو په دانو او اوبو (په همدې ژوندي وو) البته د رسول الله ﷺ ځیني انصار ګاونډیان ول هغوی شیدې ورکوونکې څاروي درلودل، رسول الله ﷺ ته به یې د هدیې په توګه شیدې را لېږلې او موږ ته هم رسېدې. (بخاري و مسلم، معارف الحدیث)

عائشه ﷺ وایي: رسول الله ﷺ په داسي کال کي وفات شو چي زغره یې د دېرشو کاسو اوربشو په بدل کي پر یوه یهودي ګرو وه.

(بخاري، معارف الحدیث)

**له الله ﷻ وېره:-**

له عبدالله بن شخیر څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به تل غمجن وو، هیڅکله یې ارام نه درلود (دا حالت یې د اخرت په اړه د فکر په وجه وو) په ورځ کي به یې اویا او یا سل ځله استغفار غوښت. زه وایم: دا کاریې یا د امت د تعلیم لپاره کاوه او یا یې په خپله د امت لپاره بخښنه غوښته او یا یې وجه دا وه چي دی د قرب او عرفان په سیند کي غرق وو، هره شېبه یې ترقي

کوله ځکه تجلیات نوي کېدل او د محل له استعداد سره سم تجلی راځي. د رسول الله ﷺ استعداد پر له پسې ډېرېده، له همدې کبله تجلیات هم د لا تقف عند حد (چې هیڅ پای نه لري) ظاهرېدل. کله چې به یې لوړه مرتبه لیده نو د پورتنۍ مرتبې له مخې به یې ځان ټیټ والي ته منسوباوه. (نشر الطیب)

## نرم زړه:-

ابن عباس ؓ وايي چې د رسول الله ﷺ یوه لمسۍ مرګ ته نژدې وه، رسول الله ﷺ په غېږ کې واخیسته او خپل مخ ته یې کېښېنوله. د هغه مخ ته په ناسته وفات شوه. ام ایمن (د رسول الله ﷺ یوه مینځه وه) ولاړه ویې ژړل، رسول الله ﷺ وویل: د الله د نبي مخ ته هم ژاړې؟ (ځکه چې د رسول الله ﷺ له سترګو هم اوښکې څڅېدلې) نو هغې وویل: اې د الله رسوله! خو ته ژاړې؟. رسول الله ﷺ وویل: ژړا نه ده منعه، دا د الله رحمت دی (چې د بندګانو زړونه نرم کړي او شفقت و رحمت پکې پیدا کړي) بیا رسول الله ﷺ وویل: مومن هر وخت په ګټه کې وي، ان تر هغه وخته چې روح یې وزي او دی د الله حمد وايي.

عائشه ؓ وايي چې رسول الله ﷺ د عثمان بن مظعون ؓ تر مرګ وروسته هغه ښکل کړ او له سترګو یې اوښکې بهیدلې. (شمایل ترمذي)

عبدالله بن شخیر ؓ وايي چې زه رسول الله ﷺ ته ورغلم ده لمونځ کاوه نو د ژړا له کبله یې تر سینې داسې اواز راوته لکه کټو چې ایشي.

(شمایل ترمذي)

عبدالله بن مسعود ﷛ وايي: يو ځل رسول الله ﷺ را ته وويل چي قرآن تلاوت کړه. ما وويل: خو پر تا نازل شوی او تا ته يې واوروم؟. رسول الله ﷺ وويل: زړه مي غواړي له نورو يې واورم. ما يې امر ومانه او د سورت النساء تلاوت مي پيل کړ، کله چي دې ايت (فکيف اذا جئنا من کل امة بشهيد و جئنا بک علی هؤلاء شهيدا ) يعني هغه وخت به څه حال وي چي له هر امت څخه يو شاهد را وستل شي او تـه پر مخکينيو خلګو د شاهدي لپاره را وستل شوې ورسېدم نو د رسول الله ﷺ مخ ته مي وکتل، تر دواړو سترګو يې اوښکې بهېدلې. (شمايل ترمذي)

انس ﷛ وايي: رسول الله ﷺ د خپلې لور ام کلثوم قبر ته نژدې وو او تر سترګو يې اوښکې تلې. (شمايل ترمذي)

**زړه سوی او مهرباني:-**

يو ځل يو صحابي رسول الله ﷺ ته راغی، په لاس کي يې د مرغه بچی وو او ناري يې وهلې. رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: دا دي له کومه کړ؟. صحابي وويل: اې د الله رسوله! له يوې اغزنې ونې سره نژدې تېرېدم د دوی اوازونه مي واورېدل نو را ومي ايستل. کله چي يې مور وليدم نو په بې وسۍ يې زما پر سر پروازونه کول. رسول الله ﷺ وويل: سمدستي ورشه او هلت يې کښېږده له کومه ځايه چي دي راوړي. (مشکوة د ابوداود په حاله، باب الرحت و الشفقت علی الخلق، معارف الحديث)

يو ځل رسول الله ﷺ د يوه انصاري باغ ته ورغی هلته اوښ له لوږې نا ارام وو، ده يې په مينه پر شا لاس تېر کړ او د هغه څښتن يې را وغوښت او ورته ويې ويل: د دې حيوان په اړه له الله نه وېرېږې؟.

(ابوداود باب الرحمت، معارف الحدیث)

یو ځل ابو مسعود انصاري رضی الله عنه خپل مریی واهه ناڅاپه رسول الله ﷺ وربانديراغی او خپه شو ویې ویل: ابو مسعوده! ته چي پر دې مریي څومره واک لرې الله تر دې پر تا ډېر واک لري. ابو مسعود چي د هغه وینا واورېده، ویې ویل: اې د الله رسوله! زه دا مریی د الله لپاره ازادوم. رسول الله ﷺ وویل: که دي داسي نه وای کړي نو د دوزخ اور به سوځولې.

(ابوداود کتاب الادب باب حق المملوک)

**د بندګۍ مقام:-**

فضل بن عباس رضی الله عنه وایي چي زه رسول الله ﷺ ته ورغلم، ومي لیدل چي د رسول الله ﷺ تبه ده او پر سر یې پټۍ تړلې ده. ویې ویل: لاس مي ونیسه، ما یې لاس ونیو. دی مسجد ته ولاړ پر منبر کښېناست ویې ویل: خلګو ته ور ږغ کړه چي راغونډ شي. ما را ټول کړل، رسول الله ﷺ تر حمد او ثنا وروسته داسي وویل:

له تاسو څخه زما د تګ زمانه را نژدې شوې ده، له همدې وجې چي ما څوک پر ملا وهلی دی زما ملا موجوده ده بدله واخلئ، ما چي د چا پر عزت تېری کړی وي زما له عزته دي بدله واخلي، پر ما چي د چا مالي غوښتنه وي هغه دي د مال بدله واخلي، هیڅوک دي له دې نه وېرېږي چي زه به د بدل په اخیستلو په زړه کي ورسره بغض وکړم، بغض کول نه زما طبیعت دی او نه را سره ښایي. ښه پوه شئ پر ما هغه څوک ګران دی چي خپل حق یا را څخه واخلي او یا یې را وبخښي څو زه د الله حضور ته له خوشاله زړه سره ورشم. زه یو ځل د خپل دې اعلان پر کولو اکتفا نه کوم، بیا هم اعلان کوم.

تر دې وروسته له منبره را کښته شو او د ماپښین تر لمانځه وروسته بيا منبر ته ولاړ او هماغه اعلان يې وکړ. د بغض په اړه يې هم پورتنۍ خبره تکرار کړه او دا يې هم وويل چې که د چا پر ذمه حق وي ادا دې کړي، د دنيا رسوايي ته دې پام نه کوي، د دنيا رسوايي تر اخرت ډېره کمه ده.

يو سړی ولاړ شو او ويې ويل: زما پر تا درې درهمه باندې دي. رسول الله ﷺ وويل: زه نه يو غوښتونکی دروغجن بولم، نه قسم ورکوم مګر پوښتنه کوم چې دا درهم دې څرنګه را باندې دي؟. هغه وويل: يوه ورځ تا ته سايل راغلی وو نو را ته وويل چې درې درهمه ورکړه. رسول الله ﷺ فضل ؓ ته وويل: ده ته درې درهمه ورکړه، تر دې وروسته يو بل ښاغلی ودرېد ويې ويل: پر ما د بيت المال درې درهمه باندې دي او په خيانت مې اخيستي وو. رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: ولې دې خيانت وکړ؟. ده وويل: زه هغه مهال ډېر محتاج وم. رسول الله ﷺ وويل: ترې وايې خله. تر دې وروسته يې اعلان وکړ چې که څوک د خپل حالت په اړه انديښنه لري هغه دې دعا وغواړي (ځکه چې د تګ وخت دی) يو سړی ولاړ شو او ويې ويل: اې د الله رسوله! زه دروغجن، منافق او ډېر ويدېدو ناروغ يم. رسول الله ﷺ دعا وکړه چې اې الله! ده ته صداقت، کامل ايمان ورکړه او د خوب د زيادت له ناروغۍ شفا ورکړه.

تر دې وروسته يو بل سړی ولاړ شو او ويې ويل: اې د الله رسوله! زه دروغجن او منافق يم، هيڅ داسې ګناه نه شته چې ما نه وي کړې. عمر ؓ خبرداری ورکړ چې خپل ګناهونه خپروئ؟. رسول الله ﷺ وويل: اې الله! ده ته صداقت او کامل ايمان ورکړه او حالت يې ښه کړه. يو بل سړی ودرېد ويې

ویل: اې د الله رسوله! زه بې زړه یم او د خوب په ناروغۍ اخته یم. رسول الله ﷺ هغه ته هم دعا وکړه.

فضل ؓ وایي: وروسته مو ولیدل چي هیڅوک د ده په څېر زړور نه وو، وروسته رسول الله ﷺ د عائشې ؓ کور ته ولاړ او د ښځو په غونډه کي یې هم هغه ډول اعلان وکړ چي د نارینه وو په غونډه کي یې کړی وو او هماغه څه یې تکرار کړل. یوې مېرمنې وویل: اې د الله رسوله! زما ژبه سم کار نه کوي. رسول الله ﷺ دې ته هم دعا وکړه، بیا رسول الله ﷺ اعلان وکړ چي که څوک د خپل حالت په اړه اندېښنه لري دعا دي وغواړي ځکه د روانېدو وخت دی. خلکو د ځان په اړه بېلابېلي دعاوې وغوښتې.

**الهي ملکر تیا:-**

عائشه ؓ وایي: رسول الله ﷺ به هره شېبه او هر وخت الهي ذکر کاوه، تل به په الهي یاد بوخت وو، هیڅ شي له الهي ذکر څخه نه شوای را گرزولای، د ده هره خبره به د حق له یاد، حمد، ثنا، توحید، تمجید، تسبیح، تقدیس، تکبیر او تهلیل سره وه، د الهي اسماء و صفاتو، وعد و وعید، امر و نهې، شرعي احکامو تعلیم، جنت و دوزخ یاد او ترغیب و ترهیب بیان ټول د حق شیان وو او د چوپتیا پر مهال به یې په زړه کي د الله یاد وو او د رسول الله ﷺ هره سا، د ده زړه و ژبه، ناسته ولاړه، پروته او پراخ تکیه، خوراک او څښاک، بویول، تګ - راتګ، سفر و اقامت، پیاده او د سپرلۍ تګ هر حالت د الله له ذکره خالي نه وو. د الهي یاد هر صورت چي به ممکن په زړه، ژبه او یا فعل به یې د هغه ذکر کاوه. د شپې او ورځې په اعمالو او بوختیاوو د تهجد له وخته د ویدیدو تر مهاله یې په بېلابېلو وختونو، شېبو، حالاتو،

اوضاعو او د ولونو کي دعاوې ويلې، همدا ماثورې دعاوې ټولو مقاصدو، مطالبو او حاجاتو ته شاملې دي او د خاص مقصد و مطلب لپاره يې هم ځانګړې دعا بې ويلو نه ده خوشي کړې. (مدارج النبوة)

## د رسول الله ﷺ فقر:-

امام قسطلاني په مواهب کي وايي چي د رسول الله ﷺ او ملګرو په اړه يې له يوې خوا په رواياتو کي راځي چي دوی به ډېر وختونه وږي ول، ده او ملګرو به يې د خوراک لپاره څه نه درلودل، کله به يې د خورما په خوراک ګوزاره وه، ځيني وختونه به هغه هم نه موندل کېده يوازي اوبه به يې څښلې او له بلې خوا په رواياتو کي دا هم شته چي رسول الله ﷺ د خپلې کورنۍ لپاره د کال خرچه ساتله. پر خپلو ټولو ښځو ملګرو يې خپل ټولو ښت اوښان تقسيم کړل، په ځينو ځايونو کي راغلي چي د حج او عمرې پر مهال يې سل اوښان حلال کړل او يوه ځارايي ته يې د پسونو رمه ورکړه. د ده په ملګرو کي هم د ځينو کسانو داسي ګڼې پېښي شته چي د شتمنۍ خاوندان وو، ابو بکر صديق رضی الله عنه، عثمان غني، عبد الرحمن بن عوف او نور چي په ډېرو وختونو کي يې له مسلمانانو سره مالي مرسته کړې، نو که داسي پراخي او شتمني وه نو ولي څو ورځې وږي پاتېدل؟. تر مياشتو - مياشتو په کور کي د نغرې نه بلېدل څه مانا؟ او که دومره تنګلاسي وه چي د خوراک او څښاک لپاره څه نه موندل کېدل نو بيا يې دا سخاوتونه څرنګه کول؟.

دا يو داسي حقيقت دی چي د عام انسان په ذهن کي مشکلات پيدا کوي. امام طبري يې ځواب ورکړی دی: په فتح الباري کي دي چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ځکه پر ځان سختنی نه کولې چي په حقيقت کي دوی

د شپې ډوډۍ، ته هم عاجز او بې وسه وو. د داسي صحابه وو تعداد ډېر کم وو چي په ډېره سختۍ او تنګلاسي کي یې ژوند کاوه، په حقیقت کي د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو لوږه او له ښو خوراکونو ډډه کول ځیني وختونه د مجبورۍ له وجې وو که نه په عمومي ډول رسول الله ﷺ او ملګرو یې د لوږې او تندې سختۍ په خپله د دې لپاره زغملې چي د نورو لپاره قرباني او د سرشندنې جذبه پیدا شي. د دنیا له مال او وسایلو سره د کرکې او بې زارۍ څرګندونه وشي، ځکه د دنیا وسایل او ښه ژوند انسان د الله له یاد او د حق له ملاتړ څخه غافلوي.

حافظ ابن حجر وایي چي حقیقت دادی چي ډېرې صحابه کرام په مکه کي د اوسېدو پر مهال بې وزلي وو. کله چي یې له مکې څخه مدینې ته هجرت وکړ هلته ورسره انصارو هر ډول مرسته وکړه، په خپلو کورونو کي یې ځای ورکړ، په کاروبار یې ور ګډ کړل، جهاد پیل شو، نوري سیمې ونیول شوې او د غنیمت مالونه تر لاسه شول، له همدې کبله نژدې ټول صحابه کرام بډای، خوشاله او اسوده شول. مګر له دې سره - سره صحابه وو خپل مال او دولت د شخصي سوکالۍ پر وسایلو نه لګاوه، د هغوی ټول مالي وسایل د عامو مسلمانانو پر وده او پرمختګ مصرفېده. ابو امامه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: زما رب را ته وویل چي اې نبيّ! که ته غواړې د مکې ناوه به په سرو زرو درته واړوو. ما وویل: اې ربه! زما خوښه داده چي یوه ورځ وږی او بله ورځ مې نس ډک وي، په کومه ورځ چي وږی یم ستا دربار ته زاري وکړم، ستا په یاد بوخت یم او په کومه ورځ چي په ډک نس خوراک وکړم د زړه له تله ستا شکر ادا کړم او ودې ستایم.

( فتح الباري مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ ويلي: تر ما وړاندي هم پر انبياوو د لوږې او فقر سختۍ ورغلې دي او زما په الهي لورينو کي دا لورينه ډېره خوښه ده. عائشه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ هيڅکله په ډکه خېټه خوراک نه کاوه او هيڅکله يې چا ته ياد ونه هم نه ده کړې، ځکه د ده هيڅکله تر فقر و غنا او په وړي نس تر خوراک کولو بل هيڅ شی خوښ نه وو. دی به ډېر وختونه ټوله شپه د لوږې له کبله نا ارام وو خو دې لوږې به د راتلونکې ورځې له روژې نه را ګرزاوه، د شپې به يې له څه خوراک پرته روژه نيوله. حال دا چي که رسول الله ﷺ غوښتي وای نو له الله څخه يې د ټولي دنيا خزانې او د هر ډول نعمتونو پراختيا غوښتلای شوای، مګر ده د استراحت تر وسايلو فقر او لوږې ته تر جيح ورکړه. ما به د رسول الله ﷺ د دې حالت په ليدلو ژړل او په خپله مي دا حال وو چي له لوږې به نا توانه شوم، پر نس به مي لاس تېراوه او رسول الله ﷺ ته به مي ويل چي کاش مو د ګوزارې تر کچې د خوراک، څښاک وسايل درلودلای. که پراختيا او د استراحت وسايل نه وي لږ تر لږه به مو په اطمنان ژوند تېرېدای. زما د دې خبرې په اورېدو رسول الله ﷺ وويل: اې عائشې! زمونږ يې له دنيا سره څه؟ تر ما وړاندي مو د ډېري لوړې رتبې رسولان ورونه نړۍ ته راغلل او تر ما يې ډېري سختۍ وزغملې، صبر يې وکړ او په همدې حالت کي له خپل رب سره يو ځای شول، هلته په لوړو رتبو ونازول شول او ډول - ډول نعمتونه يې ورکړل. زه وېرېږم چي که په دې دنيا کي پراخي راکړل شي هسي نه چي د اخرت ابدي نعمتونه مي کم شي. ما ته دا خبره تر هر څه

خوند راکوی چي په همدې حالت کي له خپلو ورونو او دوستانو سره یو ځای شم.

عائشه ﷺ وایي چي کوم وخت رسول الله ﷺ دا خبره وکړه نو تر هغه وروسته په مشکله یوه میاشت را سره پاتي شو. بیا وفات شو او له خپل حقیقي مالک سره یو ځای شو.

(کتاب الشفا، مدارج النبوة، شمایل ترمذي)

## پر رسول الله ﷺ د ځینو بشري تکالیفو راتلو حکمت:-

رسول الله ﷺ لا هم د نورو انسانانو په څېر له سختیو سره مخامخ شوی څو یې ثواب زیات او درجې یې لوړې شي ځکه نو رسول الله ﷺ هم ناروغ شوی، هم درد پرې راغلی او هم نور تکلیفونه ور رسېدلي دي، ګرمي او یخ پرې اغېز کړی او لوږه و تنده یې زغملې ده. ځیني وختونه غوسه شوی او غوسه ورغلې ده، ستړی شوی، کمزوري پرې راغلې، ناروغ شوی، له سپرلۍ په را لوېدو زخمي شوی، د احد په جګړه کي د کفارو په لاسونو یې سر او مخ ژوبل شوي، د طایف کفارو یې پښې په وینو ولړلې، زهر ورکړل شول او جادو هم ورباندي وشو، دوا یې هم وکړه، ښکریې ولګاوه، دم یې استعمال کړ، د خپل وخت په پوره کېدو پورتني عالم ته ولاړ او د ازمویني و سختۍ له دې نړۍ ازاد شو (که دا بدني تکالیف پرې نه وای راغلي نو ممکن پر ده د الوهیت شک شوی وای.)

پر دې سربېره د ده د ژوند ټول حالات او پېښي له عبرته ډک دي څو د ده عادات د امت لپاره د ډاډ سبب وګرزي داسي چي کله سید الانبیاء ته تکلیفونه رسېږي نو موږ څه شی یو او یاد تکالیف صرف د عنصري جسد د

نوعي مشارکت له وجې پرې راتلل. پاتي شو د ده زړه نو هغه د خلګو له تعلق څخه پاک او صفا وو او د حق په مشاهده بوخت وو ځکه دی هره شېبه او هره لحظه د الله لپاره په الله کې ورک او د الله ملګری وو. ان د ده خوراک، څښاک، جامه اغوستل، حرکت او سکون، خبرې او خاموشي ټول د الله لپاره او د الله په حکم وو، ځکه نو الله ویلي: وما ینطق عن الهوی ان هو الا وحی یوحی.

دی د نفسیاتي غوښتنې له مخې هیڅ نه وایي، دا هر څه وحې دي چې پرې نازلېږي.

## ځیني غوره خویونه او عادات

رسول الله ﷺ چې به کله د سهار لمونځ وکړ نو خلګو ته به یې مخ ور واړاوه پوښتنه به یې وکړه ایا کوم ناروغ شته چې پوښتنه یې وکړو او کومه جنازه شته چې لمونځ یې ورکړم؟. که به اړتیا وه نو ورتلی به.

رسول الله ﷺ پر ځمکه کښېناست او خوراک یې کاوه، ډېر وختونه به یې استراحت هم پر ځمکه وو، د بې وزلو او بې کسو خلګو ډلې ته ورتلی، په خپله یې د هغو کار کاوه، هیڅوک یې سپک نه باله، تل به یې د غریبانو په جنازه کې ونډه اخیسته. کمزورو، بې وزلو او مفلسو کسانو ته په خپله ورتلی او مرسته یې ورسره کوله، د هر ډول غریب بلنه یې منله. د بې لاسو او بې وزلو مرسته یې کوله، د هغوی بوج یې پر غاړه اخیست، له مېلمنو سره یې ښه چلند کاوه او د خیر په کارونو کې یې مرسته کوله.

که به يې کله خپل ملګري يو ځای ته د حاکم په توګه ولېږه نو هغه ته به يې لارښوونه کوله چي خلګو ته ښې خبرې کوه، خير ورته اسانوه، دين داسي ورته وړاندي کوه چي مينه يې ورسره پيدا شي، د احکامو له وجې يې په مصيبت مه اخته کوه او نور. کوم کسان چي به د علم، پوهي او ښو اخلاقو څښتنان ول رسول الله ﷺ به يې درناوی او احترام کاوه. چا چي به مرتبه او عزت درلود، رسول الله ﷺ ورسره احسان کاوه، د خپلو عاجزانو او دوستانو درناوی يې درلود، خپلوي يې ورسره پالله، په هغوی کي يې دې ته نه کتل چي څوک غوره دی او څوک نه دی؟. هر څوک چي به يې ډېر حقدار باله زيات کومک يې ورسره کاوه، کله چي به له خپلو ملګرو سره مخ شو نو لومړی به يې سلام وراچاوه او په ډېرو احساساتو به يې ورسره مصافحه کوله. رسول الله ﷺ چي به کله د جهاد امر وکړ نو تر ټولو لومړی به په خپله ورته چمتو وو او کله چي به د جګړې ډګر ته ولاړ نو تر ټولو به وړاندي او دښمن ته نژدې وو. (وسايل الوصول الی شمايل الرسول)

**زغم او عفوه:-**

رسول الله ﷺ د خلګو پر زورونه تر ټولو ډېر صابر او حليم وو، بدي کوونکو ته يې بخښنه کوله، چا چي به ورسره بد وکړل ده ورسره نېک چلند کاوه. چا چي به څه نه ورکول ده يو شی ورکاوه، که به چا ظلم ورباندي وکړ ده ورته عفوه کوله او که به يو کار دوه اړخونه درلودل نو اسان اړخ به يې غوره کاوه په دې شرط چي ګناه به نه وه (په دې سره يې خپلو پيروانو ته اساني پيدا کوله او دا هم تجربه ده چي اساني خوښوونکی طبيعت نور هم اساني ته را بولي) رسول الله ﷺ هيڅکله د خپل شخصيت لپاره انتقام نه دی

اخیستی، هیڅ شی (انسان یا حیوان) یې په خپل لاس نه دی وهلی او د الله په لارکي جهاد بېله خبره ده. (شمایل ترمذي، نشر الطیب)

عایشه ﷵ وایي چي رسول الله ﷺ د الله په لارکي له جهاد پرته هیڅ شی په خپل لاس نه دی وهلی، نه یې کوم خادم وهلی او نه یې کومه ښځه. دا وایي: ما هیڅکله نه دي لیدلي چي رسول الله ﷺ دي پر خپل شخصیت له یو چا د ظلم بدله اخیستې وي، البته که به چا د الهي حرمتونو سپکاوی وکړ (مثلاً یو ناروا کار به یې ترسره کړ) نو تر رسول الله ﷺ ډېر افسوس کوونکی به نه وو. (شمایل ترمذي)

یو ځل یو ځارایي راغی او د رسول الله ﷺ څادر یې په دومره سختي کش کړ چي ښې یې په غاړه کي معلومې شوې او ویې ویل: زما پر دې اوښانو غله بار کړه، ته یې د ځان او یا خپل پلار له ماله نه راکوې (یعني د بیت المال مال زموږ دی ستا نه دی) رسول الله ﷺ وویل: څو چي د څادره کشولو بدله را نه کړې غله به درنه کړم، هغه وویل: په الله قسم! بدله یې نه درکوم. رسول الله ﷺ موسکی وو او د هغه پر اوښه یې د غلې بارولو امر وکړ.

(خصائل نبوي)

## مسکنت:-

انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ د ناروغانو پوښتنه کوله، په جنازه کي یې ونډه اخیسته، پر خره سپرېده او د مریانو بلنه یې منله. (شمایل ترمذي)

خپلې مېږي یا وزې یې لوشلې، جامې یې ګنډلې او د اړتیا پر مهال یې خپل پایزار ګنډل او د خپلې کورنۍ له غړو سره یې کار کاوه. (ابن سعد)

## خاکساري:-

رسول اللهﷺ ډېر حليم وو، نه يې چا ته ښکنځل کول، نه سختې خبرې، نه يې لعنت وايه او نه يې ښېراوې کولې. رسول اللهﷺ له کافرانو او دښمنانو سره هم د هغوی د زړونو را ماتولو لپاره په ورين تندي مخ کېده او پر ناوړه خبرو يې صبر کاوه، خپل کور ته په راتلو به يې د کورنۍ له غړو سره کار کاوه، د څادره اغوستلو ته يې ډېره پاملرنه کوله چې لاس او پښې يې ښکاره نه شي (غالبا د ناستې په حالت کې همداسې وي) د رسول اللهﷺ ورين تندی او انصاف د ټولو لپاره وو چې غوسه نه پرې غالبېده.

رسول اللهﷺ د خپلو مجلسيانو لپاره په زړه کې د ظاهر خلاف خبره نه ساتله او د نظر غلا يې نه وه نو د زړه د خيانت څه احتمال شته؟.

(نشر الطيب)

رسول اللهﷺ په بدو عاداتو کې له دروغو ډېر بد وړل.

(بيهقي، ابن سعد)

## د اخرت فکر:-

رسول اللهﷺ ځان په دنيا کې د يوه مسافر په څېر ګاڼه، له راحت او مزو سره يې هيڅ تعلق نه وو، بلکې ده (کن في الدنيا کانک غريب او عابر سبيل) يعنې په دنيا کې د بې وطنه مسافر او يا لاروي په څېر اوسه عملي نمونه وه.

(نشر الطيب)

## سخاوت :-

که به رسول الله ﷺ ته د صدقې او زکات پيسې راغلې نو تر څو چې به يې پر غريبانو او مسکينانو نه وې وېشلې کور ته نه تلی. (نشر الطيب)

کله چې به رسول الله ﷺ يو محتاج او اړمن وليد نو خپل خوراک به يې هم ورکاوه، سره له دې چې اړتيا به يې ورته درلوده. د رسول الله ﷺ د سخاوت بېلابېل شکلونه وو، چا ته به يې ډالۍ ورکولې، چا ته به يې د هغه حق، ځيني وختونه به يې جامه را نيوله د قيمت په ورکولو به يې بيرته ور وبخښله، ځيني وختونه به يې قرض واخيست تر هغه زيات به يې ورکړ، ځيني وختونه به يې جامه را نيوله د بېرې پيسې به يې ورکړې او ځيني وختونه به يې ډالۍ ومنله خو تر هغې څو چنده زياته ډالۍ به يې ورکړه.

جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ هيڅکله د يوه شي له ورکړې انکار نه دی کړی (که به هغه وخت موجود وو ورکاوه يې او که به نه وو بل وخت به يې د ورکړې وعده ورکوله او يا به يې هغه ته دعا کوله چې الله دې په بله طريقه ورکړي.) (شمايل ترمذي)

په هر حال څه ډول چې ممکنه وه رسول الله ﷺ په بېلابېلو شکلونو خيراتونه او صدقات وېشل، سره له دې چې رسول الله ﷺ په خپله د مسکنت ژوند تېراوه، څو مياشتې به يې په کور کې اور نه بلېده او ډېر وختونه به يې د سختې لوږې له کبله پر نس ډبرې تړلې. د هغه فقر او تنګلاسې د مجبوريت له کبله نه وه بلکې علت يې تقوا او سخا وه، ځيني وختونه به يې د خپلو مېرمنو لپاره د يوه کال غله برابروله خو د ځان لپاره به يې هيڅ نه ساتل.
(مدارج النبوة)

## طبعي چارې:-

رسول الله ﷺ ډېر سخي وو، هيڅ سوال کوونکي ته يې نه نه ويل، که به يې درلود ل سمدستي به يې ورکول او که به ورسره نه وو نو په نرمي به يې ورته وويل چې بل وخت به يې درکړم. (ابن سعد)

تل يې رښتيا ويل، په ټولو چارو کې يې اساني کوله، د خپل مجلس غړو ته يې پام کاوه، د دوی حالات يې پوښتل کله چې به د ښېې بهر ووت نو ورو به يې پورته کېده، غلی به يې پايزار په پښه کړل، دروازه به يې پرانيستله او بهر ته به ووت. همدارنګه چې به کله کور ته راتلی نو ورو راتلی، ورو يې سلام وايه څو د بيدو کسانو خوب خراب نه شي. کله چې به څوک ورته راغی او دی به يې خوشاله وليد نو د مينې له وجې به يې د هغه لاس په لاس کې نيو. (ابن سعد)

کله چې به د يو ناخوښه نوم څښتن ورته راغی نو نوم به يې وربدلاوه.

(ابن سعد)

که به يو چا خپل زکات په دې موخه ورته راووړ چې پر مستحقينو يې ووېشي نو راوړونکي ته به يې داسې دعا کوله چې اې الله! پر فلاني رحم وکړه. (مسند احمد)

رسول الله ﷺ چې به کله د چا کور ته ورغی نو د دروازې ته مخامخ نه درېده، بلکې راسته يا چپه اړخ ته به ودرېد او د هغوی د خبرولو لپاره به يې ويل چې السلام عليکم. (ابوداود، زاد المعاد)

که به د شپې د چا کور ته ورغی نو په داسې اواز به يې سلام کاوه چې ويښ به اورېده او ويده به نه پرې خبرېده. (زاد المعاد)

د تګ پر مهال به یې کښته ځمکې ته کتل، که به له نورو خلګو سره روان وو نو تر ټولو به شا ته وو او هر څوک چې به په مخه ورتلی نو لومړی به یې سلام کاوه. په عادي ډول کښیناست او له غریبانو او مسکینانو سره په کښېنستلو یې خوراک کاوه. د ځانګړو مېلمنو مېلمستیا یې په خپله برابروله. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به ډېر وخت غلی وو، بې اړتیا خبرې یې نه کولې، کله چې به رغېده نو خبرې به یې دومره واضحې وې چې اورېدونکي پرې پوهېدل، نه یې دومره اوږدې خبرې کولې چې سړی ترې ستړی شي او نه دومره لنډې چې خبره نیمګړې پاتې شي، نه یې په هیڅ کار کې سختي کوله، نرمي یې خوښه وه، د هر را تلونکي یې درناوی کاوه، د چا خبره یې نه غوځوله، که به کوم شی د شرعې خلاف وو مخه یې نیوله، یا به له هغه ځایه ولاړ شو او د الله د هر نعمت یې ډېر قدر کاوه. (نشر الطیب)

د یو شي په ماتېدو یا خرابېدو غوسه نه ورتله البته که به کوم شی د دین خلاف وو نو سخت په غوسه کېده. (نشر الطیب)

هیڅکله یې نه په شخصي چاره کې غوسه کړې او نه یې د ځان لپاره له چا بدله اخیستې، که به له چا خپه شو نو مخ به یې ترې اړاوه خو په ژبه یې سختې خبرې نه کولې، کله به چې خوشاله وو تیټ به یې کتل، ډېر حیاناک وو. رسول الله ﷺ په شرم او حیا کې تر پېغلې انجلۍ ډېر وړاندې وو، د ډېر شرم او حیا له امله یې د چا څېرې ته مخامخ نه کتل او نه یې هیڅکله خپلې سترګې د هغه پر سترګو برابرولې. (ابن سعد)

که به په تصادفي ډول چا ته د ده له لاسه تکلیف ورسېد نو له ځه زحمت پرته یې هغه ته د بدل اخیستلو حق ورکاوه او کله به یې په بدل کي یو شی ورکړ. (زاد المعاد)

که به کوم غریب راغی یا به بوډا مینځې ورسره خبرې کولې نو د لارې پر غاړه به یې د اورېدو لپاره ودرېد او یا به کښېناست. که به دا ډول کسان ناروغان شول پوښتنې ته یې ورتلی او په جنازه کي یې برخه اخیسته.

(ابن سعد)

د رسول الله ﷺ مزاج دومره متواضع وو چي خپل امت ته یې په پوره ټینګار ویلي: تر اصلي درجې مي مه لوړوئ (لا تطروني) (زاد المعاد)

کله چي به صحابه کرام ﷺ راغلل نو ده به ورسره مصافحه کوله او هغوی ته به یې دعا غوښته. (نسایي)

که به د چا نوم ور معلوم نه وو نو د یا عبد الله! په نوم به یې را باله او د تګ پر پر مهال یې راسته او چپه اړخ ته نه کتل. (حاکم، ابن سعد)

رسول الله ﷺ غوښتل د هر چا زړه تر لاسه کړي، داسي چلند یې نه کاوه چي څوک خپه کړي، له ظالمانو او فسادیانو سره په ښه چلند یې ځان هم ساته خو له ټولو سره په غوره اخلاقو مخ کېده، هر کار یې په سم ډول ترسره کاوه، په ناسته به یې الله یاداوه، په مجلس کي چي به یې هر ځای ولید هلته به کښېناست او که به یې له څو کسانو سره خبره وه نو وار پر وار به یې هر یوه ته مخ وراړاوه. (نشر الطیب)

تر درو ورځو وړاندي یې قرآن نه ختماوه. (ابن سعد)

رسول الله ﷺ له روا کار څخه منعه نه کوله، که به چا ترې سوال وکړ او د سوال پوره کولو اراده به یې وه نو همالته به یې ورته ویل که نه چوپ کېده به. (ابن سعد)

عائشه ﵂ وایي: هیڅوک په خپلو اخلاقو کې د رسول الله ﷺ په څېر نه وو، که به صحابي او یا د کورني غړي ورو باله نو ده به په ځواب کي ورته ویل: لبیک (حاضریم). (زاد المعاد)

نفلي عبادات یې په خاموشي ترسره کول چي پر امت یې سخت نه شي. (زاد المعاد)

د رسول الله ﷺ وینا ده: ما له الله سره وعده کړې چي که زه چا ته ښکنځل وکړم او یا لعنت پرې ووایم نو د هغه په حق کي د ګناهونو د کفارې، رحمت، مغفرت او نژدېکت سبب وګرزي. (زاد المعاد)

که به یې نېک کار پیل کړ نو بیا به یې تل کاوه. (زاد المعاد)

که به په ولاړه غوسه شو نو کښېناست به او که به په ناسته غوسه شو نو پرېوتی به (څو یې غوسه سړه شيٌ). (زاد المعاد، ابن ابی الدنیا)

عائشه ﵂ وایي: رسول الله ﷺ په راسته لاس اودس کاوه، د خوراک لپاره یې ترې کار اخیست او چپه لاس یې د استنجا په څېر کارونو لپاره استعمالاوه. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ عادت درلود چي که به په صحابه کرامو کي څوک ورسره مخ شو او وبه درېد نو دی به هم ورسره درېده او څو چي به هغه په خپله نه وو تللی رسول الله ﷺ به ولاړ وو او که به چا غوښتل ده ته لاس ورکړي نو ده به لاس ورکاوه او څو چي به هغه ترې لاس نه وو لرې کړی ده نه لرې کاوه. (ابن سعد)

په يوه روايت کې دي چي رسول الله ﷺ تر هغو له چا مخ نه اړاوه څو به هغه په خپله نه وو اړولی، که به هغه غوښتل چي پټه خبره ورسره وکړي نو رسول الله ﷺ به غوږ ور اړاوه او څو چي به فارغ شوی نه وو غوږ يې نه ترې لرې کاوه. (ابن سعد)

رسول الله ﷺ به ماشومانو ته هم سلام کاوه. (زاد المعاد)

علي ﷺ وايي: کله چي به څوک په لومړي ځل رسول الله ﷺ ته راغی وېره به پرې خپره شوه او څوک چي به ورسره اشنا وو نو له ده سره يې مينه درلوده، ما د ده په څېر د جمال او کمال څښتن نه تر ده وړاندي ليدلی او نه تر ده وروسته. (نشر الطيب)

د خوښی پر مهال به يې ستر ګې ټيټولې، کله چي به د چا په اړه ورته بده خبره څرګنده شوه نو داسي يې نه ويل چي په فلاني څه شوي داسي کارونه کوي؟ بلکي ويل به يې چي په خلکو څه شوي چي دا ډول چارې ترسره کوي؟. (شمايل نبوي، ابوداود)

په ژبه يې هغه خبره کوله چي ثواب به پکښې وو، که به مسافر راغی د هغه پوښتنه يې کوله، له هر چا سره يې داسي چلند کاوه چي هغه به احساسوله رسول الله ﷺ تر هر چا له ما سره ډېره مينه لري. که به څوک د خبرو لپاره ورسره کښېناست نو د هغه تر ولاړېدو وړاندي نه ولاړېده.

(نشر الطيب)

ابو هريره ﷺ وايي: رسول الله ﷺ چي به کله اندېښمن شو نو اسمان ته به يې په کتلو ويل: سبحان الله العظيم او کله چي به يې زاری او دعاوې زياتې شوې ويل به يې: يا حي يا قيوم. (ترمذي)

په یوه روایت کي دي چي د غم پر مهال به یې د هر وخت پر پېره لاس تېراوه او کله - کله به یې په ګوتو خلالوله، ویل به یې: حسبی الله نعم الوکیل. (آل عمران)

زما لپاره الله کافي دی او د هر ښه کار جوړوونکی دی. (زاد المعاد)

دریمه برخه

# د ژوند د طرز ځانګړتیاوې

## د رشد او هدایت مدرسه

## د خیر او برکت نبوي مجلسونه

د رسول اللهﷺ مجلس د حلم او علم، حیا و صبر او ثبات و سکون مجلسونه ول، نه پکي اوازونه لوړېدل، نه د چا پر حرمت تېری کېده او نه یې تېروتنې بیانېدې. د ده د مجلس ګډونوالو د تقوا له کبله د یوه بل درناوی کاوه، هلته د مشرانو عزت او پر کشرانو شفقت وو. له اړمنو سره مرسته کېده او پر بې وطنو زړه سوی وو. (نشر الطیب)

له زید بن الحارث ﷺ څخه روایت دی چي زه د رسول اللهﷺ ګاونډی وم، کله چي به پر ده وحې نازلېده نو یو څوک به یې را ولېږه او تر حاضرېدو وروسته به مي لیکله (رسول اللهﷺ له موږ سره بې کچې مینه کوله او ډېر راسره بې تکلیفه وو) لکه څرنګه چي موږ یوه بل ته خبرې کوو او د هر څه په اړه ږغېږو رسول اللهﷺ هم داسي وو، هغه نه ویل چي له ما سره یوازې د اخرت خبرې کوئ او د دنیا یاد یې هم نه شوای زغملای یعني کله چي به د اخرت یادونه پیل شوه نو رسول اللهﷺ به یې حالات او تفصیلات بیانول او کله به د خوراک او څښاک یادونه وشوه نو رسول اللهﷺ به هم پرې ږغېده.

د خوراک اداب او ګټې، د ګټورو خوراکونو یادونه او نور هر څه د رسول اللهﷺ په مجلس کي وو. (خصایل نبوي)

کله چي به رسول الله ﷺ په مجلس کي له صحابه کرامو سره ناست وو نو د امتياز لپاره يې تر نورو خپل ورون نه را ايستی، که به چا په ولاړه ترې ديوه شي په اړه وپوښتنو دا يې نه خوښوله او په حيراني به يې ورته کتل.

(زاد المعاد)

که به رسول الله ﷺ د يوې مسئلې په بيان بوخت وو او د بيان تر ختمېدو وړاندې به يو چا بله پوښتنه وړاندي کړه نو ده به خپلو خبرو ته دوام ورکاوه، داسي به يې څرګندوله چي ګواکي هغه يې نه ده اورېدلې خو کله چي به يې خبرې خلاصې کړې نو پوښتونکی به يې معلوماوه او بيا به يې ځواب ورکاوه. د صحابه کرامو په منځ کي به ناست وو، هغوی به شاوخوا پرې را ګرځېدلي ول ده به د خبرو پر مهال کله دې لور ته خطاب کاوه او کله هغه لور ته، ګواکي په حلقه کي به هر چا د ده مخ ليده. په مجلس کي د ناستې پر مهال به يې دواړې پښې جګې ودرولې لاسونه به يې پرې حلقه کړل او په عادي حالت کي به يې هم دا ډول ناسته کوله چي دا د ساده توب او تواضع صورت دی. ځيني وختونه به چارزانو کښېناست او ځيني وختونه به د لاس پر تکيه پر يوه اړخ کښېناست. (نشر الطيب)

د رسول الله ﷺ ناسته او ولاړه ټول به د الله له ياد سره وو، د ځان لپاره يې د ناستې داسي ځای نه معلوماوه چي حتما به هلته کښېني او که بل څوک کښېني ترې ولاړ يې کړي، نور يې هم د ناستې د ځای له معلومولو منعه کول او که به غونډې ته ورغی نو چيري چي به ځای وو هلته به يې ناسته کوله نور يې هم په دې امر کول او د مجلس ټولو ګډونوالو ته يې د خپلې وينا او توجو برخه ورکوله يعني ټولو ته به يې په جلا - جلا توګه خطاب کاوه، ان د

مجلس هر ګډونوال به په دې فکر وو چې تر ما هيڅوک ور باندې ګران نه دی، که به چا د ضرورت لپاره کښېناوه يا به يې ولاړ کړ نو څو چې به هغه ترې ولاړ شوی نه وو دی نه روانېده، که به چا ترې د اړتيا پوره کولو غوښتنه وکړه نو يا به يې د هغه اړتيا پوره کوله او يا به يې په نرمي ځواب ورکاوه. د ده ورين تندی او موسکې څېره د هر مسلمان لپاره وه، دا ځکه چې دی يې روحاني پلار وو او د ده په اند ټول خلک يو ډول وو البته د تقوا له مخې يې تفاوت درلود يعنې د چا تقوا له وجې يې پر يوه بل ته ترجيح ورکوله، په نورو چارو کې ټول مساوي ول او ده ته يې يو حيثيت درلود.

(د حسن بن علي روايات)

## د مجلس له ګډونوالو سره چلند:-

رسول اللهﷺ به تل خوشاله وو او نرم اخلاق يې درلودل، په اسانۍ ورسره اشنايي پيدا کېده، نه بد خويه وو، نه بد ګويه، نه يې په منډه خبرې کولې او نه نا مناسب ږغېده، که به يې د چا خبره د طبيعت خلاف وه نو ځان يې ور باندې تېراوه يعنې نيو که يې نه پرې کوله او په صراحت سره يې نه ترې پوښتل بلکې خاموش به وو. رسول اللهﷺ ځان له درو شيانو ساتلی وو.

١) له ريا ٢) له ډېرو خبرو ٣) له بې ګټې ږغېدا

او نور يې له دوو شيانو ساتلي ول:

١) د هيچا غندنه يې نه کوله.

٢) هيچا ته يې پېغور نه ورکاوه.

٣) او د هيچا په عيبو پسې نه ګرځېده.

ده هغه څه ویل چې د ثواب هیله به یې درلوده، کله چې به ده خبرې کولې ټول مجلسیان به یې په داسي ډیټ سرناست وو لکه پر سرونو چې یې مرغان ناست وي او کله چې به دی خاموش شو نو هغوی به خبرې کولې. د ده په مخ کې یې پر هیڅ خبره شخړه نه کوله او له ده سره چې به چا خبرې کولې د هغه تر فارغېدو به ټول چوپ وو (یعني په منځ کې به نه ورلوېدل) د هر مجلسي خبره یې په دومره مینه اورېده لکه تر ټولو چې لومړنی وو یعني د هیچا د خبرې بې قدري یې نه کوله، که به د خندا خبره وه نو ده به هم خندل او که به د حیرانۍ وه دی به هم حیران شو یعني د اباحت تر کچې به له خپلو مجلسیانو سره شریک وو. د نا اشنا کس ناسمې خبرې یې زغملې او ویل به یې چې کله یو محتاج د حاجت پر غوښتلو ووینئ مرسته یې وکړئ، که به یې چا ستاینه وکړه نو ښه یې نه ګڼله، البته که به چا د احسان د بدلې په توګه کوله نو پروا یې نه وه (دا ډول ستاینه یې له حده د نه تجاوز په شرط مشروع بلله) او د یو چا خبره یې نه پرې کوله خو چې هغه به تر حد نه وو تېر شوی. که به داسي وشول نو هغه یې یا پرې کوله او یا به را ولاړېدی. (نشر الطیب)

**نېک چلند:-**

رسول اللهﷺ له بې ګټو خبرو ډډه کوله، د خلګو زړونه یې خپلول، د هغوی تر منځ یې توپیر نه کاوه، د هر قوم د درانه سړي عزت یې درلود او دا ډول سړی به یې د هغوی مشر ټاکه. خلګو ته به یې له زیانمنو خبرو د ځان ساتلو سپارښتنه کوله او د هغوی له شره یې خپل ځان هم ساته، مګر له هر چا سره په ورین تندي او خوشاله څېره مخ کېده، له ده سره د لیدونکو په اړه یې پوښتنه کوله او د دوی تر منځ چې به کومې پېښې کېدې د هغو معلومات به

يې غوښتل (څو له مظلوم سره مرسته وشي او د مفسدينو مخه ونيول شي) ښه کاريې ستايه، ملاتړيې کاوه او بدې چارې يې غندلې او سپکې ګڼلې. (نشر الطيب)

## په سلام کې بيړه:-

رسول الله ﷺ دا تواضع هم درلوده چې که به څوک ورته راغلی نو ده به اول سلام وراچاوه او د هغوی د سلام ځواب يې هم ورکاوه، په دې ځای کې د رسول الله ﷺ د زيارت کوونکو لپاره زېرې دی چې کله دی په ظاهري ژوند کې د دې ښېګڼې څښتن وو نو اوس به يې هم هر زيارت کوونکی د سلام وياړ ترلاسه کوي. د الله ځيني نژدې بندګان له داسې حالت سره مخ شوي چې د کرامت له مخې يې په خپلو غوږو د نبوي سلام اورېدلو وياړ ترلاسه کړی دی. بې شکه رسول الله ﷺ د امت لپاره په دنيوي ژوند کې هم رحمت دی او تر مرګ وروسته هم. (مدارج النبوة)

## د خبرو طرز:-

رسول الله ﷺ تل د اخرت په غم کې وو او همېشه يې د اخرت د چارو په اړه فکر کاوه، هيڅکله يې ارام نه درلود او بې اړتيا يې خبرې نه کولې، د ده چوپتيا به اوږده وه، د خبرو پيل او پای به يې څرګند وو. پيغام به يې جامع او الفاظ به يې لنډ خو معنا دار وو، د ده خبرې د حق او باطل تر منځ پرېکنده وې چې نه اوږدې وې او نه لنډې.

رسول الله ﷺ د نرم طبيعت څښتن وو، نه يې په مزاج کې سختي وه او نه يې د نورو سپکاوی کاوه، که به نعمت لږ هم وو د هغه قدر يې کاوه او د هيڅ

نعمت بدي يې نه بيانوله. د خوراكي شيانو يې نه ستاينه كوله او نه يې بدي بيانوله (بدي يې له دې وجې نه بيانوله چې نعمت دی او ستاينه يې له دې وجې نه كوله چې دپر وخت يې علت حرص او د خوندونو غوښتنه وي.)

كه به چا د حق لپ مخالفت وكړ نو تر هغه وخته يې چا د غوسې توان نه درلود چې حق به يې غالب كړی نه وو، د خپل ځان په اړه يې نه غوسه كوله او نه يې انتقام اخيست، د خبرو پر مهال يې په پوره لاس اشاره كوله او كه به يې د يوه شي په اړه تعجب كاوه نو لاس يې ور كشاوه او كله چې به يې خبرې كولې نو د خپل راسته لاس بټه ګوته به يې د چپه لاس پر ورغوي موښله او كله چې به غوسه ورغله نو مخ به يې اړاوه اړخ به يې بدلاوه او كله چې به خوشاله شو نو كښته به يې كتل (دا دواړه كارونه د حيا تاثيرات دي) ډېر وختونه به موسكی وو او په دې كې چې به يې غاښونه څرګند شول نو داسي به معلومېدل لكه اورېدونكې ږلۍ. (نشر الطيب)

رسول الله ﷺ د عربو په ټولو لهجو پوهېده. ام معبد ﷺ وايي چې د ده خبرې خوږې او رڼې وې، نه يې دومره لنډې خبرې كولې چې اړينه خبره ترې پاتې شوې وای او نه يې دومره ډېرې خبرې كولې چې بې اړتيا شيان يې ورسره يو ځای كړي وای، د ده خبرې داسي وې لكه ملغلرې چې پېيل شوې وي. (نشر الطيب)

له جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چې د رسول الله ﷺ په خبرو كې وضاحت وو او له عائشې ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ داسي خبرې كولې چې كه چا يې د الفاظو شمېر غوښتی وای نو شمارلای يې شوای. (نشر الطيب)

عائشه ﵂ وايي چي د رسول الله ﷺ خبرې ستاسو په څېر پر له پسې او چټکې نه وې بلکي واضحې وې او هر مضمون يې له بله بېل وو او ورسره ناستو کسانو په ذهن کي ښه ساتلای شو ای. (شمايل ترمذي)

انس ﵁ وايي: رسول الله ﷺ به ځيني وختونه د اړتيا له مخې يوه خبره ډېره زياته تکراروله څو يې الفاظ په ښه ډول درک شي. (شمايل ترمذي)

د کومې خبرې تفصيل چي به له کولتوري پلوه ښه نه وو نو هغه به يې په کنايي بيانوله، د خبرو پر مهال به يې خندل او په ورين تندي به رغېده.

(نشر الطيب)

**د نصيحت کولو طريقه:ـ**

رسول الله ﷺ چي به کله په مسجد کي نصيحت کاوه نو پر لکړه به يې تکيه کړې وه او که به د جګړې په ډګر کي په وينا بوخت وو نو پر لينده به يې تکيه کوله. د وعظ او نصيحت ځانګړې او لنډې ناستې خو نږدې ترهر لمانځه او په ځانګړې توګه د سهار تر لمانځه وروسته ترسره کېدې مګر د عامه پوهاوي لپاره به يې کله - کله ځيني غونډې هم جوړولې، د خبرو پر مهال چي پر کوم څه ډېر ټينګار ته اړتيا وه نو په دې الفاظو به يې قسم کاوه: والذی نفسي بيده. يعني په هغه ذات قسم چي زما ځان يې په لاس کي دی.

**د سکوت طريقه:ـ**

د رسول الله ﷺ سکوت د څلورو شيانو له وجې وو:

۱) د حلم. ۲) د بيدارو مغزو. ۳) د خپل طرز د رعايت له وجې. ۴) او فکري طرز ته د پاملرنې له وجې.

يعني حاضرينو ته به يې کتل او د هغوی د ښې او برابرې اورېدنې رعايت يې کاوه، د باقي و فاني په اړه يې فکر کاوه يعني د دنيا د فنا او اخرت د بقا په هکله به يې غور کاوه او حلم يې له خپل صبر يعني ضبط سره يو ځای کړی وو. هيڅ شي دې دومره نه غوسه کاوه چې بې ځايه ګام واخلي او بيدار مغزي يې د څلورو شيانو جامع وه:

۱) د نېکي خبرې غوره کول چې نور خلک ور پسې اقتدا وکړي.

۲) د بدې خبرې پرېښودل چې نور خلک هم ترې ډډه وکړي.

۳) پر هغه څه فکر کول چې د ده د امت ګټه وي.

۴) د امت لپاره د هغو چارو ترسره کول چې د دوی د اخرت او دنيا د دوارو کارونه پرې سم شي. (نشر الطيب)

د چارو اداره:-

د رسول اللهﷺ هر کار په اعتدال وو، ګډ-وډ يې کي نه وه چې کله به يې يو ډول او کله به يې بل ډول کړل. د خلکو په تعليم کې يې مصلحت ته پام کاوه او ور څخه غافل نه وو، ځکه دا احتمال وو چې که دوی پر خپل حال پرېښودل شي نو ځيني به په خپله له دينه پام واړوي او يا به د دين په ځينو چارو کې د اعتدال له حده په تېرېدو ستړي شي. هر حالت ته يې ځانګړی پام درلود، نه يې حق پرېښود او نه يې له حق څخه په تجاوز کولو ناحقه چارو ته ځان رساوه، د ده په نزد تر ټولو هغه څوک ډېر غوره وو چې د هر چا خير به يې غوښت او تر ټولو لوړه رتبه د هغه چا وه چې د خلکو مرسته او خواخوږي به يې په ښه ډول کوله. (نشر الطيب)

# په کور کي دننه د وختونو نظام

**مهالویش:-**

حسن ﷺ له خپل پلار علي ﷺ څخه روایت کوي چي خپل کور ته د شخصي غوښتنو لپاره د رسول الله ﷺ تګ ښکاره دی او د الله له خوا اجازه ورکړل شوې ده، کله چي به خپل کور ته ولاړ نو د کور وخت یې پر درو برخو وېشلی وو.

۱) یوه برخه د الهي عبادت لپاره.

۲) بله برخه د کورنۍ د ټولنیزو حقوقو ادا کولو لپاره.

۳) او بله برخه د ځان هوسا کولو لپاره.

خپله برخه یې د ځان او نورو تر منځ وېشلې وه، یعني د دې برخې ډېر وخت یې د خپل امت پر کار مصرفاوه او د خپلو ځانګړو دوستانو په وسیله یې د عامو خلکو چارې ترسره کولې، یعني په دې برخه کي عام خلک نه شوای راتلای مګر ځانګړي کسان راتلل او د دین او رېدلې خبرې به یې عوامو ته رسولې چي په دې توګه هغوی هم ترې ګټه اخیستله او له خلکو یې هیڅ شی نه پټول، نه دیني احکام او نه دنیوي ګټې، بلکي هر ډول فایده یې ور رسوله او په دې وخت کي د ده ټګلاره دا وه چي پوهانو او د علم و فضل څښتنانو ته یې ترجیح ورکوله، هغوی د راتلو اجازه درلوده او دا وخت یې د هغوی تر منځ د دیني فضیلت پر بنسټ تقسیماوه.

په دوی کي به ځینو یو ضرورت درلود، ځینو دوه او ځینو ډېر، نو د دوی په اړتیاوو به بوخت وو او هغوی به یې په داسي چارو بوختول چي د



دوی او امت په گټه وي، هغه شغل دا وو چي خلگو به له ده پوښتنه کوله، ده به د هغوی له حالاتو سره سم په چارو خبرول او ورته ویل به یې: په تاسو کي حاضر دي غایب هم پرې خبر کړي او دا به یې هم ویل چي که چا خپل ضرورت د کمزوری، لړوالي او نورو له کبله نه شوای را رسولای نو تاسو یې راته رسوئ ځکه ځوک چي د دا ډول یو چا ضرورت د واک تر خاونده ورسوي الله به یې د قیامت په ورځ پر پل صراط ټینګ کړي.

د رسول الله ﷺ په حضور کي همدا خبرې یادېدې او د دې خلاف څه یې نه منل (مطلب دا چي د خلگو له اړتیاوو او ګټو پرته د بې ځایه خبرو اورېدلو اجازه نه وه) خلگ به رسول الله ﷺ ته له غوښتنو سره راتلل او د څه نا څه په خوړلو به ستنېدل (یعني رسول الله ﷺ پر علمي ګټه برسېره یو څه پرې خوړل هم او له ده څخه به د هادي یعني فقیه په جوړېدلو تلل). (نشر الطیب)

**د خلوت وختونه:-**

رسول الله ﷺ هیڅکله ناڅاپه کور ته نه ورتلی چي د کورنۍ غړي پرېشان کړي، بلکي داسي به ورتلی چي هغوی به له وړاندي خبر وو. اول به یې سلام وکړ او کله چي به کور ته ورغی د یو څه نه یو څه پوښتنه یې کوله، ډېر وختونه به یې ویل چي ایا د خوراک لپاره یو څه شته او کله-کله به تر هغو خاموش وو چي موجود شی به راوړل کېده او ویل شوي چي کله به رسول الله ﷺ کور ته راتلی دا دعا به یې ویله: الحمدلله الذی کفانی و اوانی و الحمدلله الذی اطعمنی و سقاني، الحمدلله الذی من علی اسئلک ان تجیرنی من النار.

یعني هغه الله لره ستاینه چي زما ټولي اړتیاوې یې پوره کړې، پناه ځای یې راکړ او هغه الله لره ستاینه چي ما ته یې خوراک او څښاک راکړ او هغه الله لره ستاینه چي پر ما یې احسان وکړ، اې الله! له تا غواړم چي له اوره مي وساتې.

۱) همدارنګه ثابته ده چي رسول الله ﷺ انس ﷺ ته وویل چي کله کور ته ورشې نو هغوی ته سلام وکړه، دا به ستا او د کورنۍ لپاره د برکت سبب ش. (زاد المعاد، شمایل ترمذي)

۲) له اسود څخه روایت دی چي ما له عائشي ﷺ څخه وپوښتل چي رسول الله ﷺ کور ته په راتلو څه کول؟. دې وویل: له هغوی سره یې د کور په چارو کي بُرخه اخیستله، غټه یې نه ویله بلکي د کور کاریې هم کاوه مثلاً د مېږو او اوزو لوشل او د خپل پایزار ګنډل. (نشر الطیب)

په دې سره نور کارونه او معمولات و مصروفیتونه نه نفي کېږي. (مسند احمد)

۳) رسول الله ﷺ له خپلې کورنۍ او خادمانو سره د ښو اخلاقو چلند کاوه، هیڅکله یې له چا سره سختي او ناوړه سلوک نه کاوه. رسول الله ﷺ په خپل کور کي دې ته ډېر متوجې وو چي چا ته هیڅ تکلیف ونه رسېږي.

۴) کله چي به رسول الله ﷺ له خپلو مېرمنو سره وو نو ښه اخلاق او نرم طبیعت یې درلود او خندل به یې. (ابن عساکر)

۵) رسول الله ﷺ چي به کله کور ته ولاړ نو په کارو به بوخت شو، هیڅکله بې کاره نه کښېناست، عادي کارونه یې په خپله کول، مثلاً د کور پاکول، څارویو ته خوراک وراچول، اوښانو او پسونو ته پاملرنه او د هغو

لوښل. له خادمانو سره یو ځای یې خوراک کاوه، وړه یې لندول، له بازاره یې په خپله سودا راوړه، په ټوکرانو کې یې تړله، خپل پایزاریې په خپله ګنډل، پر جامو یې پینې اېښوې اونور. (زاد المعاد، مدارج النبوة)

## په خوب او ویښه کې د رسول الله ﷺ تګلاره:-

رسول الله ﷺ د شپې په پیل کې ویدېده او د نیمې شپې پر مهال را ویښېده، مسواک یې واهه، اودس یې کاوه او څومره چې به الله ورته توفیق ورکړی وو هغومره لمونځ یې کاوه. ګواکې د بدن ټولو غړو او قوتونو ته یې د خوب او استراحت برخه رسېده. رسول الله ﷺ نه تر اړتیا زیات خوب کاوه او نه تر اړتیا زیات ویښ پاتې کېده، کله چې به اړتیا شوه نو پر راسته اړخ د الله په ذکر کولو به پرېووت، تر دې چې پر سترګو به یې خوب غالب شو، په دې وخت کې به یې نه نس ډک وو، نه پر ښوی ځمکه پرېووت او نه به یې نالي ډېره لوړه وه، بلکې د پوست بستره یې درلوده چې د خورماوو له پاڼو ډکه شوې وه. ده به پر بالښت تکیه کوله، ځینې وختونه به یې لاس ونه تر سر لاندې کول او تر ټولو غوره خوب پر راسته اړخ دی. (زاد المعاد)

د رسول الله ﷺ خوب د اعتدال په اندازه وو نه ډېر ویدېدی او نه به تر اړتیا زیات بې خوبه وو، یعنې رسول الله ﷺ هم خوب کاوه او هم به یې نوافل و عبادات ترسره کول. ځینې وختونه به د شپې ویده وو، بیا به را پورته شو لمونځ به یې وکړ او بیرته پرېووت، په دې توګه به څو ځله پورته، ویده او ولاړ شو. په دې صورت کې دا خبره سمه ده چې څه به یې په خوب کې لیدل غوښتل هماغه به یې هم لیدل او څه چې به یې په ویښه لیدل غوښتل هغه به یې هم لیدل. (زاد المعاد، مدارج النبوة)

## د خوب بستره:-

امام باقر وایي چې د رسول اللهﷺ بستر څه ډول وو؟، دې وویل: د خورماوو له پاڼو ډک پوست. له حفصې ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ستاسو په کور کې یې څرنګه بستره وه؟. دې وویل: د غبرګ شوي ټاټ نالي یې وه، یوه ورځ مې فکر وکړ چې که یې څلور ځله غبرګه کړم نو یو څه به نرمه شي بیا مې همداسي غبرګه کړه رسول اللهﷺ سهار پوښتنه وکړه چې د شپې مو تر ما څه شی لاندي کړي ول؟. ما وویل: هماغه نالي وه خو د شپې مې څلور ځله غبرګه کړې وه چې یو څه نرمه شي، رسول اللهﷺ وویل: پر پخواني حالت یې پرېږدئ، نرموالي یې زه د شپې له تهجد څخه منعه کړم.

په ډېرو احادیثو کي راغلي چې بستره به یې کله د ټاټ او کله یوه بوریه وه، په ګڼو احادیثو کي دا مضمون روایت شوی چې کله به صحابه کرامو د ښې بسترې غوښتنه کوله نو رسول اللهﷺ به وویل: زما یې د دنیا له راحت سره څه؟ زه خو د هغه لاروي په څېر یم چې د سفر پر مهال د لږ دمې لپاره تر یوې ونې لاندي ناست وي او شېبه وروسته بیرته روانېږي. (خصایل نبوي)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې یو ځل د انصارو یوې مېرمنې د رسول اللهﷺ بستره ولیده چې چینه یې غوړولې ده، هغې ورته د وړیو جوړه کړې بستره ماته را ولېږله کله چې رسول اللهﷺ راغی نو ویې لیده پوښتنه یې وکړه چې دا څه دي؟. ومې ویل: فلانۍ انصاري مېرمنې ستا لپاره جوړه کړې ده. ده وویل: بیرته یې ورکړه، ما ته ښه ښکارېده ځکه مې ورنه کړه خو رسول اللهﷺ ټینګار وکړ او ویې ویل چې که ما دا شیان غوښتلای نو الله به د

سرو او سپینو زرو روان غرونه راکړي وای. په همدې سره مې هغه بستره بیرته ورکړه.

عبدالله بن مسعود ﷺ وايي چې زه یو ځل رسول الله ﷺ ته ورغلم نو پر داسې پزي بیده وو چې نښې یې د ده پر بدن ښکاره وې. ما یې په لیدلو وژړل، رسول الله ﷺ وویل: څه خبره ده ولې ژاړې؟. ما وویل: قیصر او کسرا د وریښمو پر بخملي نالیو بیدیږي او ته پر دې پوزي بیده یې؟. رسول الله ﷺ وویل: د ژړا هیڅ خبره نه شته، د هغوی لپاره دنیا او زموږ لپاره اخرت دی. (خصایل نبوي)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ پر یوه واړه پوزي لمونځ کاوه. (ابن سعد)

**د بیدیدو طریقه:-**

براء ﷺ وايي: رسول الله ﷺ چې به کله ویدیده نو خپل راسته لاس به یې تر مخ لاندې کړ او دا دعا به یې ویله: (رب قنی عذابک یوم تبعث عبادک) یعني اې ربه! ما د هغې ورځې له عذابه وساته چې ته خپل بندګان را پاڅوې. (شمایل ترمذي)

حذیفه ﷺ وايي چې کله به رسول الله ﷺ پر بستره پرېووت دا دعا به یې ویل: (اللهم باسمک اموت و احیا) یعني اې الله! ستا په نوم مرم او ژوندی کېږم. (شمایل ترمذي)

او کله چې به را پورته شو دا دعا یې ویله: (الحمد لله الذی احیانا بعد ما اماتنا و الیه النشور) یعني هغه الله لره حمد چې موږ ته یې تر مرګ وروسته ژوند راکړ او ده ته ستنېدل دي. (خصایل نبوي)

عائشه رضي الله عنها وايي: رسول الله ﷺ چې به هره شپه کله پر بستره پرېووت نو دواړه لاسونه به يې د دعا غوښتو په څېر سره يو ځای کړل، سورت الاخلاص او معوذتين به يې درې ځله پرې دم کړل، بيا به يې پر ټول بدن له سره تر پښو پر هغو ځايونو تېرول چې لاس به ور رسېدل او دا کار يې درې ځلې کاوه. له سره يې شروع کاوه، بيا يې پر مخ، د بدن پر ظاهري برخه او بيا پر نورو تېراوه. (شمايل ترمذي)

له رسول الله ﷺ څخه د بيدېدو پر مهال بېلابېلې دعاوې هم ثابتې دي او د قرآن کريم د بېلابېلو سورتونو ويل هم، په يوه حديث کې د رسول الله ﷺ وينا ده: که څوک د ويدېدو پر مهال د قرآن کوم سورت ووايي نو د الله له خوا ورته ساتونکې فرشته ټاکل کېږي چې د ويدېدو تر وخته يې ساتي.

د پورتنيو درو سورتونو وينا په خپله له رسول الله ﷺ څخه ثابته ده، پر دې سربېره د مسبحات يعني هغو سورتونو ويل هم نقل شوي چې په سبح، يسبح او سبحان سره شروع کېږي. همدارنګه د الم سجده او تبارک الذي همېشه تلاوت هم نقل شوی دی. پر دې سربېره د ايت الکرسي او سورت البقرې اخيري دوو اياتونو تلاوت هم نقل شوی دی. (فتح الباري، خصايل نبوي)

يو صحابي وايي چې ما ته رسول الله ﷺ وويل: د ويدېدو پر مهال تل قل يا ايها الکافرون واياست، پر دې سربېره له رسول الله ﷺ څخه د ګڼو نورو دعاوو ويل هم ثابت دي. (فتح الباري، خصايل نبوي)

انس ؓ وايي: رسول الله ﷺ چي به کله خپلې بسترې ته ولاړ نو دا دعا يې ويله: الحمدلله الذی اطعمنا و سقانا و کفانا واوانا فکم ممن لا کافی له و لا مؤی. (شمايل ترمذي)

يعني هغه الله لره ستاينه چي موږ ته يې خوراک، څښاک، د ټولو چارو کفايت او پناه راکړه، ډېر داسي کسان شته چي نه کوم کفالت کوونکی لري او نه پناه ورکوونکی.

**نور کارونه:-**

رسول الله ﷺ به ځيني وختونه د خورما له پاڼو پر ډکه نالي، پوزی، ټاټ او ځيني وخت پر چارپايي، پوست او ځمکه ويديده او په کورکي به يې بالښت ته تکيه وهله. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ چي به پر کوم ټاټ ويدېده ده يې يو ازي د دوه ځله غبرګولو امر کړی وو، د ويدېدو پر مهال يې د ساه اواز اورېدل کېده. رسول الله ﷺ به کله ستوني ستغ پرېووت او يوه پښه به يې پر بله واړوله خو ستر به يې نه معلومېده. که د ستر معلومېدو وېره وي نو له دا ډول پروتي څخه يې منعه کړې ده. (زاد المعاد)

- رسول الله ﷺ هيڅکله تر ماخوستن وړاندي نه بيدېده.
- رسول الله ﷺ د شپې په داسي کورکي خوب نه کاوه چي څراغ به پکي نه وو بل شوی. (زاد المعاد)

- که به رسول الله ﷺ د جنابت په حال کې د ویده او اراده درلوده نو لومړی به یې ناپاک ځای مینځه او بیا به د اوداسه په کولو ویده. (زاد المعاد)
- رسول الله ﷺ به په عمومي ډول تر خوب وړاندې د اودس کولو عادت درلود.
- که به یې د شپې په کومه برخه کې سترګې پرانیستې نو د حاجت تر پوره کولو وروسته صرف د مخ او لاسو په وینځلو ویده.
- تر ویده و وړاندې یې لومړی د بلې جامې لنګ تاړه، کمیس به یې کېښ ځوړنداوه به یې او بیا به یې تر ویده و وړاندې بستره په یوه ټوکر جارو کوله. (زاد المعاد)
- د شپې چې به رسول الله ﷺ ویده ی نو تر چارپایي لاندې به یې د لرګي یو شی ایښوده او د شپې به را ویښېده و به یې پکې بولې کولې.
- د رسول الله ﷺ سرته به یوه رنجلونې پرته وه هره شپه به یې سترګې تورولې.
- رسول الله ﷺ به د تور رنګ رنجلونې ساتله.
- کله چې به یې سترګې تورولې نو سلایي به درې ځله پکې تېرولـه او کله به یې په هره سترګه کې درې ځله تېرولـه او وروستی سلایي به یې پر دواړو سترګو تېره کړه. (ابن سعد)

- رسول الله ﷺ به تر ويدېدو وړاندي د خپلې کورنۍ له غړو سره بېلابېلې خبرې کولې، ځيني وختونه د کور په اړه او ځيني وختونه د عامو مسلمانانو د چارو په اړه. (نشر الطيب)

**د رسول الله ﷺ سرمايه:-**

رسول الله ﷺ زغره، لينديې، غشي، نېزې او ډال درلودل، دوې جابې هم ورسره وې چي د جهاد پر وخت يې کارول. لکړه يې هم درلوده د هغې په تکيه به يې تګ کاوه، پر سورلۍ به سپرېده او پر خپل اوښ به يې ګرځوله. ده د لرګي کاسه هم درلوده او د ښيښې هم، يوه داسي کاسه هم وه چي د شپې پر مهال پکي د بولو کولو لپاره تر چارپايي لاندي ايښودل کېده.

رسول الله ﷺ يو ژی او يو د ډبرې لوښی درلود چي ده او دس په کاوه، د کالو مينځلو او لاسو مينځلو لوښی يې هم درلود، د تېلو ښيښه ورسره وه او په يوه کڅوړه کي يې هنداره او ږمونځ ايښودل شوي ول. ږمونځ يې له يو ډول لرګي جوړه وه او يوه رنجلونې يې درلوده چي کله به د شپې ويدېده نو د اثمود رنجو درې سلايي به لګولې (اثمود د رنجو يو غوره ډول دی، رسول الله ﷺ ډېره ستاينه او د لګولو تاکيد کړی دی.)

له ده سره يو اينه وه او په يوه کڅوړه کي يې دوې بياتيانې او مسواک اېښودل، پر دې سربېره يې يوه لويه پياله درلوده چي څلور کړۍ يې درلودې او څلورو کسانو پورته کوله. يو مد ورسره وو، د چارپايي پښې يې له يوه لرګي جوړې وې، يوه لکړه يې هم درلوده، بستره يې له پوستو جوړه شوې وه چي د خورما پاڼې يې پکي اچولې وې. همدا د رسول الله ﷺ ټوله سرمايه وه چي په بېلابېلو احاديثو کي روايت شوې ده. (زاد المعاد)

## ميراث:-

ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها وايي چي د رسول الله ﷺ په ميراث کي نه دينار وو نه درهم او نه پسونه وو اوښان او د عمر بن الحارث په حديث کي دي چي رسول الله ﷺ په خپل ميراث کي له وسلو، يوې کچرې او خيراتي ځمکې پرته بل څه نه دي خوشي کړي. (کتاب الشفا)

له انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر زړه کجاوه حج وکړ، پر هغې صرف د څلورو درهمو يو څادر غوړېدلی وو. په همدې حالت کي يې دا دعا کوله: اې الله! ته يې د اخلاص حج کړې چي نه ريا پکښې وي او نه ځان ښودنه. دا حج يې په داسي حال کي وکړ چي د ځمکې خزانې ورته خلاصې وې او په دې حج کي يې د قرباني لپاره سل اوښان له ځان سره بوولي ول.

## له مېرمنو سره غوره چلند

رسول الله ﷺ ته د بهرني او کورني ژوند د چارو ترسره کولو لپاره الله خاص وسايل او اسباب ورکړل، ده دوې داسي ډلې درلودې چي دا ضروري فرض يې په داسي غوره طريقه او احتياط سره سرته ورساوه چي د ټولي نړۍ په وړاندي د رشد وهدايت لپاره د نبوي ژوند او د اجتماعي و فردي حالاتو يو مکمل انځور پروت دی.

لومړۍ له د صحابه کرامو وه او دويمه د امهات المؤمنين يا نبوي مېرمنو چي دوی د رسول الله ﷺ ټول حالات، عادات او د خلوت طريقه له څه تکلف پرته امت ته وړاندي کړه. د دې لپاره چي د نبوي ژوند دا ځلانده اړخ هم د انساني شرافت د ترلاسه کولو لپاره واضح شي.

## کورنی ژوند:-

رسول الله ﷺ د خپلو مېرمنو په حق کي پوره عدالت او انصاف ته پاملرنه کوله، د هیچا تر منځ یې امتیاز نه کاوه، پاتي شو محبت نو رسول الله ﷺ ویل: اې الله! پر څه شي چي زه واک لرم نو په مساوي ډول مي تقسیم کړی او څه چي مي په وس کي نه دي نو مه مي ملامتوه. له اختیاري شي څخه یې مراد چلند او ټولنیز ژوند دی، له غیر اختیاري شي څخه یې مراد مینه او طبعي میلان دی.

رسول الله ﷺ طلاق هم ورکړی خو بیرته یې رجوع وکړه او یوه میاشت یې له خپلو مېرمنو ایلاء کړې وه (د ایلاء معنا ده څه موده له طلاق پرته جلا والی).

د رسول الله ﷺ کورنی اړیکې د غوره ټولنیز ژوند او اخلاقو لوړه نمونه وه، رسول الله ﷺ د عایشي ﷺ پر ځنګانه تکیه هم کوله او په دې حالت کي یې قرآن هم وایه. ځیني وختونه به داسي هم کېدل چي دا به په حیض کی وه مګر رسول الله ﷺ به ورته توجو کوله او داسي به هم کېدل چي د روژې په حالت کي به یې ښکلوله. دا هر څه له خپلو مېرمنو سره د ده د غوره اخلاقو او لطف و کرم نتېجه وه، کله چي به په سفر تلی نو د مېرمنو تر منځ به یې نوم اچونه کوله، د هر چا نوم چي به راووت هغه به یې له ځان سره ملګرې کوله چي بیا به هیچا ګیله نه درلوده. همدا د جمهورو مسلک دی، رسول الله ﷺ ویلي: په تاسو کي غوره هغه څوک دی چي له خپلې کورنی سره ښه چلند کوي او زه تر تاسو له خپلې کورنی سره ښه چلند کوم. کله چي به یې د مازیګر لمونځ وکړ نو د امهات المؤمنین کورونو ته به هره ورځ ورتلی، له

هغوی سره به کښېناست، د دوی حالت به يې معلوماوه او د شپې پر مهال به هلته پاتېده چې نوبت به يې وو.

عائشه ﷺ وايي: رسول الله ﷺ نوبت داسي مراعت کاوه چې هيڅکله يې په موږ کي چا ته ترجيح نه ده ورکړې او داسي ډېر لږ پېښ شوي چې په ورځ کي تولو مېرمنو ته نه وي ورغلی. يو ځل صفيې ﷺ عائشې ﷺ ته وويل: ته رسول الله ﷺ راضي کړه زه به خپل نوبت تا ته درکړم. دې وويل چې ښه خبره ده. نو د هغې د نوبت په ورځ عائشه رسول الله ﷺ ته راغله، ده وويل: عائشې ته څرنګه راغلې ځه ولاړه شه دا خو د صفيې نوبت دی. دې وويل: دا د الله فضل دی چې چا ته وغواړي ورکوي يې او ټوله پېښه يې ورته بيان کړه. رسول الله ﷺ له صفيې څخه ډېر خوشاله شو.

رسول الله ﷺ به کله د شپې په لومړي او کله په وروستي برخه کي له خپلو مېرمنو سره جماع کوله، ځيني وختونه به تر غسل وروسته ويده شو او ځيني وختونه به صرف د اوداسه په کولو. رسول الله ﷺ به د انصارو نجوني له عائشې ﷺ سره لوبو ته را بللې، په روا چارو کي به دی هم ورسره وو او کله چې به عائشې او به څښلې نو ده به يې له لاسه پياله واخيستله د هغې د خولې پر ځای به يې خپله خوله ايښوده. کله چې به هغې هډوکی شکاوه نو ده به له هماغه ځايه غوښه شکوله چې د دې خوله به ورسره لګېدلې وه. يو ځل رسول الله ﷺ له عائشې سره منډه وکړه چې عائشه ترې مخ ته شوه، يو څه وخت وروسته يې دويم ځل سره وځغستل چې رسول الله ﷺ ترې مخ ته شو ځکه په اول وار د عائشې ﷺ بدن دروند نه وو، په دويمه سيالي کي يې وزن زيات

شوی وو. رسول الله ﷺ وویل: په دې څغاسته کې تر تا مخته کېدل د هغه ځل بدله ده چې ته را څخه مخته شوې. (مدارج النبوة)

ځيني وختونه به يې مېرمنو د شاوخوا کيسې او د تېر وخت پېښې بيانولې، ده به غوږ ورته نيولی وو او کله به يې په خپله هم د تېر وخت کيسې کولې. عائشه ﷞ وايي: دی به له موږ سره په خندا او خبرو داسې ناست وو چې داسې نه ښکارېده دی يو اولوا العزم نبي دی خو کله چې به د دين خبره را غله نو يا به د لمانځه وخت را ورسېد نو بيا به هغه سړی نه وو. په خوراک او څښاک کې يې پر هغوی کوم بنديز نه وو لګولی، د هر څه د خوړلو او څښلو اجازه وه او له خپل حالت سره سم يې هر څه اغوستلای شوای.

د اهل بيتو لپاره يې د سرو او سپينو زرو استعمال نه خوښاوه، هغه مهال د فيل د غاښونو ګاڼه عامه وه. ده د دا ډول ګڼو کارولو امر کړی وو، د مېرمنو صفايي يې خوښه وه، هغوی ته يې نه بد ويل او نه يې په تونده لهجه ورسره خبرې کولې، که به يې کوم شی خوښ نه شو توجو به يې کموله. عائشه ﷞ وايي: کله چې به رسول الله ﷺ کور ته راغی نو په ورين تندي به له موسکا سره را ننووت. (اسوه حسنه)

## ځيني پېښې

د بني سواء يو سړی روايت کوي چې ما له عائشې ﷞ څخه د رسول الله ﷺ د اخلاقو په اړه وپوښتل: دې وويل چې تا په قرآن کې نه دي لوستلي چې و انک لعلی خلق عظيم (القلم: ۴) يعني قرآن شاهد دی چې رسول الله ﷺ د لوړې درجې اخلاق درلودل، د هغه د اخلاقو همدا نقشه کافي ده.

راوي وايي چي ورته ومي ويل: په دې اړه يو څه را ته بيان کړه (يعني يوه ځانګړې پېښه راته بيان کړه چي د ايت په تفسير کي. يوه نمونه شي) عائشې ﷺ وويل: يو ځل ما هم رسول الله ﷺ ته خوراک تيار کړ او حفصې هم، ما خپلې مينځې ته وويل: ورشه وګوره که حفصې خوراک راووړ او زما تر خوراک وړاندي يې پر دسترخوان کېښود نو هغه توی کړه (نو هغې خوراک راووړ او مينځې توی کړ چي کاسه هم ولوېده او ماته شوه) او (پر کوم څه چي خوراک توی شو هغه دسترخوان د پوست وو ځکه نو خراب نه شو) رسول الله ﷺ هغه خوراک را غونډ کړ او حفصې ﷺ ته وويل چی ته له عائشې څخه بدله واخله يعني د خپل لوښي په بدل کي لوښی واخله.

(مسند احمد)

فايده:-

د بدلې ورکول د دې لپاره وو چي حفصه خوشاله شي څو هغه فکر ونه کړي چي د رسول الله ﷺ هم د عائشې کار خوښ دی، په داسي عادي چارو کي ذومره دقيق رعايت د ډېري مهربانۍ، لوړ نظر او تواضع دليل دی.

عائشه ﷺ وايي: ما رسول الله ﷺ ته حريره وروړه، سوده ﷺ هم هلته موجوده وه ورته ويې ويل: ته يې هم وخوره هغې يې له خوړلو ډډه وکړه، ما ورته وويل: يا به يې خورې او يا به يې په زور دربانديي خورم دې بيا هم له خوړلو ډډه وکړه. ما له حريرې لاس ډک کړ په خوله مي ور چخ کړه. رسول الله ﷺ خندل، ده زما لاس ونيو او سودې ته يې وويل: د هغې په خوله کي هم حريره ورکړه. دې خوله را ډکه کړه رسول الله ﷺ بيا هم خندل.

(جمع الفوايد عن الموصلي)

فایده:-
د رسول الله ﷺ بنه چلند او په خپل منځ کې یې د مېرمنو بې تکلفي او مینه څرګنده ده.

له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې یوه شپه رسول الله ﷺ دباندې ووت، دا وايي چې زه پرې شکمنه شوم (ګومان مې دا وو چې بلې مېرمنې ته ورغلی دی حالانکه نه دا ګومان سم وو او نه یې د دې د همېشني عادت له مخې امکان درلود. که څه هم پر دې عدل نه وو واجب او عقلا عائشې هم داسې ګومان نه شوای کولای خو طبعا معذوره وه له همدې کبله په غیرت تـرې تعبیر شـوی چې طبعـي امـر دی) وروسته رسول الله ﷺ راغـی او د خواشینۍ په حالت کې چې مې څه کول ویې لیدم. دی پوه شو، ویې ویل: ای عائشې! په تا څه شوي ایا غبطه درسره پیدا شوه؟. دا وايي چې ومې ویل: ولې به زما په څېر محبت کوونکې ستا په څېر له محبوب سره غبطه نه کوي، رسول الله ﷺ وویل: ته شیطان تېر ایستلې یې. ما وویل: اې د الله رسوله! له ما سره کوم شیطان شته؟. ده وویل: هو! ستا څه تخصیص دی له هر چا سره شیطان شته. ما وویل: اې د الله رسوله! له تا سره هم؟. ده وویـل: هو! مګر د هغه په وړاندې الله را سره مرسته کړې ان تر دې چې زه ترې خوندي یم او یا له یوه روایت سره سم هغه اسلام راوړ.

عائشه رضي الله عنها وايي چې کله به رسول الله ﷺ د خدیجې یادونه وکړه نو ډېره به یې ستایله، یوه ورځ ډېره غبطه راغله او ومې ویـل: ته ولې د یوې داسې ښځې ډېره یادونه کوې چې وره یې سرې وې؟ (یعني د غاښو نه درلودلو له وجې سـره معلومېدې؟) الله د هغې پر ځای تـر دې غـوره درکړې ده؟، ده

وویل: تر هغې یې غوره نه ده راکړې (یعني ته ترې ښه نه یې ځکه) دې پر ما په داسې حال کې ایمان راووړ چې نورو خلګو انکار وکړ، په داسې حالت کې یې رښتنی وبللم چې نورو دروغجن بللم او دې را سره مالي مرسته وکړه خو نورو خلګو بې برخې کړم (یعني هیڅ را سره خواخوږي نه درلوده ځکه د نبوت تر دعوت وروسته را سره د عامو خلګو بغض پیدا شوی وو) او الله له هغې اولاد هم راکړ خو له نورو مېرمنو اولاد نه لرم. (مسند احمد)

په دې پېښه کې د رسول اللهﷺ تعلق تر عائشې له خدیجې سره زیات وو په داسې حال کې چې د فطرت له مخې له عائشې ﷺ سره د تعلق ساتلو اسباب ډېر ول.

**د حقوقو قرباني:-**

عائشه ﷺ وایي: کله چې رسول اللهﷺ د میمونې ﷺ په کور کې ناروغ شو نو ده له خپلو مېرمنو اجازه وغوښته چې زما کور ته راشي، ټولو اجازه ورکړه.

فایده:-

له دې څخه درې خبرې معلومې شوې یوه دا چې رسول اللهﷺ د مېرمنو تر منځ عدالت کاوه، که څه هم له یو قول سره سم دا کار پر واجب نه وو. دویمه دا چې که خاوند د یوې په نوبت کې له بلې سره اوسېدل غواړي نو باید اجازه واخلي، درېیمه دا چې مېرمن هم باید په داسې حالت کې هغه ته اجازه ورکړي.

## رفيق اعلى: –

عائشه رضي الله عنها وايي: د رسول الله ﷺ په سخته ناروغي کي عبد الرحمن بن ابى بکر راغى له هغه سره تازه مسواک وو، رسول الله وليد زه پوه شوم چي غواړي يې، ما له هغه څخه واخيست په غاښه مي وژووه او تر پاکولو وروسته مي ورکړ. ده د خپل عادت له مخې ښه مسواک وکړ، بيا يې ما ته ونيو او له لاسه يې ولوېد.

په دې حديث کي دا هم دي چي ده د اسمان پر لور وکتل او دا دعا يې وکړه: اې الله! له رفيق اعلى سره مي يو ځاى کړه. تر دې وروسته له حقيقي مالک سره يو ځاى شو. (مشکوة)

له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ تر وفات وړاندي زما په غېږ کي سر ايښى وو، په همدې حالت کي مي ترې واورېدل چي اې الله! ما وبخښه، پر ما رحم وکړه او له رفيق اعلى سره مي يو ځاى کړه يعني د سپېڅلو روحونو او ملايکو له ډلې سره.

فايده: –

ځيني غلو کوونکي الله ته د نژدېکت په موخه د مېرمنو او اولادونو بېلوالى شرط ګڼي خو د رسول الله ﷺ فعل ور باندي رد دى. وګورئ تر دې به الله ته د نژدېکت بل وخت کوم وي؟ مګر په دې حال کي هم دى مېرمنې ته دومره نژدې دى چي پر هغې يې تکيه کړې. غلو کوونکي د قرب په حقيقت نه دي پوه شوي، د دې حقيقت ذکر او اطاعت دى. که په دې چاره کي مېرمن مرسته کوي نو دا تعلق د هماغه قرب لا تاکيد دى. (کثرة الازواج صاحب المعراج، د محمد اشرف علي تانوي ليکنه)

# د خوراک او څښاک طریقه

## سپېڅلي عادات :-

رسول الله ﷺ د څنګ په لګولو خوراک نه کاوه، ده ویلي چي زه بنده یم د بندګانو په څېر کښېنم او د هغوی په څېر خوراک کوم رسول الله ﷺ به په داسي ډول کښېناست چي ګواکي د ګونډو په مرسته به همدا اوس ولاړ شي یعني پر دوو تلو کښېناست. د څنګ له لګولو څخه یې مراد د ځان په اچولو ناسته او د خوراک پر مهال د پلتیو په وهلو پر کوناټو کښېنستل دي. دا د هغې ناستې په څېر ده چي څوک تر ځان لاندي د یوه شي په ایښودلو د تکیې په وهلو کښېني. (قاضي عیاض)

د مواهب لیکوال وایي چي د خوراک لپاره د دوو ځنګنونو په درولو او د دوو پښو پر شا ناسته او یا دا ډول کښېنستل مستحب دي چي راسته پښه ودروي او پر چپه پښه کښېني. ابن قیم ویلي: رسول الله ﷺ د تواضع او ادب په خاطر چپه پښه د داخل لورته د راستي پښې پر شا ایښوده. (مدارج النبوة)

د رسول الله ﷺ یوه تواضع دا هم ده چي هیڅکله به یې د خوراک بدي نه بیانوله، که به یې خوښ وو خوړ یې او که نه پرېښووی به یې او هیڅکله یې دا نه ویل چي دا څومره بد خوراک دی، تریو دی، مالګه یې زیاته ده، لږ دی او یا شوروا مسته یا نرۍ ده. (مدارج النبوة)

فایده:-

له دې معلومېږي چې د خوراک بدې بیانول غلط کار او د نبوي سنتو د اتباع خلاف ده. ځیني علماء وايي چې که په خوراک کې د یاد په توګه د بدۍ ختمولو لپاره وویل شي چې بد یې پوخ کړی او یا یې مال ضایع کړی خو دا هم د پخوونکي د زړه ماتول دي که ونه شي غوره ده. (مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ د خوراک په پیل کې بسم الله ویله او په اخیر کې یې دا حمد وایه: الحمدلله الذی حمدا کثیرا طیبا مبارکا فیه. (زاد المعاد)

تر خوراک وړاندې یې لاس مینځل او له راسته لوري یې خوراک پیلاوه. (زاد المعاد)

که به لوښی له خوراک څخه ډک وو نو رسول الله ﷺ له سره نه پیلاوی بلکې خپل مخ ته له لاندې ځای څخه به یې شروع کاوه او ویل به یې چې د خوراک برکت په لوړ ځای کې وي.

(خصایل نبوي، نشر الطیب، ابن ماجه، مشکوة)

رسول الله ﷺ چې به کله خوراک ته ګوتې ور وړې نو تر بېخه به یې نه په منډلې. (نشر الطیب)

کعب بن مالک وايي: رسول الله ﷺ په درو ګوتو خوراک کاوه او څټلې یې. (شمایل ترمذي، مسلم)

په ځینو روایاتو کې دي چې لومړی یې د منځ ګوته څټله، ورپسې د شهادت ګوته او تر هغه وروسته کوچنۍ ګوته. (خصایل نبوي)

که به یو شی نرم وو نو ډېر لږ به یې له منځنۍ ګوتې سره مبنتې ګوته هم کاروله، رسول الله ﷺ د خوراک او څښناک په شي کې ساه نه کښه او دا کار یې بد باله. (ابن سعد)

هیڅکله یې خوراک نه بویاوه او دا کار یې خوښ هم نه وو.

(نشر الطیب)

که به د رسول الله ﷺ مخ ته یو ډول خوراک پروت وو نو صرف د خپل مخ خوراک یې خوړ او که به مختلف خوراکونه وو نو بل لور ته یې هم لاس غزاوه. (زاد المعاد)

کله چې به خوراک راغی نو ویل به یې: اللهم بارک لنا في ما رزقتنا وقنا عذاب النار، بسم الله.

یعني اې الله! زموږ په رزق کې برکت واچوه، د اور له عذابه مو وساته، د الله په نوم یې شروع کوو.

کله چې به ي لومړۍ ګولۍ ور واخیسته ویل به یې: یا واسع المغفرة اې د پراخ مغفرت څښتنه، کله چې به یې خوراک وکړ نو ویل به یې: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وجَعَلَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ. (شمایل ترمذي)

هغه الله لره حمد چې موږ ته یې خوراک او څښناک راکړ او مسلمانان یې کړو. کله چې به دسترخوان پورته شو نو ویل به یې: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّباً مُبَارَكاً فِيْهِ غَيْر [مَكْفِيٍّ وَلاَ] مُوَدَّعٍ. وَلاَ مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا.

(بخاري، زاد المعاد، شمایل ترمذي)

ژباړه: الله لره ډېر برکتمن حمد، اې زموږ ربه موږ دسترخوان ټول وو داسې نه ده چې دا خوراک د تل لپاره کافي دی، نه یې د تل لپاره پرېږدو او نه ستا له دې نعمت څخه بې پرواکېدای شو.

کله چې به رسول الله ﷺ یو ځای مېلمه وو نو هغوی ته به یې حتما په دې الفاظو دعا کوله: اللهم بارک لهم فیما رزقتهم واغفر لهم وارحمهم. اې الله! د دوی په رزق کې برکت واچوه، ویې بخښه او رحمت پرې وکړه.

تر خوراک وروسته یې لاسونه مینځل او لانده لاسونه یې پر مخ او سر را تېرول او په یوه روایت کې د اوداسه پر غړو د تېرولو یادونه هم ده.

(ابن ماجه)

## د خوراک لپاره اودس:-

ابن عباس رضي الله عنه وایي چې یو ځل کله رسول الله ﷺ له بیت الخلا څخه راووت نو خوراک حاضر وو او د اوداسه د اوبو راوړلو وویل شول. ده وویل: ما ته هغه مهال د اوداسه امر شوی چې د لمانځه اراده وکړم.

(شمایل ترمذي)

سلمان فارسي رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وویل: تر خوراک وړاندې او وروسته اودس (د خولې و لاس مینځل) د برکت سبب دی. (شمایل ترمذي)

## تر خوراک وړاندې بسم الله:-

عمرو بن ابی سلمه رسول الله ﷺ ته ورغی، د هغه په خوا کې خوراک پروت وو رسول الله وویل: را نژدې شه او د بسم الله په ویلو په ښي لاس له خپلې مخې خوراک شروع کړه. (شمایل ترمذي)

بسم الله ویل اتفاقي سنت دی او په راسته لاس خوراک د جمهورو په نزد سنت دی، د ځینو په نزد واجب. رسول الله ﷺ امر کړی چي خوراک او څښاک په راسته لاس کوئ ځکه شیطان په چپ لاس خوراک او څښاک کوي. (خصایل نبوي)

له انس ؓ څخه روایت دی چي الله له بنده څخه په دې ډېر راضي کېږي چي کله یوه ګوله خوراک وکړي او یا یو غوړپ اوبه وڅښي نو د هغه شکر وکاږي. اللهم لک الحمد و لک الشکر لا احصی ثناء علیک

(شمایل ترمذي)

چا چي له بسم الله پرته خوراک پیل کړ نو رسول الله ﷺ به یې لاس ونیو او د بسم الله ویلو تاکید به یې ورته وکړ. (زاد المعاد)

علماوو ویلي بسم الله باید په داسي لوړ اواز وویل شي چي پر نورو بده ونه لګېږي او ویل یې وریاد شي. (ابن حبان)

د کوم نعمت په پیل کي چي بسم الله او په اخیر کي الحمد لله وي د قیامت په ورځ یې په اړه پوښتنه نه کېږي. (ابن حبان)

عائشه ؓ وایي چي رسول الله ﷺ ویلي: که څوک د خوراک په پیل کي بسم الله هېره کړي نو په منځ او یا هر وخت چي وریاد شي ودي وایي، بسم الله اوله و آخره. (زاد المعاد، شمایل ترمذي)

## د رسول الله ﷺ خوراک:-

عائشه ؓ وایي چي د رسول الله ﷺ تر مړینې د ده اهل او عیال هیڅکله پر له پسې دوې ورځې په ډک نس اوربشینه ډوډۍ نه ده خوړلې. (شمایل

ترمذي)

کله - کله به یې د غنمو ډوډۍ هم خوړله. (خصایل نبوي)

یو ځا له سهیل بن سعد ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې ایا رسول الله ﷺ کله د سپینو میده وړو ډوډۍ هم خوړلې؟. ده ځواب ورکړ چې رسول الله ﷺ ته به د ژوند تر پایه را وړل شوې هم نه وي. (بخاري، شمایل ترمذي)

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ نه هیڅکله په وړو تالونو کي خوراک کړی او نه ورته نرمه ډوډۍ پخ شوې، ده د پوست پر دسترخوان خوراک کاوه. (شمایل ترمذي)

**د خوښې خوراکونه:-**

عائشه ﷺ وایي چې یو ځل رسول الله ﷺ وویل: سورکه څومره ښه کتغ دی. (شمایل ترمذي)

په یوه حدیث کي دي چې رسول الله ﷺ سورکې ته د برکت دعا کړې او ویلي یې دي چې دا د مخکینیو انبیاوو کتغ هم وو. په یوه حدیث کي دي چې په کوم کور کي سورکه وي هغه محتاج نه دی یعني کتغ ته ضرورت نه لري. (ابن ماجه)

ابو اسد ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: د زیتون غوړي په خوراک کي هم کاروئ او په مالش کي هم ځکه دا د یوې برکتمنې ونې تېل دي. (شمایل ترمذي)

رسول الله ﷺ د اخې غوښه خوښوله او هغه یې په غاښونو خوړله (په چاړه او بل شي یې نه پرې کوله) رسول الله ﷺ په غاښونو د شکولو ستاینه هم

کړې ده. په حدیث کې دي چې غوښه په غاښونو شکوئ، په دې سره هاضمه هم ښه کېږي او بدن ته ګټه رسوي. (شمایل ترمذي)

انس ﷺ وایي: د رسول الله ﷺ کباب شوې غوښه او کدو ډېر خوښ وو. (ابن سعد، شمایل ترمذي)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې د رسول الله ﷺ سورکه، د زیتون تېل او عسل خوښ وو. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ د چرګ، پسه، اوښ او غوايي غوښه خوړلې او په شوروا کې وره شوې ډوډۍ یې خوښوله، رسول الله ﷺ مرچ او مساله هم خوړلې، نیمه پخ شوې تازه خورما، وچه خورما، چغندر او حیس (د خورما، غوړو او پنیر مالیده) یې هم خوړلي دي. انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ د کټوې او کاسې پاتې خوراک خوښاوه، رسول الله ﷺ بادرنګ له خورما سره خوړ له عبدالله بن جعفر څخه روایت دی چې عائشې ﷺ وویل: رسول الله ﷺ هندوانه له خورما سره خوړه او ویل یې چې ګرمي یې سړځکې له منځه وړي، خوږې او سړې او به یې خوښې وې، رسول الله ﷺ به خورما لندوله د هغې خوږوالی، شیدې او اوبه ټول به یې په یوه پیاله کې اچولې. پیاله له پنډ لرګي جوړه شوې وه او د اوسپینې لاستې پکښې وو. (ابن سعد)

رسول الله ﷺ دا هم ویلي چې له شیدو پرته بل هیڅ شی د خوراک او څښاک ذواړو کار نه شي ورکولای. (نشر الطیب)

**مېلمه پالنه:-**

رسول الله ﷺ به د خوراک لپاره پر خپلو مېلمنو ټینګار کاوه او بیا - بیا به یې ورته ویل، یو ځل یې یوه سړي ته د شیدو تر ورکولو وروسته بیا - بیا

وویل چي اشرب، اشرب نوري و څښه، نوري و څښه ان هغه به د قسم په کولو وویل: په هغه لوړ الله قسم چي ته يې له حق سره را لېږلی يې نوري نه شم څښلای. (بخاري، مدارج النبوة)

که به يې په کومه ډله کي په اتفاقي توګه خوراک کاوه نو تر ټولو وروسته به ولاړېده ځکه ځيني کسان تر ډېره د خوراک عادت لري او داسي کسان چي کله نور پر ولاړېدو ويني نو په خپله هم له شرمه ولاړېږي، د همدې خلګو په رعايت به رسول الله ﷺ وړې - وړې ګولې کولې.
(زاد المعاد، ابن ماجه، بيهقي، مشکوة)

که به په مجلس کي ناست وو او يوه ګډونوال به د خوراک او څښاک يو شی ورکړ نو د راسته اړخ ناست کسان يې ډېر حقدار بلل هغه ته به يې ورکاوه او که به يې د چپ اړخ کښېنستونکي د ورکولو اراده کوله نو د راسته اړخ له ناست کس څخه يې اجازه غوښته. دې ترتيب او عمل ته يې تل پام کاوه که څه هم د چپ اړخ سړی به يو لوی شخصيت وو. (بخاري، مسلم، زاد المعاد)

که به رسول الله ﷺ يو ځای مېلمه وو او بل به له بلنې پرته ورپسې شو نو ده به ورسره ملګری کړ خو د کوربه کور ته په ورتلو به يې د هغه لپاره اجازه غوښته او بيا به يې ورپرېښود. (مدارج النبوة)

### د خوراک په اړه ځيني سنتونه:-

له اسماء ﷺ څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ ته ګرم خوراک راوړل شو نو تر هغه وخته به يې سر ورپټ کړی وو چي جوش به يې ختمېده او دې ويلي چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل چي د ساړه خوراک په خوړلو کي لوی برکت دی. (دارمي، مدارج النبوة)

انس رضی الله عنه وايي چي رسول اللهﷺ وويل: کله چي خوراک راوړل شي نو پايزار وباسئ ځکه په دې سره پښې هوسا کېږي. (ابن ماجه، مشکوة)

رسول اللهﷺ تر خوراک وروسته اوبه نه څښلې ځکه هاضمې ته تاوان لري څو چي خوراک هضم ته نه وي نژدې شوی باید اوبه ونه څښل شي.

(مدارج النبوة)

رسول اللهﷺ د شپې هم خوراک کاوه سره له دې چي د خورما يو څو دانې به وې او ويلي يې دي چي د ماخوستن خوراک پرېښودل بوډاتوب پيدا کوي. (ترمذي، ابن ماجه، زاد المعاد)

که به د خورما يا ډوډۍ يوه پاکه ټوټه يو ځای لوېدلې وه نو په پاکولو يې خوړه. (مسلم)

رسول اللهﷺ تر خوراک وروسته سمدستي خوب منعه کړی دی ځکه په زړه کي درونډوالی پيدا کوي، د غرمې تر خوراک وروسته لږ شېبه خوب هم سنت دی. (زاد المعاد)

هر څومره خوراک چي موجود وي بايد سړی پرې راضي شي او د الله فضل يې وبولي. (مالک)

او دا نيت دي وکړي چي د الله د امر له مخې يې د هغه پر عبادت د قوت ترلاسه کولو لپاره خورم. (الترغيب و الترهيب)

رسول اللهﷺ به د کم خوراک ستاينه کوله او ويل به يې چي د معدې يوه دريمه باید د خوراک، بله د اوبو څښلو او دريمه يې په خپله د معدې لپاره پرېښودل شي. (زاد المعاد)

مېوه او سبزي يې له مناسبو شيانو سره کارول. (زاد المعاد)

که چا ته خوراک ورکوئ یا یې ترې اخلئ نو باید راسته لاس وکارول شي. (ابن ماجه)

له څو کسانو سره خوراک برکت لري. (ابوداود)

په خوراک کي چي څو مره لاسونه ډېر وي هغو مره به برکت ولري. (مشکوة)

که د خوراک پر مهال له دسترخوان یا کاسې څخه کوم شی ولوېږي نو خوراک یې هم ثواب دی، په ځینو روایاتو کي دي چي دا له احتیاج، برص او جذام څخه ساتنه ده، څوک چي یې خوري اولاد یې له حماقت څخه خوندي کېږي او سلامتي به ولري. (مدارج النبوة)

له عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي له دسترخوان څخه لوېدلی شی خوري د هغه اولادونه ښکلي زېږي او احتیاج یې ختمېږي. (مدارج النبوة)

علي ﷺ وایي: رسول الله ﷺ د خامو پیازو له خوړلو منعه کړې ده خو تر پخېدو وروسته خوراک یې صحیح دی. (ترمذي، ابوداود، مشکوة)

په مجلس کي چي کوم څوک مشر وي خوراک باید له هغه راپیل شي. (مسلم)

که د خوراک پر مهال کوم شی یا ګوله ولوېږي نو باید بیرته یې وخوري شیطان ته دي نه پرېږدي. (ابن ماجه، مسلم)

که څوک د خوراک په منځ کي راشي باید پوښتنه ترې وشي. (ابن ماجه)

لومړی دي دسترخوان ټول شي او بیا دي خوراک کوونکي ولاړ شي. (ابن ماجه)

## د نوې مېوې استعمال: -

کله چې به رسول الله ﷺ ته د یوه موسم نوې مېوه وړاندې شوه نو ده به پر سترګو او شونډانو کېښوده دا الفاظ به یې وویل: اللهم کما ازیتنا اوله ارنا اخره. اې الله! لکه څرنګه چې دې موږ ته د دې مېوې پیل را ولید، اخیریې هم را ووینه. بیا چې به له ده سره تر ټولو کم عمره ماشوم وو هغه ته به یې ورکوله. (زاد المعاد)

## د څښلو سنتونه: -

انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ په څښاک کې درې ځله ساه ایستله او ویل یې: دا ډول څښاک خوشالوونکی، ښه او بوونکی او د روغتیا لپاره ښه دی. (شمایل ترمذي)

په یوه بل حدیث کې په صراحت ویل شوي چې که په تاسو کې څوک اوبه څښي نو په لوښي کې دې ساه نه باسي بلکې خوله دې ترې لرې کړي. (زاد المعاد، شمایل ترمذي)

د رسول الله ﷺ سړې او خوږې اوبه ډېرې خوښې وې. (زاد المعاد)

تر خوراک وروسته اوبه څښل د رسول الله ﷺ سنت نه دی په خاص ډول که اوبه ګرمې او یا ډېرې سړې وي ځکه په دواړو صورتونو کې سخت تاوان لري. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ تر ورزش وروسته د ستړیا او د خوراک میوې خوړلو پر مهال او یا تر جماع و غسل وروسته د اوبو څښل ښه نه بلل. (زاد المعاد)

په احاديثو کي دي چي رسول الله ﷺ وويل: اوبه په کشېدو وڅښئ او په غړک، غړک يې مه څښئ. (مدارج النبوة)

کله چي به رسول الله ﷺ په مجلس کي د څښاک يو شی تقسيماوه نو ويل به يې چي له مشرانو يې پيل کړئ او د ده عادت داو چي کله به په مجلس کي د خوراک شی يو بل ته پر نوبت ورکول کېده او بيا - بيا به لوښی را رسېده نو د دويم ځل په را رسېدو به يې له هغه ځايه پيل کاوه چي لومړی دوره به پرې ختمه شوې وه. کله چي به رسول الله ﷺ په خپلو دوستانو يو شی څښی نو په خپله به يې په اخير کي څښاک کاوه او ويل به يې: ساقي يې په اخير کي څښي.

رسول الله ﷺ په ناسته د اوبو څښلو عادت درلود او له ده څخه په صحيحو رواياتو کي نقل شوی چي په ولاړه يې له اوبو څښلو منعه کړې ده، همدارنګه يې په يوه لاس د اوبو څښل منعه کړي دي. (زاد المعاد)

ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ ويلي: کله چي يو چا ته الله د خوراک شی ورکړي نو بايد دا دعا ووايي: اللهم بارک لنا فيه و اطمنا خيرا منه. يعني اې الله! زموږ په دې شي کي برکت واچوه او تر هغه غوره را کړه او که شيدې وي نو بايد دا دعا ووايي: اللهم بارک لنا فيه و زدنا منه.
(شمايل ترمذي)

يعني اې الله! ته په دې کي برکت واچوه او را ډېري يې کړه.

يقينا د رسول الله ﷺ خوړې او سړې اوبه خوښې وې او دا ډول اوبه به يې له لرې ورته راوړې. (خصايل نبوي، مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ سهار وختي له عسلو سره ګډې او به څښلې، کله چي به تر يو څه وخت وروسته ورته شو نو هر څه چي به موجود وو هغه يې خوړل.

(مدارج النبوة)

د رسول الله ﷺ شيدې خوښې وې او ويل يې چي بل هيڅ داسي شی نه شته چي د خوراک او څښاک دواړو کار ورکړي، تر خوراک وروسته به يې ويل: اللهم زدنا خيرا منه. اې الله! موږ ته تر دې ښه شی را ډېر کړه.

(شمايل ترمذي)

ځيني وختونه به يې خالص شيدې څښلې او کله - کله به يې له سړو اوبو سره يو ځای شلومبې. (مدارج النبوة)

ابن عباس ﷺ وايي: ما رسول الله ﷺ ته د زمزم د اوبو بوکه راوړه نو ده په ولاړي وڅښلې (هغه وخت د ناستې ځای نه وو). (شمايل ترمذي)

ځينو ويلي چي په ولاړه اوبه څښل د اوداسه او زمزم د اوبو خاصيت دی.

## د رسول الله ﷺ جامه او سينګار

### د جامو عادت:-

رسول الله ﷺ په جامه کي د پراختيا او تکلف نه کولو عادت درلود، مطلب دا چي څه به په لاس ورتلل اغوستل يې، تا کلی شکل يې نه خوښاوه. په خاص ډول نه وو پسې، په هيڅ حالت کي يې ښه جامه نه غوښته، نه يې سپکه او حقيره بلله، څه چي به په لاس ورغلل اغوستل يې او په څه چي به يې اړتيا پوره کېده پر هغه يې بسنه کوله. ډېر وختونه به يې جامه څادر او لنګ

وو چي له ټينګ او پنډ ټوکر څخه به جوړ شوي ول، ځيني وختونه به يې نرمه جامه هم کارو له. نقل شوی چي په څادره کي يې ګنهې پينې هم وې، همدا به يې اغوستی او ويل به يې: زه بنده يم او د بندګانو په څېر جامه اغونډم.
(متفق عليه)

له ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: مومن په ټولو ښېګڼو کي د جامې پاک ساتل او په لږ څه راضي کېدلو عادت د الله خوښ دی. رسول الله ﷺ خيرنې او چټلې جامې نه خوښولې. (مدارج النبوة)

د رسول الله ﷺ لنګ به د مخ خوا ته ځوړند او د شا له خوا لوړ وو.
(مدارج النبوة)

کله چي به يې غرور او تکبر غانده نو صحابه کرامو ﷺ به ويل: اې د الله رسوله! د هر چا دا خوښېږي چي ښه جامې او پايزار ولري نو رسول الله ﷺ وويل: ان الله جميل يحب الجمال. يعني الله ښکلی دی ښکلا خوښوي. په يوه بل حديث کي دي چي ان الله لطيف يحب الطافة. بې شکه الله لطيف دی او لطافت يې خوښېږي.

د استازو د راتلو پر مهال به رسول الله ﷺ ځان سينګاراوه، د جمعې او اخترانو پر وخت به يې هم ښکلې جامې اغوستې او جلا جامه يې ساتلې وه.
(مدارج النبوة)

له ام سلمې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ته کميس ډېر خوند ورکاوه، که څه هم څادر او لنګ يې ډېر اغوستل خو د کميس اغوستل يې ډېر خوښ وو. (شمايل ترمذي)

له انس ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ کمیس له تارونو جوړ، لمن یې تنګه او لستوڼي یې درلودل، پر کمیسه یې تڼۍ لګېدلې وې د سینې پر برابر یې ګرېوان درلود او همدا کمیس سنت دی. ( مدارج النبوة)

یو صحابي وایي چي زه رسول الله ﷺ په داسي حال کي ولیدم چي د کم قیمت جامې مي اغوستې وې، نو ویې ویل: ایا ته بل ډول مال لرې؟. ما وویل: هو! الله ما ته هرډول مال او دولت راکړی. ده وویل: د الله نعمت او د هغه پېرزوینه باید ستاسو پر بدن ښکاره شي، مطلب دا چي د شتمنۍ په حالت کي مناسبې جامې اغونده او د الله شکر ادا کوه او د یوه بل ببر سري، پرېشان حالي په اړه یې وپوښتل چي ایا له ده سره داسي شی نه شته چي خپل وېښتان پرې سم کړي؟. یو بل د خیرنو او چټلو جامو خاوند یې ولید ویې ویل: دی یو داسي شی نه شي موندلای چي خپلې جامې پرې پاکې کړې؟. ( مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ توره ټوکر اغوست له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي یو ځل رسول الله ﷺ سهار د باندي ووت نو پر بدن یې له تورو وړیو جوړ څادر وو. ( شمایل ترمذي)

کله چي رسول الله ﷺ د مکې د فتحې په ورځ ښار ته ننووت نو توره لنګوټه یې پر سر وه. ( مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ د وړیو جامې هم اغوستې او ډېر وخت به یې پر ځان څادر تاو کړی وو. ( مدارج النبوة)

څرنګه چي رسول الله ﷺ په ټولو خلکو کي ښه بوی درلود او غوره جامې یې کارولې له همدې کبله یې ښه د ده پر بدن ښکاره وه. که به څوک ورسره

ولګېدو نو نه يې جامې خيرنېدې، نه يې لباس خرابېده او نه د ده پر جامو و بدن مچان کښېنستل. (مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ د پوست موزې په پښو کړې او مسحه يې پر کړې ده.
(مدارج النبوة)

د جامو په اړه تر ټولو غوره طريقه هغه ده چې ده يې امر کړی، يا يې ستايلې دي او يا يې پر له پسې وربانديې عمل کړی دی. د ده مسنونه جامه داده: له پنبه وو، وړيو او کتان څخه جوړه شوې يا هره هغه جامه چې موندل کېږي. رسول الله ﷺ يمني څادرونه، چپنه، کوټ، کميس، پرتوګ، څادر، لنګ، موزې او چوټې هر شي کارولي دي. رسول الله ﷺ حاشيه درلودونکې تورټوکر او ساده جامه هم کارولې، توره جامه او د شنو وړېښمو لستونې درلودونکې چپنه يې هم اغوستې ده. (زاد المعاد)

**پرتوګ:-**

رسول الله ﷺ پرتوګ هم را نيولی او ښکاره ده چې اغوستلو ته يې را نيولی وو او صحابه کرامو ﷺ د ده په اجازه اغوستی هم دی. (زاد المعاد)

له عائشې ﷺ څخه په صحيح روايت کې دي چې دې يوه زړه کمپله او د پنډو تارونو يو څارد را وايست او ويې ويل: رسول الله ﷺ په دې دوو ټوکرانو کې وفات شو. (زاد المعاد)

**کميس:-**

ملا علي قاري له دمياطي څخه نقل کړی چې د رسول الله ﷺ کميس له تارونو جوړ شوی وو چې نه دی اوږد وو او نه يې لستوڼي ډېره اوږده وو،

بېجوري ليکلي چي ده صرف يو کميس درلود. عائشه ﵂ وايي: رسول الله ﷺ د سهار په خوراک کي د ماښام لپاره د ساتنې عادت نه درلود او نه يې ماښام د سهار لپاره خوراک خوندي کاوه. ځيني وختونه به يې دوه جوړه جامې، کميسان، څادر، لنګ او پايزار نه درلودل.

مناوي له عباس ﵁ څخه نقل کړي چي د رسول الله ﷺ نه کميس ډېر اوږد وو او نه يې لستوڼي. له ابن عباس ﵁ څخه په رواياتو کي نقل شوي چي کميس يې تر پونډيو پورته وو. (شمايل ترمذي)

اسماء ﵂ وايي: د رسول الله ﷺ د کميس لستوڼي تر مړوندو وو. (شمايل ترمذي)

د رسول الله ﷺ د کميس لستوڼي نه ډېر تنګ وو او نه ډېر پراخ بلکي منځني وو، لستوڼي به يې د لاس تر مړونده ساتل او چپنه و نوريې تر دې ور تېر، مګر تر ګوتو به يې نه تېرېدل. (زاد المعاد)

په سفر کي د رسول الله ﷺ کميس تر وطني کميس په لمنه او لستوڼو کي يو څه کوچنی وو. (زاد المعاد)

د رسول الله ﷺ د کميس ګرېوان به پر سينه وو ځيني وختونه به يې خلاص پرېښود چي سينه به يې ترې معلومېده او په همدې حالت کي به يې لمونځ کاوه. (شمايل ترمذي)

کله چي به يې کميس اغوستی نو لومړی به يې راسته لاس پکي اچاوه او بيا چپه. (زاد المعاد)

اياس بن جعفر النخصي روايت کړی چي رسول الله ﷺ يو دسمال درلود، د اوداسه پر مهال به يې مخ پرې وچاوه. (ابن سعد)

## لنګوټه :-

د لنګوټې تړل مستحب سنت دی، له رسول الله ﷺ څخه یې د تړلو امر هم نقل شوی دی. ده ویلي چي لنګوټه تړئ په دې سره به مو حلم ډېر شي.
(فتح الباري)

له عبدالله بن عمر ؓ څخه پوښتنه وشوه چي ایا د لنګوټې تړل سنت دي؟. ده وویل: هو سنت دي. (عیني)

په مسلم او نسایي کي دي چي عمرو بن حرس ؓ وویل: ګواکي هغه ننداره مي مخ ته ده چي رسول الله ﷺ پر منبر خطبه ورکوله، توره لنګوټه یې پر سر او شمله یې د دوو اوږو تر منځ وه. (خصایل نبوي)

رسول الله ﷺ چي به لنګوټه تړله نو شمله یې د دوو اوږو تر منځ پرېښووله او ځیني وختونه به یې شمله نه درلوده.
(نشر الطیب، شمایل ترمذي)

د رسول الله ﷺ شمله به د یوې لوېشتي په اندازه وه، د شملې مقدار تر یوه لاس زیات هم ثابت دی او لنګوټه به یې نژدې اووه ګزه وه. (خصایل نبوي)

تر لنګوټې لاندي د خولۍ پر سر کول سنت دي.

## د رسول الله ﷺ خولۍ :-

رسول الله ﷺ سپینه خولۍ پر سر کوله، په وطن کي به یې له سپین ټوکر څخه جوړه شوې سپینه خولۍ کاروله. (السراج المنیر)

رسول الله ﷺ په سفر د ګنډل شوې جامې کلکه خولۍ هم کارولې ده.
(السراج المنیر)

## لنګ او پرتوګ:-

رسول الله ﷺ د لنګ تړلو عادت درلود او د پرتوګ په اغوستلو کې یې اختلاف دی، په ځینو احادیثو کې یې کارول ثابت دي او خپل ملګري یې پر کارولو لیدلي دي. په یوه حدیث کې دي چې له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ته پرتوګ اغوندې؟. نو ویې ویل: زه یې اغوندم ما ته د بدن د پټولو امر شوی دی، تر دې بل هیڅ پرده ساتونکی شی نه شته. (خصایل نبوي، زاد المعاد)

د رسول الله ﷺ لنګ څلور لاسه او یوه لوېشت اوږد وو، درې لاسه او یوه لوېشت پلن وو. (شمایل ترمذي)

په ځینو احادیثو کې دي چې څادر یې څلور لاسه اوږد او دوه نیم لاسه پلن وو او لنګ یې څلور لاسه او یوه لوېشت اوږد او دوه لاسه پلن وو. لنګ به یې تل تر نیم لینګي پورته ساتی، د لنګ مخکینۍ برخه به یې تر شاتنۍ لږ را ځوړنده وه. (شمایل ترمذي)

رسول الله ﷺ ویلي: د مسلمان لنګ باید تر نیم لینګي وي او له دې څخه کښته تر تر پونډیو هم پروا نه لري خو تر پونډیو چې څومره کښته وي هغه به په اور سوځي او څوک چې د تکبر له مخې جامه ځوړنده کړي نو الله به د قیامت په ورځ ورته ونه ګوري. (ابوداود، ابن ماجه، زاد المعاد)

انس ﷺ وایي: رسول الله ﷺ ته د یمني نقش داره ټوکرانو څادر ښه خوند ورکاوه، ځیني وختونه به یې څادر داسي اغوسته چې له راسته بغل څخه په ایستلو به یې پر چپه اوږه واچاوه. ابو سعید خدري ﷺ وایي: رسول

الله ﷺ به نوې جامه د جمعې په ورځ اغوستله، سپينه جامه يې ډېره خوښه وه او په رنګينو جامو کې شنه رنګ ډېر خوند ورکاوه. (زاد المعاد)

خالص او سخت سور رنګ يې نه وو خوښ، کله چې به يې نوې جامه واغوسته نو د ټوکر په نوم اخيستلو به يې په دې الفاظو د الله شکر ادا کړ:
اللهم لک الحمد کما کسوتنيه اسئلک خيره و خير ما صنع له و اعوذبک من شره و شر ما صنع له. يعني اې الله! ټولې ستاينې تا لره دي لکه څرنګه چې دې دا جامه را اغوستې زه له تا د هغې او هغه څه د خير غوښتنه کوم چې دا ورته جوړه شوې او د دې او هغه څه له شره پناه غواړم چې دا ورته جوړه شوې. دا دعا به يې هم کوله: الحمدلله الذی کساني ما اواری به عورتی و اتجمل به في حياتي. ټول تعريفونه هغه الله لره دي چې ما ته يې دا جامه را واغوسته، زه پرې خپل عورت پټوم او په خپل ژوند کې پرې ځان سينګاروم. (زاد المعاد)

کومه جامه چې به زړه وه هغه يې خيراتوله. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به ډېر وختونه له تارونو جوړه جامه اغوسته او کله- کله به يې د وړيو او کتان جامه هم کاروله. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ د څادره اغوستلو ته ډېر پام کاوه چې بدن يې ښکاره نه شي، غالبا يې د ويدېدو په حالت کې دا عادت درلود. ابو رمثه ﷺ وايي: ما د رسول الله ﷺ دوه شنه څادرونه ليدلي دي. (زاد المعاد)

**پايزار:-**

رسول الله ﷺ د چمپلو يا چپلکو په څېر چوټې په پښو کولې، ده د تور پوست موزې هم په پښو کړې، مسح يې ورباندې کړې او د ده په چوټو کې د

ګوتو دوې تسمې وې (یوه د بټې ګوتې او سبابې تر منځ او بله د وسطى او ورسره پیوستې ګوتې تر منځ) او پر شا به یې غبرګه تسمه وه، د ده چوټې یوه لوېشت، دوې ګوتې اوږدې او اووه ګوتې پراخې وې، د دواړو تسمو تر منځ لهٔ لاندې د دوو ګوتو فاصله وه. له وړیو یا وزغنو د پاک پوست پایزارې په پښو کول او د اوداسه پر مهال به یې پښې هم پکې اینښودلې.

دا روایت ابن عمر رضی الله عنه نقل کړی چې ده په پایزار کې لمونځ هم کړی دی (ځکه پاکې وې او جوړښت یې داسې وو چې ګوتې یې له ځمکې سره لګېدې) رسول الله ﷺ له وړیو د پاک پوست پایزار هم په پښو کړي.

(مشکوة)

ابو هریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وویل: په تاسو کې چې څوک پایزار په پښو کوي نو باید له راسته اړخه پیل وکړي او کله چې یې باسي نو له چپه اړخه دې پیل وکړي، باید راسته پښه د په پښو کولو پر مهال لومړۍ او د ایستلو پر مهال وروستۍ وي. (زاد المعاد)

پایزار به یې کله په ولاړه او کله په ناسته په پښو کول، کله چې به یې خپل پایزار وراخیستل نو د چپه لاس له بټې ګوتې سره په پیوسته ګوته به یې وراخیستل. (شمایل ترمذي)

### د خوشبو لګولو په اړه عادات:-

رسول الله ﷺ د خوشبويي شیان او خوشبو ډېره خوښوله، ډېر کارېږ ترې اخیست او نور یې هم ورته هڅول. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ د شپې په اخیر کې هم خوشبويي لګوله، کله چې به له خوبه را پاڅېد نو څاراګښت ته تر تېرېدو وروسته به یې اودس کاوه او بیا به یې پر

جامه خوشبو وهله. که به چا ورته عطر ډالۍ کړل نو حتما یې منله، د خوشبویه شي ردول یې نه ول خوښ. (زاد المعاد)

د ریحان بوی یې ډېر خوښ وو او د هغه ردول یې منعه کړي ول، د نکریزو ګل هم خوند ورکاوه او د مشک و عود خوشبویي یې تر ټولو خوښه وه. (زاد المعاد)

خوشبویي یې په سر هم مښله. ابن عمر رضی الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ وویل: دري شیان باید رد نه شي: تېل، خوشبویي او شیدې.

ابو هریره رضی الله عنه وایي: رسول الله ﷺ وویل چي مردانه خوشبویي هغه ده چي بوی ولري او رنګ یې نه لیدل کېږي لکه ګلاب او نور، زنانه خوشبویي هغه ده چي رنګ یې غالب وي او خوشبو یې مغلوبه لکه نکریزې او زعفران. (شمایل ترمذي)

انس رضی الله عنه وایي: رسول الله ﷺ عطر دانۍ درلوده او له هغې یې خوشبویي کاروله. (شمایل ترمذي)

**سترګې تورول:-**

ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي چي رسول الله ﷺ یوه رنجلونې درلوده او د ویدېدو پر مهال به یې هره سترګه درې ځله توروله.

(ابن سعد، شمایل ترمذي)

له عمران بن ابی انس څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ خپله راسته سترګه درې ځله او چپه یې دوه ځله توروله. (ابن سعد)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي تاسو باید اثمود و کاروئ ځکه دا نظر تېزوي، وېښتان را شنه کوي او د سترګو په روښانوونکو شیانو کي تر ټولو ښه دی. (شمایل ترمذي)

## د سر وېښتان:-

د رسول الله ﷺ د سر وېښتان د غوږو تر منځ وو او په ځینو روایاتو کې پر غوږونو او په نورو کې د غوږو تر نرمیو ښودل شوي دي، پر دې سربېره تر اوږو او یا اوږو ته نژدې روایات هم شته. (شمایل ترمذي)

د دې ټولو روایاتو تر منځ توافق دا دی چې کله به یې تېل ولګول او وېښتان به یې ږمونځ کړل نو اوږده به شول، که نه لنډ به وو او یا یې تر لنډولو وړاندې او وروسته لنډوالی او اوږدوالی درلود. په مواهب اللدنیه کې همدا ډول په مجمع البحار کې دي چې کله به یې ډېر وخت وېښتان لنډ نه کړل نو اوږدېدل او کله چې به یې لنډ کړل نو کوچني کېدل. له دې عبارت څخه دا هم معلومه شوه چې رسول الله ﷺ وېښتان لنډول خرییل یې نه مګر د خرییلو په اړه یې ویلي چې رسول الله ﷺ له حج او عمرې پرته بل وخت وېښتان نه خرییل. (مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ وېښتان ډېر ږمونځول، که به یې د چا تیت-پرک او شیندلي وېښتان ولیدل نو د ناخوښۍ په څرګندولو به یې ویل چې په تاسو کې چا هغه لیدلی (اشاره یې شیطان ته وه). همدا راز یې ډېر سینګارېدونکي او اوږده وېښتان هم نه خوښول، اعتدال یې ډېر خوښ وو. (مدارج النبوة)

## د ږمونځولو او تېل لګولو عادات:-

رسول الله ﷺ د ویدیدو پر مهال مسواک واهه، او دس یې کاوه، د سر وېښتان او ږیره یې ږمونځول. ده به په سفر او بې سفره دواړو حالتونو کې د

ویدېدو پر مهال اووه شیان سر ته ایښودل، د تېلو ښیښه، ږمونځ، رنجلونې، بیاتې، مسواک، هنداره او د لرګي یو وړوکی سیخ یې د کیرولو لپاره کاراوه. (زاد المعاد)

ده به اول سر او ږیره غوړول او بیا به یې ږمونځول، له ابن جریج څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د فیل له غاښو جوړه ږمونځ درلوده او په دې سره یې وېښتان ږمونځول. (ابن سعد)

له خالد بن معدان ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په سفر کي له ځان سره ږمونځ، هنداره، تېل، مسواک او رانجه وړل. (ابن سعد)

له انس بن مالک ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ سر ډېر غوړاوه او ږیره یې په اوبو پاکوله. (ابن سعد)

## په سینګار کي اعتدال:-

رسول الله ﷺ په پیل کي خپل وېښتان د لارې له ایستلو پرته یو ځای کول، او وروسته یې بیا لار پکي ایستله. (شمایل ترمذي، نشر الطیب)

په یوه بل روایت کي دي چي ده یوه نه بله ورځ وېښتان ږمونځول.

(نشر الطیب)

په یوه بل روایت کي له حمید بن ابی عبد الرحمن څخه نقل شوی چي کله - کله به یې وېښتان ږمونځول. (ترمذي)

له انس ؓ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ وېښتان نه ډېر پېچلي وو او نه ډېر خلاص بلکي یو څه پېچېده وو چي د غوږو تر نرمیو رسېدل.

(شمایل ترمذي)

عائشه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ په اودا سه، سر ږمنځولو او پايزار په پښو کولو کي راسته طرف ته لومړيتوب ورکاوه. ( شمايل ترمذي)

رسول الله ﷺ به د ډيرې تر مينځلو وروسته هم هغه ږمنځوله، کله چي به يې په هنداره کي وکتل نو دا الفاظ به يې ويل: اللهم حسنت خلقي فحسن خلقي واوسع علی في رزقي. اې الله! لکه څرنګه چي دي زما تخليق ښکلی کړی همداسي مي عادات ښکلي کړې او روزي مي پراخه کړې.
(زاد المعاد، شمايل ترمذي)

## سر په تېلو غوړول:-

رسول الله ﷺ چي به کله په تېلو د سر غوړولو اراده وکړه نو د چپ لاس په ورغوي کي به يې تېل واچول نو لومړی به يې پر وريځو تېل وهل، بيا پر سترګو او بيا پر سر.

همدا رنګه چي به يې کله ږيره غوړوله نو لومړی يې په سترګو وهل او بيا په ږيره. (زاد المعاد)

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به ډېر وخت سر په تېلو غوړاوه، ږيره به يې ږمونځوله او پر سر به يې يو ټوکر اچاوه چي د ډېرو تيلو د استعمال له کبله غوړه معلومېده. (شمايل ترمذي، زاد المعاد)

کله چي به يې په ږيره تېل وهل نو له هغې برخې به يې پيل کاوه چي له غاړې سره مښتې او په سر د تېلو وهلو پر وخت به يې د تندي له خوا شروع کوله. (زاد المعاد)

**ږيره:-**

د رسول الله ﷺ ږيره دومره ګڼه وه چي د ده سينه يې ډکه کړې وه.

(شمايل ترمذي)

په مدارج النبوة کي دي چي د الشفا ليکوال قاضي عياض ويلي: د رسول الله ﷺ د ږيرې وېښتان دومره ډېر وو چي د ده سينه ترې ډکه وه، په حنفي مذهب کي د ږيرې حد يو موټ يا قبضه ده يعني تر دې به کمه نه وي.

(مدارج النبوة)

**د بغل وېښتان:-**

په ځينو احاديثو کي ينتف الابط هم راغلي معنا رسول الله ﷺ به د بغل وېښتان کښل. (مدارج النبوة)

**تر نامه لاندي وېښتان:-**

تر نامه لاندي وېښتانو پاکولو په اړه ځينو رواياتو کي ويل شوي چي رسول الله ﷺ خرييل او په ځينو کي ويل شوي چي دوا يې کاروله.

(مدارج النبوة)

**نوکان غوڅول:-**

له ځينو رواياتو سره سم رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ نوکان پرې کول او په نورو کي ويل شوي چي د پنج شنبې په ورځ يې غوڅول. د لاسونو د نوکانو پرې کولو پر مهال رسول الله ﷺ لاندي ترتيب ته پام کاوه.

راسته لاس: د شهادت ګوته، منځنۍ، له هغې سره منبتې او بيا کمچۍ ګوته.

چپه لاس: سبابه، منځنۍ، له هغې سره منبتې ګوته، بټه ګوته او بیا د راسته لاس بټه ګوته.

د پښو د نوکانو پرېکولو کې یې لاندې ترتیب ته پام کاوه:

راسته پښه: له کمچې ګوتې یې پیل کاوه او په ترتیب سره پر بټه ګوته پای ته رساوه.

چپه پښه: له بټې ګوتې یې پیل کاوه او په ترتیب سره یې پر کمچۍ پای ته رساوه. رسول الله ﷺ به په پنځلسو ورځو کې نوکان پرېکول.

(شمایل ترمذي)

## د سر وېښتان:-

د سر خرېيلو په اړه د رسول الله ﷺ سنت دا دی چې یا به یې ټول خرېيل، یا به یې ټول پرېښودل نه دا چې ځینې برخه به یې خرېيله او ځینې به یې پرېښووه. (زاد المعاد)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ بریتونه غوڅول.

(زاد المعاد)

په بېلابېلو احادیثو کې په مختلفو الفاظو د رسول الله ﷺ هدایت نقل شوی چې د ډېرې لویولو امریې کړی دی او د بریتونو په غوڅولو کې یې پر مبالغه ټینګار کړی دی. د اکثرو علماوو تحقیق دا دی چې د بریتونو غوڅول سنت دي، مګر غوڅول باید داسې وي چې خرېيلو ته نژدې شي.

(خصایل نبوي)

په صحیح مسلم کې له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: بریتونه او نوکان په څلوېښتو ورځو کې دننه غوڅوئ. په صحیحینو کې له

ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د مشرکینو مخالفت وکړئ، ږیرې لویې او بریتونه کم کړئ. (زاد المعاد)

کوم څوک چې وېښتان لري باید ویې مینځي، پاک یې وساتي او هره ورځ د سرو ږیرې د وېښتانو ږمونځولو په اړه غوره داده چې یوه نه بله ورځ یې ږمونځ کړي. (ابوداود، مشکوة)

په نکریزو د سپینې ږیرې رنګولو اجازه شته مګر تور والی یې منعه او مکروه دی. (خصایل نبوي، بهشتي ګوهر)

## د وېښتانو، ږیرې او بریتونو په اړه سنت:-

تریو متې غټېدو وروسته د ښکلا په موخه د ږیرې د راسته او چپه اړخ برابرول خو ږیره باید هیڅکله تر متې کمه نه وي، د بریتونو په غوڅولو کې باید ښه مبالغه وشي. (ترمذي)

شرعي حدودو ته په پام باید لار جوړه او د سر و ږیرې وېښتان برابر او همدارنګه تیل پرې ووهل شي. (موطا مالک)

سر دې یا ټول پرېږدي یا دې بالکل وخریيي، یوازې د یوې برخې وېښتان پرېښوول حرام دي. پر سر باید له سنت سره سم پټې پرېږدي.

(ابوداود)

ترنامه لاندې د بغل او پزې وېښتان باید واخلي. (بخاري و مسلم)

یادونه:-

که څلوېښت ورځې تېرې شي او صفا یې نه کړي نو ګناه ده، ږیره دې یا په نکریزو سره کړي او یا دې سپینه پرېږدي. دواړه کارونه روا دي او ښځې باید پر نوکانو نکریزې ولګوي. (ابوداود)

یادونه:- نن سبا د نوکانو د فالشو وبا پر ډېرېدو ده نو د غسل او اوداسه لپاره دي پاک کړي که نه غسل او اودس یې نه کېږي. (بهشتي ګوهر)

## د رسول الله ﷺ ځیني نور عادات

### نبوي ناسته:-

له جابر بن سمره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ چارزانو هم کښېناست او ځیني وختونه په بغل کي د لاس په نیولو هم، د ده وینا ده چي رسول الله ﷺ مي ولید پر چپ اړخ یې بالښت ته تکیه کړې وه او ناست وو.

(شمایل ترمذي)

حنظله بن حزیم ؓ وایي چي زه رسول الله ﷺ ته ورغلم نو دی چارزانو ناست وو او یوه پښه یې پر بله ایښې وه (راسته پښه پر چپه پښه)

(الادب المفرد)

### د تګ ډول:-

کله چي به رسول الله ﷺ تلی نو په پوره طاقت به یې پښه پورته کوله او داسي به روان وو چي د مخ خوا ته به یې میلان درلود او په تواضع سره به یې ګام اخیست، د تلو پر مهال به داسي ښکارېده چي ګواکي له لوړې را کښته کېږي. کله چي به یې پر اړخ یو شي ته کتل نو پوره به را ګرزېده (د سترګو تر چولو د کتلو عادت یې نه وو) نظر به یې ټیټ ساته، پورته د کتلو په پرتله یې کښته ځمکې ته د نظر کولو عادت ډېر وو. عموما یې د سترګو تر ګوښه د کتلو عادت درلود (مطلب دا چي له ډېري حیا یې د پوره سر په پورته کولو

نه کتل) صحابه به یې په تنګ کي مخ ته کول، له هر چا سره چي به مخ شو نو لومړی به یې ورته سلام کاوه. (نشر الطیب)

رسول الله ﷺ او صحابه کرام چي به کله پر لوړه پورته کېدل تکبیر به یې وایه او کله چي به ښېلو ته کښته کېدل نو تسبیحات یې ویل. (زاد المعاد)

**موسکا:-**

جابر ؓ وایي چي رسول الله ﷺ به یوازي موسکی وو.

(شمایل ترمذي)

بلکي ده به یوازي تبسم کاوه او د خندا پر خبره به صرف موسکی شو.

(زاد المعاد)

عبدالله بن الحارث وایي چي ما تر رسول الله ﷺ هیڅوک ډېر موسکا کوونکی نه دی لیدلی. (شمایل ترمذي)

جریر ؓ وایي چي رسول الله ﷺ به زه هر وخت ولیدم نو موسکی به شو یعني په ورین تندي را سره مخ کېده. (شمایل نبوي)

**د رسول الله ﷺ ژړا:-**

د خندا په څېر یې ژړا هم داسي وه چي اوازیې نه درلود، د ژړا پر مهال به حتماً داسي کېدل چي سترګې به یې ډکېدې او اوښکې به تړې بهیدې. د ژړا له وجې به یې د سینې نرم اواز اورېدل کېده، ځیني وختونه به یې پر مړي د شفقت له مخې ژړل، ځیني وختونه له امت سره د خواخوږۍ له کبله، ځیني وختونه د الله له وېري او کله - کله د الهي کلام په اورېدو. وروستۍ ژړا به یې د محبت، مینې او الهي جلال د وېري له وجې وه. (زاد المعاد)

## نبوي مزاق:-

که څه هم د رسول الله ﷺ په مجلس کي به هر وخت د وقار، هوښیارۍ او سنجېدګي فضا موجوده وه ان تر دې چي په خپله صحابه کرام وایي: موږ به د رسول الله ﷺ په مجلس کي په داسي ادب او وقار کښېنستو چي ګواکي پر سرونو مو مرغان ناست دي او په خوځېدو به والوزي مګر بیا به هم د رسول الله ﷺ د خوش طبعي ځرک دې مجلسونو ته ښکلا بخښله، ځکه رسول الله ﷺ که له یوې خوا د را لېږل شوي نبي په توګه د رسالت احترام ته پام کاوه او په وعظ و تلقین به بوخت وو نو له بلې خوا یې له صحابه کرامو سره د یوه بې تکلفه دوست او خوش مزاجه ملګري په توګه ناسته- پاسته درلوده. که به ډېر وختونه د رسول الله ﷺ مجلس یوازینی درسګاه او تعلیمي اداره وه نو د لږ شیبې لپاره به د خوش طبع او مهذبو دوستانو ناسته هم وه. هلته به د خوشالۍ خبرې کېدې او د کورني ژوند ورځنۍ کیسې به بیانېدې.

لنډه دا چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ؓ بې تکلفه مجلس کاوه، مګر پوښتنه داده چي د رسول الله ﷺ مزاق څه ډول وو؟. د دې تشریح ځکه اړینه ده چي په ډېرو کارونو کي زموږ د ناسم عمل له کبله مو نظریات هم بدل شوي دي، خیالونه له کومه کوم ځای ته رسېدلي؟، په هره معامله کي اعتدال له منځه تللی. که سنجیده او هوښیار پاتېږو نو دومره چي خوشالي او ټوکي- ټکالې په سلګونو میله را څخه لرې وی او که خوش طبعي کوو نو تهذیب په سلګونو میله را څخه لرې وي له همدې کبله باید د رسول الله ﷺ په عمل کي خپل مخ ته یو خاص معیار کښېږدو.

د ده د مزاح تعریف په خپله د هغه له ژبې داورئ: صحابه کرامو په تعجب ور څخه پوښتنه وکړه چي ایا ته هم مزاق کوې؟. نو ده وویل: هو! بې شکه مګر زما مزاق بالکل رښتیا وي. (شمایل ترمذي)

مګر د دې په مقابل کي نن سبا زموږ مزاق هغه دی چي پکي دروغ، غیبت، بهتان، سپکې - سپوري او بې ځایه مبالغې وي. دلته د نبوي مزاق ځیني پېښي راوړم چي له مخې به یې موږ د مزاق سم تخیل خپل کړای شو. همدارنګه تر دې وروسته له ماشومانو سره د نبوي محبت صرف هغه پېښي بیانوم چي ترې معلومه شي رسول الله ﷺ له ماشومانو سره د محبت کومه تګلاره درلوده؟.

یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی د سپرلۍ غوښتنه یې وکړه نو ده وویل: تا ته به د سپرلۍ لپاره د اوښې بچی درکړم. هغه حیران شو ځکه د اوښې بچی خو د سپرلۍ کار نه شي ورکولای. هغه وویل: اې د الله رسوله! زه به د اوښې په بچي څه وکړم؟. رسول الله ﷺ وویل: ایا داسي اوښ هم شته چي د اوښې بچی نه وي؟. (شمایل ترمذي)

یو ځل یوه بوډۍ رسول الله ﷺ ته راغله او ویې ویل: اې د الله رسوله ما ته د جنت دعا وکړه. رسول الله ﷺ وویل: بوډۍ ښځې به جنت ته ولاړې نه شي. په همدې وخت کي رسول الله ﷺ لمانځه ته ولاړ او هغې د ده د وینا تر اورېدو وروسته په ژړا پیل وکړ، کله چي رسول الله ﷺ تر لمانځه وروسته راغی نو عائشې ﵂ وویل چي اې د الله رسوله! له کومه وخته چي تا ویلي بوډۍ ښځې به جنت ته ولاړې نه شي نو هغه سپین سرې ژاړي. ده وویل: هغې ته ووایه چي بوډۍ ښځې به جنت ته ځي خو ځوانې به وي. (شمایل ترمذي)

رسول الله ﷺ د زاهر په نوم یو کلیوالي دوست درلود چي ډېر وخت به یې رسول الله ﷺ ته ډالۍ را لېږلې، یوه ورځ یې په بازار کي شیان خرڅول په تصادفي ډول رسول الله ﷺ هلته تېرېده. هغه یې ولید نو د خوش طبعي له مخې په پټه د شا له خوا ورغی په غېږ کي یې ونیوا او د مزاق له مخې یې وویل چي دا مریې څوک را نیسي؟. زاهر وویل: ما خوشي کړه څوک یې؟. کله چي یې مخ را واړاوه نو رسول الله ﷺ وو. ده وویل: اې د الله رسوله! که څوک زما په څېر غلام را نیسي نو تاوان به وکړي. (شمایل ترمذي)

## له ماشومانو سره مزاق:-

رسول الله ﷺ پر ماشومانو شفقت کاوه، له هغوی سره یې مینه درلوده، د هغوی پر سر یې لاس تېراوه، وربانديي ګران ول او دعا یې ورته کوله. که به ماشوم ور نژدې شو نو په غېږ کي یې اخیست او په ډېره مینه به یې خوراک ورکاوه. ځیني وختونه به یې د ماشوم مخ ته خپله ژبه را وایسته هغه به خوشاله شو او خندل به یې، که به پروت وو نو ماشوم به یې پر خپلو پښو کښېناوه او کله به یې پر سینه کښېناوه، که به څو ماشومان یو ځای ول نو په لیکه کي به یې ودرول رسول الله ﷺ به خپل لاسونه وغوړول کښېنستی به او وبه یې ویل: ورونو تاسو ټول زما پر خوا په منډه راشئ، هر یو چي اول ما ته لاس راوړي زه به دا شی ور کړم. ماشومان به په منډه رسول الله ﷺ ته راغلل، ځیني به یې له نس سره ولګېدل او ځیني له سینې سره. ده به په غېږ کي را ټینګ کړل او مینه به یې ورسره وکړه. (خصایل نبوي)

رسول الله ﷺ چي به کله پر ماشومانو ورغی، په خپله به یې سلام ور اچاوه، پر سر به یې لاس ور تېر کړ او واړه ماشومان به یې په غېږ کي

رسول الله ﷺ د زاهر په نوم یو کلیوالي دوست درلود چې ډېر وخت به یې رسول الله ﷺ ته ډالۍ را لېږلې، یوه ورځ یې په بازار کې شیان خرڅول په تصادفي ډول رسول الله ﷺ هلته تېرېده. هغه یې ولید نو د خوش طبعي له مخې په پټه د شا له خوا ورغی په غېږ کې یې ونیو او د مزاق له مخې یې وویل چې دا مریی څوک رانیسي؟. زاهر وویل: ما خوشي کړه څوک یې؟. کله چې یې مخ را واړاوه نو رسول الله ﷺ وو. ده وویل: اې د الله رسوله! که څوک زما په څېر غلام رانیسي نو تاوان به وکړي. (شمایل ترمذي)

## له ماشومانو سره مزاق:-

رسول الله ﷺ پر ماشومانو شفقت کاوه، له هغوی سره یې مینه درلوده، د هغوی پر سر یې لاس تېراوه، وربانديي ګران ول او دعا یې ورته کوله. که به ماشوم ورنژدې شو نو په غېږ کې یې اخیست او په ډېره مینه به یې خوراک ورکاوه. ځیني وختونه به یې د ماشوم مخ ته خپله ژبه را وایسته هغه به خوشاله شو او خندل به یې، که به پروت وو نو ماشوم به یې پر خپلو پښو کښېناوه او کله به یې پر سینه کښېناوه، که به څو ماشومان یو ځای ول نو په لیکه کې به یې ودرول رسول الله ﷺ به خپل لاسونه وغوړول کښېنستی به او وبه یې ویل: ورونو تاسو ټول زما پر خوا په منډه راشئ، هر یو چې اول ما ته لاس راوړي زه به دا شی ورکړم. ماشومان به په منډه رسول الله ﷺ ته راغلل، ځیني به یې له نس سره ولګېدل او ځیني له سینې سره. ده به په غېږ کې را ټینګ کړل او مینه به یې ورسره وکړه. (خصایل نبوي)

رسول الله ﷺ چې به کله پر ماشومانو ورغی، په خپله به یې سلام ور اچاوه، پر سر به یې لاس ور تېر کړ او واړه ماشومان به یې په غېږ کې

اخیستل. رسول الله ﷺ چي به کله یوه مور ولیده چي له خپل ماشوم سره مینه کوي نو ډېر به اغېزمن شو، کله چي به له ماشومانو سره د مور د مینې یادونه وشوه نو ویل به یې: چا ته چي الله اولاد ورکړي او دی ورسره مینه وکړي، حق یې پر ځای کړي نو د دوزخ له اوره به خوندي وي.

کله چي به رسول الله ﷺ له سفره را ستون شو نو په لاره کي به چي هر ماشوم په مخه ورغی په ډېر شفقت به یې پر خپله سپرلۍ شا ته کښېناوه.

ماشومانو هم له رسول الله ﷺ سره ډېره مینه درلوده، هر ځای چي به یې دی ولید په منډه به یې ځان ور رساوه، ده به هر یو په غېږ کي اخیست، مینه به یې ورسره کوله او د خوراک شیان به یې ورکول، کله خورماوې، کله تازه میوه او کله بل شی.

که به د لمانځه پر مهال د لمونځ کوونکو مېرمنو ماشوم وژړل نو ده به لمونځ را لنډ کړ څو یې مور نا ارامه نه شي. (خصایل نبوي)

**له اشعارو سره مینه:-**

جابر بن سمره رضی الله عنه وایي چي زه د رسول الله ﷺ تر سلو په ډېرو مجلسونو کي کښېنستلی وم چي په هغو کي به صحابه کرامو شعرونه ویل او د جاهلیت د زمانې کیسې به یې کولې، رسول الله ﷺ منعه کول نه په خاموشي یې هر څه اورېدل بلکي ځیني وختونه یې له دوی سره په خندا کي ګډون کاوه. (شمایل ترمذي)

ثرید رضی الله عنه وایي: یو ځل له رسول الله ﷺ سره پر سپرلۍ د هغه شا ته ناست وم، د امیه شعر مي ورته واوراوه تر هر شعر وروسته به رسول الله ﷺ ویل: نور

وایه. په پای کې یې وویل: د دې سړي اسلام راوړل د بر نژدې وو. (شمایل ترمذي)

عائشه ﷺ وایي: رسول الله ﷺ په مسجد کې د حسان بن ثابت لپاره منبر ایښی وو چې پر هغه په درېدو د رسول الله ﷺ له خوا د ویاړ اشعار ووایي یعني په نبوي مسجد کې د ستاینې الفاظ واوروي.

یا د رسول الله ﷺ له خوا د کفارو د تورونو ځواب ورکړي او رسول الله ﷺ دا دعا هم کوله چې الله دې په روح القدس سره د حسان مرسته وکړي تر هغه وخته چې دی د دین مرسته کوي. (شمایل ترمذي)

## د خوب پوښتلو عادت:-

د رسول الله ﷺ عادت دا وو چې د سهار تر لمانځه وروسته به چارزانو کښېناست او له خلګو به یې د خوب پوښتنه کوله، چا چې به خوب لیدلی وو بیان به یې وکړ، د خوب تر اورېدو وروسته به یې دا الفاظ ویل:

خیر تلقاه شر توقاه خیر لنا و شر لاعدائنا والحمد لله رب العالمین.

یعني خیر ته مخ کړه او له شره ځان وساته، دا دې زموږ لپاره ښه او دښمنانو ته شر وي او ټولې ستاینې د نړۍ والو رب الله لره دي. وروسته یې دا عادت پرېښی وو.

(زاد المعاد، شمایل ترمذي)

## د راسته او چپه لاس کارول:-

له داسې کارونو پرته چې د مرداري، پاکول به پکښې وو او د لاس خرابېدو وېره به وه لکه پزه پاکول، اودس وچول، پایزار اخیستل او نور پاتې ټول کارونه یې په ښي لاس کول او کله چې به یې یو چا ته شی ورکاوه نو په ښي لاس ورکاوه او که به یې یو شی اخیستنو هم یې په راسته لاس اخیست.

## د رالېږلي سلام ځواب:-

کله چې به رسول الله ﷺ ته د یو چا رالېږلی سلام ورسېد نو له رالېږل کېدونکي سره به یې راوړونکي ته هم د سلام ځواب ورکاوه او ویل به یې: علیک و علی فلان سلام.

(شمایل ترمذي)

## د خط لیکلو طریقه:-

د خط لیکلو په اړه د رسول الله ﷺ عادت دا وو چې تر بسم الله وروسته به یې د ورلېږونکي نوم لېږه او بیا به یې د هغه چا نوم لیکه چې خط ورلېږل شوی وو او وروسته به یې مضمون لیکه.

## تفریح:-

رسول الله ﷺ د باغو تفریح خوښوله او کله- کله به د تفریح لپاره باغونو ته تلی.

**دلامبو شوق:-**

رسول الله ﷺ به کله- کله د لامبو شوق هم کاوه. (شمایل نبوي)

**په سفر کې د رسول الله ﷺ عادات:-**

کله چي به رسول الله ﷺ په خپله په سفر تلی یا به یې بل څوک لېږه نو د روانېدو لپاره یې د پنځ شنبې ورځ مناسبه ګڼله. په سفر کې یې تېزه سپرلی خوښه وه او کله چي به یوه شو لاره اوږده ده نو تګ یې نور تېزاوه. کله چي به یې په سفر کې یو ځای پړاو وکړ نو سهار مهال یې د روانېدو عادت درلود، هر ځای چي به یې د کمې مودې لپاره واړول نو هلته د دوو رکعتونو له لمانځه کولو پرته نه روانېدل، کله چي به یو مسافر له سفره را ستون شو او رسول الله ﷺ ته به راغی نو له هغه سره یې معانقه کوله او پر تندي یې مچاوه. (زاد المعاد)

کله چي به رسول الله ﷺ په سفر کې له ملګرو سره یو ځای وو او باید ګډ کار شوی وای لکه خوراک پخول او نور نو ده به حتما په کار کې برخه اخیسته، مثلا په یوه پړاو کې ټولو صحابه کرامو د خوراک پخولو اراده وکړه او هر یوه پر خپله غاړه یو کار واخیست نو رسول الله ﷺ د لرګیو راوړلو مسئولیت قبول کړ. (زاد المعاد)

له سفره په را ستنېدو نېغ کور ته نه تلی بلکي لومړی به مسجد ته ولاړ، دوه رکعته لمونځ به یې وکړ او بیا به کور ته ولاړ. له سفر څخه د راتلو پر مهال چي به ښار ته په را رسېدو ماشومان په مخه ورغلل نو پر خپله سورلی

به يې کښېنول. وړوکي ماشومان به يې خپلې مخې او لويان به يې شا ته کښېنول. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ چي به کله په سفر تلی او يا به جهاد ته ووت نو په صحابه کرامو کي به يې يو نفر له ځان سره سپراوه. (زاد المعاد)

کله چي به رسول الله ﷺ سفر ته روان شو او پر سپرلۍ به په ښه ډول کښېناست نو درې ځله يې الله اکبر وايه او بيا به يې دا دعا وکړه:

سبحان الذی سخر لنا هذا و ما کنا له مقرنين و انا الی ربنا لمنقلبون انا نسئلک فی سفرنا هذا البر و التقوی و من العمل ما ترضی اللهم هون علينا سفرنا هذا و اطوعنا بعد الارض اللهم انت الصاحب فی السفر و الخليفة فی الاهل و المال. (زاد المعاد)

هغه الله پاک دی چي دا يې زموږ په واک کي راکړ، د هغه له قدرت پرته يې موږ قبضه کوونکي نه وو، بې شکه موږ به خپل رب ته ورځو، اې الله! موږ له تا په دې سفر کي نېکي او تقوا غواړو او د هغو اعمالو غوښتنه کوو چي ته پرې راضي شې، اې الله! زموږ دا سفر را ته اسان کړه او د ځمکې مسافه را ته اسانه کړه، اې الله! ته مو د سفر ملګری يې او په کورنۍ و مال کي مو خبر اخيستونکی يې.

کله چي به رسول الله ﷺ له سفره را ستون شو نو له همدې دعا سره به يې دا الفاظ زياتول: آئبون تائبون عابدون لربنا حامدون. يعني موږ له سفره توبه کوونکي، عابدان او د خپل رب حمد ويونکي را ستانه شوو.

(زاد المعاد)

کله چي به سپرلی پر لوړه وختله نو درې ځله به يې الله اکبر او دا الفاظ ويل: اللهم لک الشرف علی کل شرف و لک الحمد علی کل حال. اې الله! پر هره لوړه لويي ستا ده او ستا لپاره په هر حالت کي ستاينه ده. (زاد المعاد)

کله چي به سپرلی کښته کېده نو درې ځله به يې سبحان الله ويله. په رکاب کي د پښو ايښودلو پر مهال به يې بسم الله ويله، کله چي به يې په ښار يا کلي کي د ارولو اراده وه او له لرې به يې وليد نو درې ځله به يې ويل: اللهم بارک لنا فيها او کله چي به ور داخلېده ويل به يې: اللهم ارزقنا جناها وجنبنا الی اهلها و حبب صالحی اهلها الينا. اې الله! موږ ته يې مېوه په برخه راکړه، د ښار پر اوسېدونکو مو ګران کړه او د ښار له نېکو کسانو سره محبت راکړه. (زاد المعاد)

کله چي به رسول اللهﷺ يو څوک سفر ته لېږه نو ويل به يې: استودع الله دينک واماناتک و خواتم اعمالک. زه ستا دين، ستا د ساتنې ورشيان او ستا د اعمالو انجام الله ته سپارم. (زاد المعاد)

کله چي به رسول اللهﷺ له يوه سفره را ستون شو او خپل کور ته به ورغی نو وبه يې ويل: توبا توبا لربنا اوبا لا يغادر علينا حوبا. ډېره توبه کوو خپل رب ته راجع يو چي زموږ هيڅ ګناه پرې نه ږدي. (زاد المعاد)

کله چي به يې سفر کاوه نو د ورځې په پيل کي به روانېده او له الله به يې دعا غوښته چي د ده د امت په وختي سفر کي برکت واچوي او که به درې کسه مسافر وو نو هغوی ته به يې امر کاوه چي يو امير کړئ. (زاد المعاد)

## د سفر په اړه لارښوونې: -

غوره او مسنونه داده چي سفر ته لږ تر لږه دوه کسان ولاړ شي، يو سړی دي سفر نه کوي البته د مجبوريت او ضرورت له امله پروا نه لري. (د محدثينو فقهاوو همدا دريځ دی) د پنځ شنبې په ورځ سفر سنت دی او د شنبې په ورځ مستحب، د رسول الله ﷺ وينا ده چي کلُه د سفر اړتيا پوره شي نو خپل کور ته را ستانه شئ، بهر بې اړتيا پاتېدل ښه نه دي. که ډېري ورځې وروسته له اوږده سفره را ستون شي نو غوره داده چي ناځاپه کور ته ور نه شي بلکي د خپل راتګ خبر ورکړي او تر څه ځنډ وروسته کور ته ورشي خو که کورنۍ د هغه په راتلو له وړاندي خبره وي او انتظار کوي نو کور ته ورتګ پروا نه لري. په دې سنت طريقو عمل به ده ته په دين او دنيا کي ګټه وکړي، له سفره را ستنېدونکي ته سنت ده چي کور ته تر داخلېدو وړاندي مسجد ته ورشي او دوه رکعته لمونځ وکړي. (زاد المعاد)

**څلورمه برخه**

# د کامل او پوره دین لاربښوونې

۱) باب: ایمانیات ۲) عبادات

۳) باب: معاملات ۴) باب: ټولنیزې چارې

۵) باب: اخلاقیات ۶) باب: د نبوي ژوند سهار او ماښام

۷) باب: نکاح او زیږېدنه ۸) باب: د ناروغ پوښتنه، مرګ او ترهغه وروسته حالات

يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ * هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولاً مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ* (سورة الجمعة)

د اسمانو او ځمکې هر څه د الله تسبیح وایي او دی عزیز حکیم دی. دی هغه دی چې امیانو ته یې له دوی څخه رسول را ولېږه، د ده ایاتونه ورته تلاوتوي، تزکیه یې کوي، کتاب او حکمت ورښیي که څه هم وړاندې په ښکاره ګمراهي کې وو.

## لومړی باب ... ایمانیات

### اسلام، ایمان او احسان:-

له عمر بن الخطاب رضی الله عنه څخه روایت دی چې موږ یوه ورځ له رسول الله ﷺ سره ناست وو، ده د صحابه کرامو یوې لویې غونډې ته وینا کوله چې ناڅاپه

یو سړی را ښکاره شو، جامې یې ډېرې سپینې او وېښتان یې ډېر تور وو، د سفر هیڅ اثار پرې نه ښکارېدل. په موږ کې هیچا نه پېژانده او یو بهرنی سړی معلومېده، دی د حاضرینو حلقې ته راغی رسول الله ﷺ ته مخامخ پر دوو زنګنو داسې کښېناست چې خپلې ګونډې یې د رسول الله ﷺ له زنګنو سره ولګولې او خپل لاس یې د رسول الله ﷺ پر زنګانه کېښود ویې ویل: اې محمده ما ته ووایه چې اسلام څه دی؟. رسول الله ﷺ وویل: اسلام دا دی چې ته شاهدي ورکړې له الله پرته بل معبود نه شته، محمد د الله رسول دی، لمونځ وکړې، زکات ورکړې، د رمضان روژه ونیسې او که طاقت ولرې د بیت الله حج وکړې. هغه د رسول الله ﷺ ځواب واورېد ویې ویل: تا رښتیا وویل.

د حدیث راوي عمر ﷺ وایي چې موږ په دې ډېر حیران وو چې دا سړی هم پوښتنه کوي او بیا یې تائیدوي هم، بیا یې وویل: ما ته ووایه چې ایمان څه دی؟. رسول الله ﷺ وویل: ایمان دا دی چې ته الله، د هغه فرښتې، د هغه رسولان، د هغه کتابونه او د قیامت ورځ حق وبولې، د خیر او شر پر تقدیر ایمان راوړې او حق یې وبولې. هغه وویل چې رښتیا دې وویل.

تر دې وروسته یې وویل: ما ته ووایه چې احسان څه دی؟. ده وویل: احسان دا دی چې ته د الله عبادت په داسې ډول وکړې چې ګواکې وینې یې، که څه هم ته یې نه وینې دی خو دې ویني. بیا یې وویل چې ما ته د قیامت په اړه ووایه کله به وي؟. رسول الله ﷺ وویل: له چا چې پوښتنه کېږي تر سوال کوونکي ډېر پرې نه دی خبر. هغه وویل: ما ته یې ځینې نښې راوښیه، ده وویل: یوه نښه یې دا ده چې مینځه به خپل بادار او ملکه وزېږوي، ته به

وويني چي څوک لوڅې پښې دي، پر تن جامه نه لري، تش لاسي او د پسونو پوونکي دي هغوی به ستري ودانۍ جوړوي او په دې کي به له يو بل سره سيالي کوي. عمر ﷺ وايي چي تر دې وروسته هغه سړی ولاړ، يو څه موده وروسته رسول الله ﷺ وويل: اې عمره! ته پوهېږې چي دا سړی څوک وو؟. ما وويل: الله او رسول يې ښه پوهېږي. ده وويل: دا جبريل وو د دې لپاره راغی چي تاسو ته دين در وښيي.

(صحيح مسلم، صحيح البخاري، معارف الحديث)

## ايمان د دين د ټولو شيانو د تصديق نوم دی: -

له ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: دين د پنځو شيانو د مجموعې نوم دی (چي ټول ضروري دي) په دوی کي هيڅ شی له بل پرته په دې معنا مقبول نه دی (چي له دوزخ څخه کامل نجات ورکړای شي) د دې شاهدي چي له الله پرته هيڅ معبود نه شته، محمد ﷺ د الله بنده او رسول دی، پر الله، د هغه پر ملايکو، کتابونو، رسولانو، جنت او دوزخ باور او دا منل چي تر مرګ وروسته ژوند شته. دا يوه خبره او پنځه لمنځونه د ايمان ستن ده، الله به له لمانځه پرته ايمان هم ونه مني، زکات د ګناهونو کفاره ده، له زکات پرته الله ايمان او لمونځ نه مني، چا چي دا ارکان ادا کړل او د روژې مياشت راغله له څه عذر پرته يې په قصد روژه ونه نيوله نو الله به يې نه ايمان ومني، نه لمونځ او زکات او چا چي دا څلور رکنه ادا کړل، تر دې وروسته يې د حج توان هم وموند بيا يې نه په خپله حج وکړ او نه تر ده وروسته بل چا د هغه له خوا حج وکړ نو د هغه ايمان، لمونځ، زکات او روژه نه قبلېږي. د نه

قبلېدو مطلب دادی چي د اسلام په رکن کي د کوتاهي په کولو پاتي اعمال به د دوزخ لپاره په سمدستي نجات کي ګټه ونه کړي. (الحلية، ترجمان السنة)

**کامل اسلام:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: اسلام دادی چي يوازي د الله عبادت وکړئ، هيڅوک ورسره شريک نه کړئ، تل لمونځ وکړئ، زکات ورکړئ، د رمضان روژې ونيسئ، د بيت الله حج وکړئ، ښه خبره وکړئ، د بدي خبرې مخه ونيسئ، کورنيانو ته سلام وواياست، څوک چي په دې شيانو کي يو نه کوي هغه د اسلام يو جز کموي او چا چي دا ټول ونه کړل نو اسلام ته يې شا ور ګرزولې ده. (حاکم، ترجمان السنة)

له طلحه بن عبيد الله ﷺ څخه روايت دی چي د نجد سيمې يو اوسېدونکی وو، ببر وېښتان يې لرل او د يو څه له ويلو سره رسول الله ﷺ ته راغی موږ يې بوښا اورېده خو د سم اواز نه راتلو له کبله يې په خبره نه پوهېدو تر دې چي رسول الله ﷺ ته نژدې راغی، د اسلام په اړه يې پوښتنه وکړه. رسول الله ﷺ وويل: په شپه او ورځ کي پنځه لمنځونه دي، هغه وويل: ايا پر ما له دې پرته بل لمونځ شته؟. رسول الله ﷺ وويل: نه (فرض لمنځونه خو صرف همدا پنځه دي) مګر ته حق لرې چي په خپله خوښه (پر دې پنځو لمنځونو برسېره) نور زيات لمنځونه هم وکړې (او زيات ثواب تر لاسه کړې) بيا رسول الله ﷺ وويل: په کال کي د پوره مياشتې روژه فرض شوې او دا د اسلام دويمه عمومي فريضه ده. ده وويل: پر رمضان سربېره بله روژه را باندي فرض ده؟. رسول الله ﷺ وويل: نه مګر ته حق لرې چي په خپله خوښه نفلي روژه ونيسې. راوي وايي چي تر دې وروسته رسول الله ﷺ هغه ته د

زکات یادونه هم وکړه، ده بیا هم وویل: ایا له زکات پرته بله صدقه هم را باندي فرض ده؟. ده وویل: نه مگر ته حق لرې چي په خپله خوښه نفلي صدقه وکړې. د حدیث راوي طلحه بن عبیدالله وایي: تر دې وروسته هغه پوښتونکی ولاړ او ویل یې: زه به په دې کي هیڅ زیادت او کمبوت ونه کړم. رسول اللهﷺ وویل: که دی رښتنی شو نو نجات یې وموند. (بخاري و مسلم، معارف الحدیث)

## پر الله ﷻ ښه گومان:-

ابو هریره ﷺ وایي چي رسول اللهﷺ وویل: پر الله ښه گومان یو عبادت دی، یعني پر الله ښه گومان هم په عبادت کي داخل دی.

(مسند احمد، ابوداود، مشکوة)

## د ایمان نښې:-

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: په تاسو کي هیڅوک تر هغو مومن نه شي کېدای چي زه تر خپل مور و پلار، اولاد او ټولو خلکو ورباندي گران نه شم. (بخاي و مسلم، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: ایمان څه د پاسه اویا څانگې لري تر ټولو غوره او اعلی یې لا اله الا الله ده یعني د توحید شاهدي ورکول او ټیټه درجه یې له لارې د زوروونکو او تکلیفي شیانو لرې کول دي، حیا هم د ایمان یوه څانگه ده.

(بخاري و مسلم، معارف الحدیث)

له ابو امامه رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو چا له رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: ایمان څه شی دی؟. رسول الله ﷺ وویل: که په خپل ښه عمل خوشاله او په بد عمل خپه و غمجن شې نو مومن یې. (معارف الحدیث، مسند احمد)

له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: حیا او شرم له ایمان څخه پیدا کېږي او د ایمان نتیجه ده جنت، بې حیایي او د فحش خبرې له ناسم فطرت څخه زېږي او نتیجه یې دوزخ دی. (مسند احمد، ترمذي)

له ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: حیا او ایمان له یوه بل سره تړلي دي، کله چي یو ختم شي نو بل هم له منځه ځي.

(معارف الحدیث)

د ابن عباس رضی الله عنه په روایت کي دا مضمون په دې ډول بیان شوی چي که یو له منځه ځي نو بل هم ور پسې وي. (شعب الایمان، ترجمان السنة)

له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ایا څوک شته چي دا شیان په خپله عملي کړي او یا یې د عمل لپاره خلکو ته ور وښیي؟. ما وویل: اې د الله رسوله! زه حاضر یم. رسول الله ﷺ زما لاس ونیو او دا پنځه شیان یې وشمېرل: ۱) له حرامو خبرو لرې اوسه، په لویو عابدانو کي به وشمېرل شې. ۲) الله چي په تقدیر کي څه درته لیکلي ترې راضي شه، په ډېرو بې نیازه بندګانو کي به شمار شې. ۳) له خپل ګاونډي سره ښه چلند کوه مومن به شې. ۴) کوم څه چي ځان ته خوښوې نورو ته یې هم خوښوه کامل مسلمان به شې. ۵) او په لوړ اواز مه خانده ځکه دا زړه وژني.

(مسند احمد، ترمذي، ترجمان السنة)

له ابو شریح خزاعي ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: قسم په الله! هغه مومن نه دی، قسم په الله هغه مومن نه دی، قسم په الله هغه مومن نه دی. ما وویل: اې د الله رسوله! څوک مومن نه دی؟. ده وویل: هغه سړی چي ګاونډي یې له فسادونو او شرارتونو په وېره کي وي.
(بخاري، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: تاسو له ایمان پرته جنت ته نه شئ تلای او تر هغو پوره ایمان نه شئ خپلولای چي خپل منځي مینه ونه لرئ، ایا تاسو ته داسي شی درونه ښیم چي په عملي کولو یې ستاسو په منځ کي مینه پیدا شي او هغه دا دی چي تر خپل منځ سلام ډېر او عام کړئ. (مسلم، معارف الحدیث)

**د ایمان او اسلام خلاصه:-**

له تمیم داري ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: دین د اخلاص او وفا نوم دی. موږ وویل: له چا سره اخلاص او وفا؟. ده وویل: له الله، د هغه له کتاب، رسول، د مسلمانانو له مشرانو، رهبرانو او عوامو سره.
(معارف الحدیث)

**د ایمان وروستۍ درجه:-**

له ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په تاسو کي چي څوک بد او د شریعت خلاف کار ووینئ نو که یې طاقت وي لازمه ده چي په لاس یې منعه کړي او که طاقت ونه لري نو په ژبه دي یې د بندولو منعه وکړي او که یې د دې وس نه وي نو په زړه کي دي بد وبولي او دا د ایمان تر

ټولو کمزورې درجه ده. (معارف الحدیث)

## له الله او د هغه له رسول سره مینه:-

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: درې شیان داسې دي چې که په چا کې وي د ایمان خوږوالی به یې نصیب شي.

۱) یو هغه څوک چې الله او رسول تر هر څه وربانديٍ ګران وي یعنې له الله او رسول سره چې څومره مینه لري له بل شي سره یې نه لري.

۲) بل هغه څوک چې له یو چا سره صرف د الله لپاره مینه کوي (د دنیوي غرض لپاره نه وي صرف له دې وجې مینه ورسره کوي چې د الله تابع بنده دی.)

۳) بل هغه څوک چې الله له کفره ساتلی وي (دا نو که له اوله ساتل شوی وي او که له کفره په توبه ایستلو) تر دې وروسته کفر ته تګ دومره ورته بد ښکاري لکه په اور کې لوېدل. (بخاري و مسلم، حیات المسلمین)

له معاذ بن جبل ﷺ څخه روایت دی چې ما له رسول الله ﷺ څخه د غوره ایمان په اړه پوښتنه وکړه (ومې پوښتل چې د ایمان لوړه او افضله درجه ده، هغه کوم اعمال او اخلاق دي چې په وسیله یې دا درجه تر لاسه کېدای شي؟) رسول الله ﷺ وویل: صرف د الله لپاره له یو چا سره مینه کوه او د الله لپاره دښمني (یعني له هر چا سره دې دوستي او دښمني باید د الله لپاره وي) او بل دا چې ژبه دې د الله په یاد مصروفه ساته. معاذ ﷺ رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله! تا ویلي چې د نورو لپاره هم هغه څه غواړئ او خوښوئ یې چې د ځان لپاره یې غواړئ او د دوی لپاره هم هغه شیان هغه شیان خوښوئ چې ځان ته یې خوښوئ. (بخاري، مسلم، مسند احمد، معارف الحدیث)

**مینه د نژدېکت او ملګرتیا وسیله:-**

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی ویې ویل: اې د الله رسوله! د هغه چا په اړه څه وایې چي له یوې ډلې سره مینه لري خو له هغوی سره یو ځای کېدای نه شي. نو رسول الله ﷺ وویل: څوک چي له چا سره مینه لري ورسره دی (یا دا چي په اخرت کي به ورسره یو ځای شي) (صحیح البخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له انس ﷺ څخه روایت دی چي یو چا رسول الله ﷺ ته وویل: قیامت به کله راځي؟. رسول الله ﷺ وویل: ستا پر حال افسوس (د قیامت وخت او د هغه د راتګ د خاص وخت پوښتنه کوې ووایه) تا ورته څه تیار کړی دی؟. هغه وویل: داسي خاص تیاری خو مي نه دی کړی (چي ستا په مخ کي د یادولو لایق او د باور وړ وي) البته (د الله په توفیق مي دا برخه موندلې چي) له الله او رسول سره یې مینه لرم. ده وویل: ته چي له چا سره مینه لرې له هغه سره یې او د هغه ملګرتیا به دي په نصیب شي. د حدیث راوي انس ﷺ د دې حدیث تر بیانولو وروسته وایي: ما مسلمانان نه دي لیدلي چي اسلام ته تر راتلو وروسته دي د رسول الله ﷺ له دې زېري پرته په بل څه دېر خوشاله شوي وي. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی او ویې ویل: اې د الله رسوله! زه تر خپلې مېرمنې، اولاد او ځان هم له رسول الله سره ډېره مینه لرم او حالت مي دا دی چي کله کور یم رسول الله را یاد شي نو تر هغه وخته ارام نه راځي چي دلته په راتلو یې یو ځل و نه وینم. کله چي د ځان او رسول الله د مرګ په اړه فکر کوم نو احساسوم چي تر وفات وروسته خو به رسول الله جنت ته په

رسېدو د انبياوو لوړو مرتبو ته ولاړ شي او زه که د الله په رحمت جنت ته داخل هم شوم نو هغه لوړ مقام ته خو نه شم رسېدای؟ ځکه به نو په اخرت کي د رسول الله ﷺ له ديداره بې برخې يم. رسول الله ﷺ دې سړي ته له خپلې خوا هيڅ ځواب ورنه کړ نو د سورت النساء دا ايت نازل شو:

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَـٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَـٰئِكَ رَفِيقًا

(سورت النساء: ۶۹)

او څوک چي د الله او رسول اطاعت وکړي دوی به له هغو کسانو سره وي چي الله پرې انعام کړی، له نبيانو، صديقينو، شهداوو او نېکانو سره او د دوی ملګرتيا ډېره ښه ده. (طبراني، معارف الحديث)

**تر خپل منځ مينه کوونکي پر الله ګرانېږي:-**

له معاذ بن جبل ؓ څخه روايت دی چي ما له رسول الله ﷺ وا ورېدل ويې ويل: الله وايي زما مينه د هغه چا لپاره واجب ده چي تر خپل منځ زما لپاره مينه کوي، زما له وجې يو ځای کښېني، زما له وجې يو بل ويني او زما له وجې پر يو بل مصرف کوي. (موطا امام مالک، معارف الحديث)

له عمر ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د الله په بندګانو کي ځيني داسي نېکمرغه هم شته چي شهيدان نه دي خو د قيامت په ورځ به ډېر انبياء او شهيدان د دوی د لوړ مقام له کبله ورسره غبطه کوي. صحابه کرامو ؓ وويل چي موږ ته و وايه هغوی څوک دي؟. رسول الله ﷺ وويل: دا هغه کسان دي چي د څه خپلوي، مالي راکړې - ورکړې پرته يې تر خپل منځ د

الهي رضا لپاره مينه کوله، قسم په الله! د دوی څېرې به د قيامت په ورځ ځلېږي بلکې سر تر پايه به نور وي، د رڼا پر منبرونو به ولاړ وي، په کوم وخت کې چې به عام انسانان وېرېږي دوی به مطمين وي، په کوم وخت کې چې عام انسانان په غم اخته کېږي دوی به بې غمه وي او په همدې وخت کې يې دا ايت تلاوت کړ:

أَلا إِنَّ أَوْلِيَاء اللّهِ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ (يونس: ۶۲)

خبردار! د الله دوستان به نه په وېره کې وي او نه به غمجن شي.

(سنن ابی داود، معارف الحديث)

له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: الله وايي چې پر ما له هغو خلکو سره مينه واجبه ده چې زما په خاطر مينه او دوستي کوي، زما د ذکر لپاره يو ځای را غونډېږي، زما د محبت په سبب يو بل ته ورځي او زما د رضا تر لاسه کولو لپاره له يو بل سره ښه چلند کوي.

(احمد، ترمذي)

يو ځل د رسول الله ﷺ مخ ته يو سړی تېر شو، له ده سره يو څه کسان ناست ول په هغو کې يوه وويل: اې د الله رسوله! زه صرف د الله لپاره له هغه سره مينه کوم. د دې په اورېدو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: ايا تا هغه ته ويلي دي؟. ده وويل: نه!. رسول الله ﷺ وويل: ورشه هغه ته ووايه چې د الله لپاره درسره مينه کوم. هغه سمدستي ولاړ شو، هغه ته يې خپل احساسات ښکاره کړل. ده يې په ځواب کې ورته وويل: له تا سره دې هغه ذات مينه وکړي چې په خاطر يې ته له ما سره مينه کوې. (ترمذي، ابوداود)

## له نېکانو سره ناسته:-

له ابو رزين ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ده ته وويل: ايا داسي شی در ونه ښيم چي د کوم دين په وسيله تاسو د دنيا او اخرت نېکي تر لاسه کوئ هغه ور باندي موقوف دی. يو خو د ذاکرينو مجلس را ټينګ کړئ بل چي کله يوازي يې نو د امکان تر حده ژبه د الله په ذکر خوځوه او درېيم د الله لپاره مينه کوه او د الله لپاره بغض. (بيهقي في شعب الايمان)

فايده:-

دا خبره له تجربې هم معلومېږي نېکه ملګرتيا د ټول دين اساس دی، د دين د حقيقت، خوند او قوت تر ټولو لويه وسيله د نېکانو ملګرتيا ده.

(حيات المسلمين)

## وسوسې نه د ايمان ضد دي او نه يې سزا شته:-

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي يو سړی رسول الله ﷺ ته راغی او ورته يې ويل: زما په زړه کي کله - کله داسي وسوسې پيدا کېږي د هغو تر بيان په اوړ سو ځېدل را ته ښه دي. رسول الله ﷺ وويل: هغه الله لره حمد او شکر دی چي دا معامله يې تر وسوسې محدوده کړې ده (يعني دا خيالات صرف د وسوسې تر کچې دي د تشکيک او بد عمل سبب نه دي.)

(ابوداود، معارف الحديث)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: په خلګو کي به تل بې ځايه پوښتنې او د څنګه او ولي لړئ روانه وي ان دا احمقانه پوښتنه به هم وشي چي الله خو ټول مخلوق پيدا کړی نو دا الله چا پيدا کړی دی؟ نو

که څوک له دې سره مخ شي خبره دي په دې پای ته ورسوي چي زه پر الله او رسولانو يې ايمان لرم. (معارف الحديث، صحيحين)

## د تقدير منل هم د ايمان شرط دی:-

ابو خزامه رضي الله عنه له خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه وويل: ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ: د دم د هغو طريقو په اړه څه وايې چي موږ يې په درد کي کاروو يا هغه داوې چي موږ علاج پرې کوو او له مصيبتونو او تکليفونو څخه هغه تدابير چي موږ يې د ځان ساتنې لپاره استعمالوو؟، ايا دا شيان د الله قضا او قدر ګرزوي؟.

رسول الله ﷺ وويل: دا ټول شيان په خپله د الله تقديرات دي.

(مسند احمد، ترمذي، ابن ماجه، معارف الحديث)

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو ځل موږ په نبوي مسجد کي د قضا او قدر پر مسئله بحث کاوه. په همدې وخت کي رسول الله ﷺ راغی زموږ بحث يې وليد نو ډېر په غوسه شو ان مخ يې سور واووښت او دومره سور شو چي ښکارېده په باړخوګانو کي يې انار مات شوي دي. بيا يې موږ ټولو ته وويل: ايا تاسو ته د دې امر شوی او ما تاسو ته همدا پيغام راوړی دی؟، خبردار تر تاسي مخکيني امتونه هغه وخت هلاک شول چي په دې مسئله کي يې دلايل او بحثونه پيل کړل، زه تاسو ته قسم درکوم او پر تاسو لازموم چي هيڅکله په دې مسئله کي بحث او جنجال مه کوئ. (ترمذي، معارف الحديث)

له علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: له تاسو څخه په دوزخ او جنت کي د هر يوه هستوګنځای ليکل شوی دی (مطلب دا چي که

څوک د جنت او یا دوزخ هر ځای ته ځي له وړاندي مقدر او ټاکلی دی) صحابه کرامو پوښتنه وکړه چي ایا د تقدیر په دې لیکنه باور ونه کړو او هڅې و عمل پرې نه ږدو؟ (مطلب دا چي کله له وړاندي دا هر څه ټاکلي او لیکلي دي نو بیا ولي د هڅو او عمل تکلیف وکړو؟) رسول اللهﷺ وویل: نه! عمل کوئ ځکه هر چا ته د هغه څه توفیق ورکول کېږي چي دی ورته پیدا شوی دی، نو څوک چي له نېکانو وي هغه ته د ښو اعمالو او غوره کارونو توفیق ورکول کېږي او څوک چي بد بخته وي هغه ته د ناسمو کارونو او ناوړه اعمالو توفیق ورکول کېږي. تر دې وروسته رسول اللهﷺ د قرآن دا ایت تلاوت کړ:

فَأَمَّا مَن أَعْطَى وَاتَّقَى * وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى * فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى * وَأَمَّا مَن بَخِلَ وَاسْتَغْنَى * وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى * فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى*

(اللیل: ۵-۱۰)

نو چا چي ورکړه وکړه او ځان یې وساته او د ښه خبرې تصدیق یې وکړ نو موږ به یې ورو - ورو اساني ته ورسوو او چا چي بخل وکړ او بې پروایي یې وښوده د ښېګڼې تکذیب یې وکړ نو موږ به یې ورو - ورو سختي ته ورسوو. (معارف الحدیث)

د یو کار تر کولو وروسته دا وینا ممنوع ده چي کاش! ما داسي کړي وای، کاش! ما داسي کړي وای. رسول اللهﷺ ویلي چي په دې ډول د شیطاني اثر دروازه خلاصېږي بلکي زیاته کړې یې ده چي تر دې ګټوره کلمه

داده چي ووايي د الله په تقدير کي څه وو هغه وشول او الله چي څه غوارې هغه به کېږي. (زاد المعاد)

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه تر رسول الله ﷺ شا ته وم، ده را ته وويل: وه هلکه! يو څو خبرې در ښيم الله ته پام کوه هغه به دي وساتي، الله ته پام کوه نو خپل مخ ته به يې ومومې، کله چي څه غوارې له الله يې غواړه او که مرستې ته اړتيا لرې نو د مرستې لپاره الله را بوله، باور وکړه که هر څوک پر دې سره يو شي چي تا ته د يو شي ګټه ورسوي نو هيڅکله يې نه شي در رسولای، پرته له هغو شيانو چي د الله خوښ وي او که ټول پر دې متفق شي چي تا ته ګټه ورسوي نو هيڅ زيان نه شي در رسولای مګر پرته له هغه شي چي الله در ته ليکلي وي. (ترمذي، حيات المسلمين)

**تقوا:-**

رسول الله ﷺ ابو ذر رضي الله عنه ته وويل: زه تا ته د تقوا وصيت کوم ځکه په دې سره دي ټول کارونه ښکلي کېږي. ابو ذر رضي الله عنه وايي چي ما وويل: بل وصيت راته وکړه. ده وويل: د قرآن تلاوت او الهي ذکر پر ځان لازم کړه ځکه تلاوت او ذکر به په اسمان کي ستا د ياد وسيله شي او په ځمکه کي به ستا لپاره نور وي. ابو ذر رضي الله عنه وايي چي ما وويل: نور وصيت راته وکړه. ده وويل: د ډېري چوپتيا او کمو خبرو عادت خپل کړه ځکه دا د شيطان منځه نيسي او د دين په چارو کي درسره مرسته کوي. ابو ذر رضي الله عنه وايي چي ما وويل: يو څه نور نصيحت راته وکړه. رسول الله ﷺ وويل: ډېره خندا پرېږده ځکه دا عادت زړه وژني او په دې سره د انسان د مخ نور له منځه ځي. ما وويل: اې د الله رسوله! يو څه نور نصيحت راته وکړه. ده وويل: تل حق او رښتيا وايه که څه

هم سخت او تریخ وي. ما وویل: یو څه نور نصیحت راته وکړه. ده وویل: د الله په اړه د هیڅ ملامتوونکي پروا مه ساته. ما وویل: یو څه نور نصیحت راته وکړه، ده وویل: ته چې د ځان او خپل شخصیت په اړه کوم معلومات لرې هغه باید تا د نورو په عیبونو له پسې کېدو را وګرځوي.

(شعب الایمان، معارف الحدیث)

له معاویه ﷺ څخه روایت دی چې ده ام المؤمنین عائشې ﷺ ته لیک ولېږه او غوښتنه یې وکړه چې ته ما ته نصیحت وکړه خو خبرې دې باید لنډې او جامع وي نه زیاتې، نو ام المؤمنین دا لنډ لیک ور ولېږه: پر تا دې سلام وي، اما بعد. ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چې ویل یې: که څوک د خلګو په خپګان د الله راضي کول وغواړي الله به یې د خلګو له فکر او بوج څخه بې پروا کړي، په خپله به ورته کافي شي او څوک چې د الله په خپه کولو د الله رضایت وغواړي نو هغوی ته به یې وسپاري. والسلام

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## د خلګو تر منځ په نېکو اعمالو شهرت الهي لورینه ده: –

له ابو ذر غفاري ﷺ څخه روایت دی چې له رسول الله ﷺ پوښتنه وشوه: د هغه چا په اړه څه وایې چې ښه اعمال کوي او خلک یې ستایي؟. په یوه بل روایت کې دي چې پوښتونکي وویل: د هغه چا په اړه څه وایې چې ښه اعمال کوي او په دې وجه خلک ورسره مینه کوي. رسول الله ﷺ وویل: دا د مومن بنده نغد زېری دی. (مسلم)

همدا راز که څوک د خلګو په مخ کې له دې وجې نېک اعمال کوي چې هغوی یې پیروي وکړي او ترې زده یې کړي نو ریا نه ده بلکې په دې صورت

کي به الله هغه بنده ته د تعلیم او تبلیغ ثواب هم ورکړي. له ډېرو احادیثو ښکاري چي د رسول الله ﷺ په ګڼو اعمالو کي دې مقصد ته پام کېده. الله دي موږ ټولو ته حقیقي اخلاص را په برخه کړي، خپل نېک بندګان مو دي وګرزوي او د ریا و ځان ښکارونې په څېر له وژونکو ناروغیو دي زموږ زړونه صاف کړي. اللهم آمین (معارف الحدیث)

## د اسلام فضیلت:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی د یو چا د اسلام په فضیلت او کمال کي دا هم داخل دي چي دی بې ګټې او بې ځایه کارونه پرېږدي. (معارف الحدیث، ابن ماجه، ترمذي)

## د دولت او شتمنۍ لګول:-

له ابو کبشه انصاري ﷺ څخه روایت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ویل یې: زه په درو خبرو قسم کوم او یوه بله خبره ده چي تاسو ته یې بیان غواړم نو تاسو یې یادې کړئ د قسم درې خبرې دادي: ۱) د بنده مال په خیرات نه کمېږي. ۲) که یو څوک پر چا ظلم وکړي او هغه مظلوم بنده یې وزغمي نو الله به یې په عوض کي د ده عزت ډېر کړي. ۳) که یو بنده د سوال یا فقر دروازه خلاصه کړي نو الله به ورته د مسکنت دروازه پرانیزي. تر دې وروسته یې وویل: له دې پرته چي زه کومه خبره بیانوم او تاسو یې باید یاده کړئ هغه داده چي نړۍ د څلور ډوله کسانو لپاره ده: یو هغه بنده چي الله مال ورکړی، د ژوند پ. ښه طریقه هم پوهېږي، د مال په لګولو او استعمال کي له الله وېره کوي، د هغه په وسیله خپلوي ساتي، کوم تصرف او لګښت چي

کوي د الله د رضا لپاره يې کوي نو دا ډول بنده تر ټولو لوړ او غوره دی. دويم ډول بنده هغه دی چې الله ښه علم ورکړی وي خو مال نه لري، مګر سمه اراده او اخلاص لري، په خوله او زړه وايي: که الله مال راکړ نو د فلانی نېک بنده په څېر به يې کاروم ځکه نو د دواړو اجر يو ډول دی. دريم ډول هغه خلک دي چې الله مال ورکړی وي خو د لګولو او استعمال سم علم او جذبه نه لري، په ناپوهي يې د الله له وېرې پرته پر ناسمو ځايونو لګوي، د خپل مال په وسيله خپلوي نه پالي او چې څرنګه يې بايد کارولی وای هغسي يې نه کاروي نو دا سړی پر بد ځای دی. څلورم قسم هغه خلک دي چې نه الله مال ورکړی وي او نه سم علم، دوی وايي: که موږ مال ومومند نو د فلانی په ډول او طريقه به يې کاروو نو دوی همدا اراده کړې او د دواړو ډلو ګناه يو ډول ده.

(جامع ترمذي)

**د دنيا او اخرت:-**

له عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دی چې يوه ورځ رسول الله ﷺ وينا وکړه ويې ويل: واورئ او په ياد ولرئ چې دنيا يوه عارضي او موقته سودا ده چې همدا اوس حاضره او نغده ده (او هغه هيڅ قدر و قيمت نه لري) ځکه چې په دې کې د هر نېک او بد برخه شته او ټول ترې خوراک کوي، باور وکړئ چې اخرت پر ټاکلي وخت راتلونکی دی دا يو رښتنی نه ردېدونکی حقيقت دی او د هر څه قدرت درلودونکی پاچا به پکې پرېکړه وکړي. په ياد ولرئ چې هر ډول خير، خوشالي او د هغو ټول ډولونه په جنت کې دي خو هر ډول غم، شر او د هغو ټول ډولونه په دوزخ کې دي نو چې څه کوئ له الله ووېرېږئ او باور وکړئ چې تاسو به له خپلو اعمالو سره د الله حضور ته

ورځئ، چا چي د ذرې په اندازه نېکي کړې وي وبه يېويني او چا چي د ذرې په اندازه نېکي کړې وي نو هم به يې ومومي.
(مسند امام شافعي، معارف الحديث)

**الهي وېره او تقوا د فضيلت او قرب سبب ده:-**

رسول الله ﷺ چي کله معاذ بن جبل ﷺ يمن ته د مسئول په توګه ولېږه نو په يوه اوږده حديث کي يې د رخصتولو پر مهال څو وصيتونه ورته وکړل او ويې ويل: اې معاذه! ممکن تر دې کال وروسته ما او تا سره ونه وينو، د دې په اورېدو معاذ ﷺ د ده د بېلتون له غمه په ژړا شو نو رسول الله ﷺ له ده څخه مخ وګرزاوه او مدينې ته په مخ ګرزولو يې وويل: ما ته تر ټولو نژدې او تعلق درلودونکی هغه بندګان دي چي له الله وېرېږي، دوی چي هر څوک او هر ځای وي. (مسند احمد، معارف الحديث)

**د اخرت فکر او پر دنيا زړه نه بايلل:-**

له جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د پسه پر شوړېدلي او مړه بچي ورغی، ويې ويل: په تاسو کي څوک دا په يوه درهم اخلي؟. خلکو وويل: موږ يې په ېخي کم شي هم نه اخلو. ده وويل: قسم په الله! د الله په نزد دنيا تر دې هم ډېره ذليله ده. (مسلم، حيات المسلمين)

له ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر يوه پوزي پرېووت، بيا را پورته شو په بدن کي يې د پوزي نښې وې. ابن مسعود ﷺ وويل: اې د الله رسوله! اجازه راکړه چي تا ته بستره وغوړوو. ده وويل: زما

يې له دنيا سره څه؟ زه او دنيا داسي يو لکه يو لاروی چي د ونې تر سيوري لاندي تم شي او بيا وخوځېږي. (احمد، ترمذي، ابن ماجه)

له ابو هريره ﵁ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د خوندونو له منځه وړونکی يعني مرګ ډېر يادوئ.

(ترمذي، نسايي، ابن ماجه، حيات المسلمين)

له عبدالله بن عمر ﵁ څخه روايت دی چي مرګ د مومن تحفه ده. (بيهقي)

فايده:-

په تحفه بايد سړی خوشاله شي او که څوک له عذابه وېرېږي نو تدبير دي ونيسي يعني د الله او رسول احکام دي پر ځای کړي او خپل نيمګړتياوو ته دي متوجې شي. (حيات المسلمين)

له براء بن عازب ﵁ څخه په يوه اوږده حديث کي روايت دی چي کله مومن له دنيا څخه اخرت ته ځي نو د سپينو څېرو ملايکې ورته راشي د جنت کفن او خوشبويي ورسره وي، بيا د مرګ ملايکه راځي او وايي: اې سپېڅلې روحه! د الله د مغفرت او عذاب پر لور روان شه، کله چي يې روح واخلي نو فرشتې يې په لاس کي نه ورپرېږدي په کفن او خوشبويي کي يې ساتي، له هغه څخه د مشکو په څېر خوشبويي خپرېږي، له روح سره پورته کېږي او د ځمکې د فرشتو پر کومه ډله چي ورځي هغوی پوښتنه کوي: دا پاک روح د چا دی؟. هغوی د ښو القابو په يادولو وايي: دا د فلاني د زوی فلاني ده، بيا يې د دنيا اسمان ته رسوي د دروازو د خلاصېدو غوښتنه کوي، دروازه خلاصېږي او د هر اسمان معتبره ملايکه يې خپل نژدې اسمان

ته وري ان تر دې چې اووم اسمان ته رسېږي. الله وايي: زما د بنده عملنامه په عليين کې وليکئ او دی د سوال و ځواب لپاره ځمکې ته بوزئ نو روح يې بدن ته را ګرزي خو داسې نه لکه په دنيا کې چې وو بلکې تر مرګ وروسته نړۍ سره مناسب، بيا ملايکې راځي او ورته وايي: ستا رب څوک دی؟. دی وايي: زما رب الله دی، بيا وايي چې ستا دين څه دی؟. دی وايي چې زما دين اسلام دی. بيا وايي: تاسو ته درلېږل شوی شخص څوک وو؟. دی وايي: د الله رسول. يو اواز کوونکی د الله له لوري په اسمان کې نارې کوي: زما بنده سم ځواب ورکړ، د هغه لپاره جنت فرش دی او جنتي جامې ور واغوندئ او د جنت لور ته يې دروازه خلاصه کړئ، نو هغه ته د جنت هوا او خوشبويي راځي (تر دې وروسته په حديث کې د کافر حال بيان شوی چې د دې بالکل ضد دی)

**د مرګ ياد:-**

له ابو سعيد خدري ؓ څخه په يوه اوږده حديث کې روايت دی چې رسول الله ﷺ د لمانځه لپاره راغی نو خلک يې په داسې حال کې وموندل چې سخت يې خندل. له همدې وجې رسول الله ﷺ وويل: زه درته وايم که تاسو د خوندونو له منځه وړونکی شی يعني مرګ ډېر ياد کړئ نو په دې فتنه به نه اخته کېدا ست ځکه نو مرګ ډېر يادوئ. (جامع ترمذي، معارف الحديث)

له انس ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د زکندن پر مهال يوه ځوان ته ورغی پوښتنه يې ترې وکړه چې څه حال دې دی؟. هغه وويل: اې د الله رسوله زه له الله څخه د رحمت هيله هم لرم او د خپلو ګناهونو له عذابه هم وېرېږم. رسول الله ﷺ وويل: باور وکړه په کوم زړه کې چې پر دې مهال د وېرې

او امید دواړه حالتونه وي نو الله به ضرور هغه څه ورکړي چي د رحمت هيله يې لري او له هغه عذابه به يې خوندي کړي چي په زړه کي تري وېرېږي.
(جامع ترمذي، معارف الحديث)

## د الهي وېرې اوښکې:-

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د کوم مومن بنده له سترګو چي د الله د وېرې او هيبت له کبله د مچ د سر په اندازه اوښکه وبهېږي او تر بهېدو وروسته يې مخ ته لاړو کړي نو الله به پر دوزخ د هغه مخ سوځول حرام کړي. (سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

## دعوت:-

يوه ورځ رسول الله ﷺ وينا وکړه او ځيني مسلمانان يې وستايل، بيا يې زياته کړه چي ولي ځيني کسان په خپلو ګاونډيانو کي نه د دين فکر پيدا کوي، نه دين ورښيي، نه يې له دين څخه په ناپوهي له عبرته ډک نتايج بيانوي او نه يې له بدو کارونو را ګرزوي؟، ولي ځيني کسان نه خپلو ګاونډيانو ته د دين پوهه ورښيي، نه ديني فکر ورکوي او نه يې له دينه په جاهل پاتېدو عبرتناک نتايج ورته بيانوي. قسم په الله! خلک دي حتما خپلو ګاونډيانو ته دين ور زده کړي، په دوی کي دي د دين فکر پيدا کړي، دوی ته دي نصيحت وکړي، ښه کارونه دي ور وښيي او له بدو چارو دي را وګرزوي. همدا رنګه خلګو ته په کار ده چي ضرور له خپلو ګاونډيانو دين زده کړي، د دين فکر خپل کړي او د هغوی نصيحتونه ومني.

(طبراني، معارف الحديث)

یوه سړي عبدالله بن عباس ؓ ته وویل چې زه غواړم د دین دعوت وکړم او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر دنده ترسره کړم؟. ده وویل: ایا ته دې مرتبې ته رسېدلی یې؟. ده وویل: هو! امید لرم. ابن عباس ؓ وویل چې که ته دا اندېښنه نه لرې چې د قرآن درې ایاتونه به رسوا کړې نو حتما د دیني تبلیغ کار کوه. ده وویل: هغه درې ایاتونه کوم دي؟. ابن عباس ؓ وویل: لومړی ایت دادی:

أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ (البقرة: ۴۴)

ایا تاسو خلک په نېکۍ امر کوئ او ځانونه هېروئ؟.

ابن عباس ؓ وویل چې ایا په دې ایت دې ښه عمل کړی دی؟. هغه وویل: نه او دویم ایت دادی:

لِمَ تَقُولُونَ مَا لاَ تَفْعَلُونَ (الصف: ۲)

تاسو ولې هغه څه وایاست چې کوئ یې نه؟.

په دې دې سم عمل کړی؟، هغه وویل: نه! او درېیم ایت دادی:

وَمَا أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلَى مَا أَنْهَاكُمْ عَنْهُ (هود: ۸۸)

شعیب ؑ خپل قوم ته وویل چې زه مو له کومو بدو خبرو منعه کوم په خپله یې نه کوم، زه یې اراده نه لرم بلکې ډېر لرې به ترې اوسم. تاسو به زما په قول او عمل کې تضاد ونه وینئ.

ابن عباس ؓ پوښتنه وکړه چې ایا دا ایت دې په ښه ډول عملي کړی. هغه وویل: نه!. ده وویل: ورځه لومړی ځان ته د نېکۍ امر وکړه او له بدۍ یې منعه کړه، همدا د داعي لومړی منزل دی. (معارف الحدیث، الدعوة)

رسول الله ﷺ ویلي: په هغه ذات قسم چي زما ځان یې په لاس کي دی تاسو به حتما د نېکۍ امر کوئ او د بدۍ مخه به نیسئ که نه ژر به داسي عذاب درباندي راشي چي بیا به ناري وهئ او څوک به یې نه اوري.

(ترمذي)

عکرمه وایي چي عبدالله بن عباس ﷺ وویل: هره اونۍ وعظ کوئ، دوه ځله یې هم کولای شئ خو تر دري یې مه زیاتوئ، خلګ له قرآنه مه زړه توري کوئ، داسي هیڅکله مه کوئ چي کله خلګو ته ورشئ هغوی په یوه شي بوخت وي تاسو خپل نصیحت پیل کړئ او د دوی خبره په منځ کي ور پري کړئ، که مو دا کار وکړ نو هغوی به له وعظ او نصیحت څخه کرکه وکړي، بلکي په داسي وخت کي خاموش اوسئ، کله چي د دوی خواهش ووینئ او دوی در څخه غوښتنه وکړي نو وعظ او نصیحت کوئ خو د سجع او قافیې له عباراتو ځان ساتئ، ځکه ما رسول الله ﷺ او د هغه ملګري لیدلي چي الفاظ یې په تکلف نه جوړول. (بخاري)

### د دنیا مینه او له مرګه تېښته:-

د رسول الله ﷺ وینا ده چي زما پر امت به داسي وخت راشي چي نور قومونه به د تیارې ګولې په څېر درباندي داسي را ټول شي لکه خوراک کوونکي چي پر دسترخوان را ټولېږي. یو چا وویل: اې د الله رسوله! ایا هغه مهال به زموږ شمېر کم وي چي زموږ د تېرولو لپاره به قومونه را باندي غونډېږي؟. ده وویل: نه! هغه وخت به مو شمېر کم نه وي مګر تاسو به په سېلاب کي د بهېدونکو خاشاکو په څېر بې ارزښته یاست، د دښمنانو له زړونو به مو وېره تللې وي، بې زړه توب او بې همتي به مو ډېره شي. یو چا

پوښتنه وکړه چې بې زړه توب به ولې را پکې پيدا شي؟. ده وويل: له دې کبله چې تاسو به له دنيا سره مينه کوئ او له مرګ څخه به تښتئ کرکه به مو ترې کېږئ. (ابوداود، معارف الحديث)

انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وويل: پر خلکو به داسي يوه زمانه راشي چې پر دين صبر کوونکی انسان به د هغه کس په څېر وي چې په خپل موټ کي يې سکروټه نيولې وي (لکه څرنګه چې په لاس کي د سکروټې نيول سخت وي همدارنګه به پر دين ثابتېدل سخت وي.) (ترمذي، مشکوة)

## هر اړخيز او مهم وصيتونه:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: ما ته خپل رب د دې شيانو ځانګړې امر کړی دی:

۱) هر وخت په يوازيتوب او ګډ ژوند کي صرف له الله وېرېږه.

۲) په غوسه او خوشالي کي د عدل او انصاف خبره کوه يعني داسي بايد ونه شي چې کله يو چا ته په غوسه يې او خوا دي بده وي نو حق يې خورې او بې انصافي کوې، خو کله چې له هغه خوشاله يې او ورسره دوستي دي وي نو د هغه بې ځايه ملاتړ او طرفداري کوې بلکي په هر حالت کي پر عدل او انصاف ټينګ شه.

۳) ما ته يې په بې وزلی، مسکنت او شتمنی درلودلو په حالت کي د اعتدال امر کړی يعني کله چې الله غريبي او مسکنت راوړي نو بې صبري او خپګان بايد ښکاره نه شي او کله چې پراخي و شتمني راولي نو بنده دي د خپل حقيقت په هېرولو غرور او تکبر نه کوي. لنډه دا چې د امتحان په دواړو حالاتو کي بايد له افراط او تفريط څخه ځان وساتل شي او اعتدال وپالل

شي. الله رسول الله ﷺ ته د همدې منځني حالت د ساتلو امر کړی دی. ور پسې رسول الله ﷺ وايي:

۴) او ما ته يې امر کړی چې له خپلوانو سره خپلوي وساتم او د هغو کسانو د قرابت حقوق په ښه ډول ورکړم چې له ما سره خپلوي ختموي او را سره بد چلند کوي.

۵) هغو خلکو ته هم ورکړه وکړم چې زه يې بې برخې کړم او زما حق يې را نه کړ.

۶) هغه خلک وبخښم چې زه يې زورولی یم او پر ما يې ظلم کړی دی.

۷) د چوپتيا په حالت کې فکر وکړم يعني په کوم حالت کې چې خاموش يم هغه وخت د غور پر شيانو تدبر وکړم او کوم شيان چې د فکر وړ وي پر هغو غور وکړم، مثلا د الله صفات او د هغه اياتونه يا دا چې الله له ما سره څه کړي، د څه شي امر يې را ته کړی زه له الله او د هغه له احکامو سره څه کوم، بايد څه وشي، پای مې څه دی، يا دا چې له الله غافل بندګان له هغه سره څرنګه وتړل شي؟. لنډه دا چې په خاموشي کې بايد همداسې فکر وشي.

۸) ما ته امر شوی چې د ذکر خبرې وکړم، يعني زه چې هر وخت خبرې کوم او څه وايم له الله سره تړاو ولري، دا نو که د الله ثنا و صفت وي يا د هغه د احکامو ښوونه او دعوت، يا دا چې په هغو کې د الله د احکامو او حدودو رعايت و ساتنه وي. په دې ټولو صورتونو کې چې کومې خبرې کېږي هغه به د ذکر له ډلې وي.

۹) ما ته امر شوی چې زما کتنه د عبرت کتنه وي (زه چې څه وينم عبرت او سبق ترې واخلم) او خلکو ته د ښو چارو امر وکړم. (معارف الحديث، رزين)

له معاذ بن جبل ؓ څخه روایت دی چې ما ته یو ځل رسول الله ﷺ د دې لسو شیانو نصیحت وکړ:

۱۰) که وژل کېږې هم له الله سره شرک مه کوه.

۲) د خپل مور و پلار نافرماني مه کوه که څه هم تا ته امر وکړي چې د خپل اهل، کورنۍ او مال په خوشې کولو ولاړ شه.

۳) هیڅکله فرض لمونځ قصدا مه پرېږده ځکه چا چې په قصد یو لمونځ پرېښود له هغه سره د الله معاهده نه شته.

۴) هیڅکله شراب مه څښه ځکه شراب د ټولو بې شرمیو اصل او بنیاد دی (ځکه نو ام الخبایث بلل شوي.)

۵) له هرې ګناه ځان ساته ځکه د ګناه په وسیله د الله قهر نازلېږي.

۶) له جهاد او جګړې مه تښته، که څه هم مړیو ته دې شا وهلې وي.

۷) کله چې یو ځای له خلکو سره اوسېږې او هلته د وبایي ناروغۍ له امله عام مرګ راشي نو هماغه پاتې شه (د ځان ساتنې په موخه له هغه ځایه مه تښته.)

۸) د خپل وس په اندازه پر کورنۍ لګښت کوه (مه له بخل څخه کار اخله چې د پیسو په درلودلو هغوی په تکلیف کړې او مه په لګښت کې تر خپل وس زیادت کوه.)

۹) او د ادب لپاره (د اړتیا پر مهال) له دوی سره سختي هم کوه.

۱۰) او هغوی له الله وېروه. (مسند احمد، معارف الحدیث)

له ابو ایوب انصاري ؓ څخه روایت دی چې یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی او ویې ویل: ما ته لنډ نصیحت وکړه. ده وویل: کله چې پر لمانځه

ودرېږي نو د هغه چا په څېر لمونځ وکړه چي له ټولو رخصت اخلي او ځي، يعني له دنيا څخه د تلونکي کس په څېر لمونځ کوه، هره ورځ د دا ډول لمانځه هڅه وکړه، له خولې داسي خبره مه باسه چي سبا معذرت او ځواب ورکولو ته اړ شې، يعني تل د خبرې پر مهال دې ته فکر کوه چي داسي څه ونه وايې څو سبا په دې دنيا کي د نورو په وړاندي يا د قيامت په ورځ د الله په وړاندي ځواب ورکړې. د خلکو په لاس کي چي څه دي خپل ځان قطعا ترې ناهيلی کړه، يعني ستا د اميدونو او توجو مرکز بايد الله وي او له مخلوقه خپلې هيلې وشلوه. (مسند احمد، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ ويلي: زه تاسو ته له الله څخه د وېرېدو او د وخت د مشر د اطاعت او امرمنلو وصيت کوم که څه هم هغه يو حبشي غلام وي، په تاسو کي چي څوک تر ما وروسته ژوندی پاتي شي ژر به ډېر اختلافات ووينې نو په دې وخت کي زما او د رشد و هدايت درلودونکو خلفاوو طريقه خپله کړئ، ښه ټينګه يې ونيسئ بلکي غاښونه پرې ټينګ کړئ او له بدعته ځان وساتئ ځکه په دين کي بې سنده هر کار بدعت دی او هر بدعت ګمراهي ده.
(مشکوة، معارف الحديث)

له معاذ ؓ څخه روايت دی چي يوه ورځ مي رسول الله ﷺ ته وويل: يو داسي عمل را وښيه چي په وسيله يې جنت ته ورسېږم او له دوزخ څخه لرې شم. ده وويل: تا ډېره لويه پوښتنه وکړه دا د هغه چا لپاره اسانه ده چي ورته اسانه شوې وي، الله توفيق او وس ورکړي نو وا وره لومړی خبره داده چي د دين بنسټيزو غوښتنو ته پام کوه او په پوره توجو يې ادا کوه (د الله عبادت کوه او هيڅ شی ورسره مه شريکوه) په ښه طريقه او د زړه په توجو لمونځ

کوه، زکات ورکوه، د رمضان روژې نیسه او د بیت الله حج کوه. بیا یې وویل: ایا د خیر دروازې هم در وښیم؟ (ګواکي ده چي کوم څه ور ښودلي وو هغه د اسلام ارکان او فرایض وو) تر دې وروسته یې وویل: که ته غواړې زه به د خیر نوري دروازې در وښیم غالبا یې له دې څخه مراد نفلي عبادات وو (د معاذ ﷺ د غوښتني په لیدو یې ورته وویل:) روژه (له ګناه څخه پیدا کېدونکي اور) داسي وژني لکه اوبه او د شپې د منځنی برخې لمونځ (د تهجد د لمانځه هم دا حال دی او د خیر په دروازو کي خاص مقام لري) تر دې وروسته یې (د تهجد او صدقې د فضیلت په سلسله کي د سورت السجدې دا ایت تلاوت کړ:)

تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ * فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ* (السجدة: ۱۶، ۱۷)

دشپې یې اړخونه له خپلو ځایونو بېلېږي، د وېرې او تمې له مخې خپل رب ور بولي او زموږ له رزق څخه نفقه کوي نو نفس په هغه څه نه پوهېږي چي دوی ته د خپلو اعمالو په بدل کي د سترګو کوم سړوالی پټ شوی.

ورپسې رسول الله ﷺ وویل: زه تا ته د دین سر او د هغه عمود یعني ستن او لوړه څوکه درونه ښیم؟. ما وویل: ضررو. ده وویل: د دین سر اسلام دی، ستن یې لمونځ او لوړه څوکه یې جهاد دی. ورپسې یې وویل: هغه څه به هم در وښیم چي ګواکي دا ټول شیان پرې تړلي. ما وویل: حتما یې را وښیه نو ده خپله ژبه ونیوله او ویې ویل: دا کنټرول کړه، باید په خوځېدو کي

بې باکه نه وي. معاذ ﷺ وويل: ما عرض وکړ چې اې د الله رسوله! موږ چې څه وايو ايا په هغو هم نيول کېږو؟. رسول اللهﷺ وويل: اې معاذه! تا دې مور ونه ژړوي انسانان به د خپلو بې باکو خولو له کبله پړمخي دوزخ ته واچول شي. (مسند احمد، جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

له انس ﷺ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ ابو ذر غفاري ﷺ ته وويل: تا ته دوه داسي خويونه وښيم چې پر شا ډېر سپک دي او د الله په تله کي به ډېر درانه وي؟. ابو ذر وويل چې ما عرض وکړ: اې د الله رسوله! ضرورېې را وښيه. ده وويل: زياته چوپتيا او غوره اخلاق، قسم په هغه ذات چې زما نفس يې په واک کي دی د مخلوقاتو په اعمالو کي دا دوه شيان بې جوړې دي. (شعب الايمان، معارف الحديث)

له عمران بن خطان څخه روايت دی چې يوه ورځ ابو ذر غفاريﷺ ته ورغلم نو پر داسي وخت مې په مسجد کي وليد چې په توره کمپله کي پېچلی يوازې ناست وو. ومې ويل: ولې يوازې او تنها يې؟. ده وويل: له رسول اللهﷺ مې اورېدلي چې تر ناسمو ملګرو يوازيتوب ښه دی، تر يوازيتوب له غوره ملګري سره ناسته ښه ده، تر خاموشي يو چا ته د ښو خبرو کول غوره دي او تر بدو خبرو خاموشي غوره ده. (شعب الايمان، معارف الحديث)

له ابو ذر غفاري ﷺ څخه روايت دی چې ما ته رسول اللهﷺ د اوو شيانو ځانګړې امر وکړ:

۱) له مسکينانو او بې وزلو سره مينه او هغوی ته نژدېکت.

۲) ده ما ته وويل چې په دنيا کي بايد هغو کسانو ته وګورم چې تر ما يې درجه ټيټه ده يعني دنيوي وسايل يې تر ما لږ دي او هغو ته ونه ګورم چې

تر ما يې درجه لوړه ده يعني تر ما د ډېر وسايل ور کړل شوي دي. په نورو رواياتو کې دي چې په دې سره بنده د صبر او شکر صفت تر لاسه کوي او دا ښکاره خبره ده. ورپسې ابو ذر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ را ته وويل:

۳) زه به له خپلوانو سره خپلوي ساتم او د قرابت اړیکه به نه غوځوم يعني له دوی سره به هغه ډول چلند او سلوک کوم چې بايد له خپلو عزيزانو او قريبانو سره وشي که څه هم دوی يې را سره ونه کړي. ده را ته وويل:

۴) له هيچا يو شی مه غواړه، يعني د خپلې هرې اړتيا لپاره الله ته لاس غزوه او له ده پرته له بل چا سوال مه کوه.

۵) هر ځای به د حق خبره کوم که څه هم د خلکو لپاره ترخه وي، د دوی د اغراضو او خواهشاتو خلاف او ښه نه پر لګېږي. رسول الله ﷺ ما ته امر وکړ:

۶) چې هيڅکله به د الله په لار کې د چا له ملامتيا نه وېرېږم يعني که څه هم د دنيا خلک ما ملامت کړي زه به هغه څه وايم او کوم به يې چې د الله امر وي، دی پرې خوشالېږي او د چا د بدې وينا پروا به نه لرم. ده بيا راته وويل:

۷) زه به د لا حول و لا قوة الا بالله کلمه ډېره وايم، ځکه دا تر عرش لاندې خزانې څخه ده يعني دا د هغې خزانې قيمتي ملغلرې دي چې تر الهي عرش لاندې ده، الله يې د خپلې خوښې بندګانو ته ورکوي او هيڅوک هلته لاسرسی نه لري. ( مسند احمد، معارف الحديث )

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: کوم مهال چې د قيامت په ورځ خلک الهي حضور ته ورانديځ شي نو د هيچا پښې به تر هغه وخته ونه خوځېږي چې د پنځو شيانو پوښتنه ترې نه وي شوې:

۱) خپل ژوند او عمر يې پر کومو کارونو تېر کړ؟.

بې باکه نه وي. معاذ ؓ وويل: ما عرض وکړ چې اې د الله رسوله! موږ چې څه وايو ايا په هغو هم نيول کېږو؟. رسول الله ﷺ وويل: اې معاذه! تا دې مور ونه زېږوي انسانان به د خپلو بې باکو خولو له کبله پرمخې دوزخ ته واچول شي. (مسند احمد، جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

له انس ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ ابو ذر غفاري ؓ ته وويل: تا ته دوه داسې خويونه وښيم چې پر شا ډېر سپک دي او د الله په تله کې به ډېر درانه وي؟. ابو ذر وويل چې ما عرض وکړ: اې د الله رسوله! ضرور يې را وښيه. ده وويل: زياته چوپتيا او غوره اخلاق، قسم په هغه ذات چې زما نفس يې په واک کې دی د مخلوقاتو په اعمالو کې دا دوه شيان بې جوړې دي. (شعب الايمان، معارف الحديث)

له عمران بن خطان څخه روايت دی چې يوه ورځ ابو ذر غفاري ؓ ته ورغلم نو پر داسې وخت مې په مسجد کې وليد چې په توره کمپله کې پېچلی يوازې ناست وو. ومې ويل: ولې يوازې او تنها يې؟. ده وويل: له رسول الله ﷺ مې اورېدلي چې تر ناسمو ملګرو يوازيتوب ښه دی، تر يوازيتوب له غوره ملګري سره ناسته ښه ده، تر خاموشۍ يو چا ته د ښو خبرو کول غوره دي او تر بدو خبرو خاموشي غوره ده. (شعب الايمان، معارف الحديث)

له ابو ذر غفاري ؓ څخه روايت دی چې ما ته رسول الله ﷺ د اوو شيانو ځانګړې امر وکړ:

۱) له مسکينانو او بې وزلو سره مينه او هغوی ته نژدې کت.

۲) ده ما ته وويل چې په دنيا کې بايد هغو کسانو ته وګورم چې تر ما يې درجه ټيټه ده يعني دنيوي وسايل يې تر ما لږ دي او هغو ته ونه ګورم چې

تر ما يې درجه لوړه ده يعني تر ما د بېړ وسايل ور کړل شوي دي. په نورو روایاتو کې دي چې په دې سره بنده د صبر او شكر صفت تر لاسه کوي او دا ښکاره خبره ده. ور پسې ابو ذر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ را ته وويل:

۳) زه به له خپلوانو سره خپلوي ساتم او د قرابت اړيکه به نه غوڅوم يعني له دوی سره به هغه ډول چلند او سلوک کوم چې بايد له خپلو عزيزانو او قريبانو سره وشي که څه هم دوی يې را سره ونه کړي. ده راته وويل:

۴) له هيچا يو شی مه غواړه، يعني د خپلې هرې اړتيا لپاره الله ته لاس غزوه او له ده پرته له بل چا سوال مه کوه.

۵) هر ځای به: حق خبره کوم که څه هم د خلکو لپاره ترخه وي، د دوی د اغراضو او خواهشاتو خلاف او ښه نه پر لګېږي. رسول الله ﷺ ما ته امر وکړ:

۶) چې هيڅکله به د الله په لار کې د چا له ملامتيا نه وېرېږم يعني که څه هم د دنيا خلک ما ملامت کړي زه به هغه څه وايم او کوم به يې چې د الله امر وي، دی پرې خوشالېږي او د چا د بدې وينا پروا به نه لرم. ده بيا راته وويل:

۷) زه به د لا حول و لا قوة الا بالله کلمه ډېره وايم، ځکه دا تر عرش لاندې خزانې څخه ده يعني دا د هغې خزانې قيمتي ملغلرې دي چې تر الهي عرش لاندې ده، الله يې د خپلې خوښې بندګانو ته ورکوي او هيڅوک هلته لاسرسی نه لري. ( مسند احمد، معارف الحديث )

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: کوم مهال چې د قيامت په ورځ خلک الهي حضور ته وړاندې شي نو د هيچا پښې به تر هغه وخته ونه خوځېږي چې د پنځو شيانو پوښتنه ترې ونه وي شوې:

۱) خپل ژوند او عمر يې پر کومو کارونو تېر کړ؟.

۲) ځواني او د ځوانۍ طاقت يې پر څه شي زوړ کړ؟.

۳) مال يې له کومه ځايه، په کومه طريقه او له کومو لارو ترلاسه کړ؟.

۴) خپله شتمني يې پر څه شي او کومو لارو ولګوله؟.

۵) اخيري پوښتنه به دا وي چې په څه پوهېده څومره عمل يې پرې وکړ؟. (جامع ترمذي، جامع الحديث)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وويل: که څلور خصلتونه خپل کړئ نو د دنيا او نعمتونو نه شتون او نه ترلاسه کول يې نه پروا لري او نه تاوان دی.

۱) د امانت ساتنه. ۲) په خبرو کې رښتنولي

۳) غوره اخلاق ۴) په خوراک کې احتياط او تقوا

(مسند احمد، بيهقي، معارف الحديث)

له عمرو بن ميمون اودي څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ يوه سړي ته په نصيحت کې وويل: پنځه حالات د نورو پنځو حالاتو تر راتلو وړاندې غنيمت وګڼه او ګټه ترې واخله:

۱) ځواني تر بوډاتوب وړاندې غنيمت وبوله.

۲) روغتيا تر ناروغۍ وړاندې غنيمت وګڼه.

۳) خوشالي او پراخي تر بې وزلي او تنګلاسي وړاندې.

۴) فرصت او فراغت تر بوختيا وړاندې.

۵) ژوند تر مرګ وړاندې. (جامع ترمذي، معارف الحديث)

## مېرمنو ته نصيحت:-

ابن عمر ﷺ روايت کوي چي رسول الله ﷺ وويل: اې ښځو! خيرات کوئ او زيات استغفار غواړئ ځکه په دوزخيانو کي مي د مېرمنو شمېر ډېر ليدلی دی، په دوی کي يوې هوښيارې ښځې وويل: اې د الله رسوله! موږ څه ګناه کړې چي په دوزخ کي به مو شمېر ډېر وي. ده وويل: تاسو په خپلو خبرو کي د ډېر لعنت ويلو عادت لرئ او د خپل مېړه ناشکري کوئ. ما ستاسو په څېر په دين و عمل کي نيمګړې او بيا پر هوښيار سړي غالبېدونکي نه دي ليدلی. (بخاري، مسلم، ترجمان السنة)

## نذر:-

عمران بن حصين ﷺ وايي چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ويې ويل: نذر پر درې ډوله دی يو نذر هغه دی چي د الله د بندګۍ او اطاعت لپاره ومنل شي د هغه پوره کول ضروري دي ځکه خاص د الله لپاره دی، دويم هغه نذر دی چي د الله د نافرمانۍ او ګناه لپاره وي، دا شيطاني نذر دی پوره کول يې روا نه دي. د دې نذر هغه کفاره دي ورکړي چي د قسم په کفاره کي ورکول کېږي. (نسايي، مشکوة)

ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: څوک چي د نا معلوم شي نذر ومني نو د قسم کفاره يې کفاره ده او څوک چي د ګناه نذر ومني نو د قسم په څېر کفاره دي ورکړي او څوک چي د نه کېدونکي شي نذر ومني نو د قسم کفاره به ورکوي او که څوک داسي نذر ومني چي پوره کولای يې شي نو خپل نذر دي ادا کړي. (ابو داود، مشکوة)

**قسم: -**

ابن عمر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ ويلي: چا چي قسم وکړ او ان شاء الله يې هم وويله نو د قسم په مخالفت گناهگار نه دی. ابن عمر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: چا چي په غير الله قسم وخوړ نو شرک يې وکړ.

(ترمذي، مشکوة)

**فال: -**

ابو هريره ﷺ وايي چي له رسول الله ﷺ څخه مي واورېدل ويې ويل: بد فالي هيڅ شی نه ده او نېک فالي ښه کار ده. خلکو وويل: فال څه شی دی؟. رسول الله ﷺ وويل: هغه ښه کلمه چي په تاسو کي يې يو څوک د يو چا او يا يو شي په وسيله واوري. (بخاري، مسلم، مشکوة)

عروه بن عامر ﷺ وايي چي ما د رسول الله ﷺ په مخ کي بد فالي ياده کړه، ده وويل: نېک فالي ښه شی ده او يو مسلمان بايد د بد فالي له وجې خپل هدف او مقصد پرې نه ږدي. که په تاسو کي څوک داسي شی ويني چي بد يې گڼي يعني بد فالي وي نو دا الفاظ دي ووايي: اللهم لا يأتي بالحسنات الا انت و لا يدفع السيئات الا انت و لا حول و لا قوة الا بالله.

(ابوداود، مشکوة)

اې الله! له تا پرته بل څوک د ښېگڼو راوستونکی نه شته او له تا پرته د بديو مخنيوونکی نه شته، له الله پرته نه څوک مرسته کولای شي او نه قوت لري.

**خوب:-**

ابو بذیل عقیلي وایي: رسول الله ﷺ ویلي چي د مومن خوب د نبوت څلوېښتمه برخه ده او خوب چي تر کومه وخته بیان نه شي نو پاس ځوړند وي خو کله چي بیان شي واقع کېږي. د راوي وینا ده: زه فکر کوم رسول الله ﷺ دا هم وویل چي خوب صرف د دوست او یا هوښیار سړي په مخ کي بیان کړئ. (ترمذي، مشکوة)

## د دیني علم شروع کولو د ورځې فضیلت:-

په روایت کي دي چي د دوشنبې په ورځ علم طلبوئ، په دې سره د علم تر لاسه کول اسانېږي. دا مضمون د پنج شنبې په اړه هم راغلی دی، په ځینو روایاتو کي د چارشنبې ورځ یاده شوې ده. د هدایې د لیکوال په اړه نقل شوی چي ده د چارشنبې په ورځ د کتاب شروع کولو ډېر خیال ساته او ویل به یې: کوم شی چي د چارشنبې په ورځ پیل شي هغه پای ته رسېږي. (شرح تعلیم المتعلم، بهشتي زیور)

## د یو سنت پر ژوندي کولو د سلو شهیدانو اجر:-

په یوه حدیث کي دي چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک زما امت ته څلوېښت احادیث ورسوي نو زه به یې ځانګړی شفاعت وکړم. (جامع صغیر)

رسول الله ﷺ وویل: کوم وخت چي زما په امت کي د دین خرابي پیدا شي که هغه وخت څوک زما طریقه ټینګه کړي نو د سلو شهیدانو اجر به ورکړل شي. (بهشتي زیور)

## د رسول الله ﷺ وصیت:-

رسول الله ﷺ ویلي: زه په تاسو کي داسي شی پرېږدم چي که مو را ټینګ کړ هیڅکله به بې لارې نه شئ یو د الله کتاب بل زما سنت. (بهشتي زیور)

# دویم باب ... عبادات

## لمونځ، له هغه سره تړلي شیان او پاکي

### پاکي د ایمان جز ده:-

له ابو مالک اشعري ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: پاکي د ایمان جز ده. الحمد لله تله ډکوي او سبحان الله و الحمد لله ځمکه او اسمانونه ډکوي، لمونځ نور دی، صدقه دلیل و برهان دی، صبر رڼا ده او قرآن یا ستاسو لپاره او یا ستاسو پر خلاف حجت دی، هر سړی چي سهار را کښېني یا ځان پلوري، یا نجات ورکوي او یا یې هلاکوي.
(صحیح مسلم، معارف الحدیث)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: لس شیان فطري دي:
۱) د برېتونو کمول. ۲) د ږیرې پرېښودل. ۳) مسواک وهل. ۴) په اوبو د نوکانو پاکول. ۵) نوکان غوڅول. ۶) د ګوتو بندونه پرېمنځل. ۷) د بغل وېښتان اخیستل. ۸) تر نامه لاندي وېښتان پاکول. ۹) په اوبو استنجا.

د حدیث راوي زکریا وایي چي زموږ شیخ مصعب همدا نهه شیان ذکر کړل او ویې ویل چي لسم مي هېر شو زما ګومان دادی چي هغه په خوله اوبه رغړول دي. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

## د قضاء حاجت په اړه د رسول الله ﷺ عادت

### استنجا:-

۱) کله چې به رسول الله ﷺ بیت الخلا ته ننووت نو لومړی به یې چپه پښه دننه کوله او کله چې به راوتی نو لومړی یې راسته پښه را ایستله.

۲) کله چې به بیت الخلا ته تلی نو دا دعا یې ویله: اللهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الخُبُثِ والخبائِثِ اې الله! زه له خبیثو نارینه او ښځینه پېریانو ستا پناه غواړم.

کله چې به دباندې راووت دا دعا یې ویله: غفرانک، یا دا چې الحمدلله الذی اذهب عنی الاذی و عافانی. کله به یې دواړې هم ویلې یعني ټول تعریفونه هغه الله لره چې له ما یې ضروري شیان لرې کړل او ارام یې راکړ. (زاد المعاد، ترمذي، ابن ماجه)

۴) کله چې به رسول الله ﷺ ځارګښت ته ولاړ نو تر هغو یې خپل سترنه خلاصاوه چې ځمکې ته به نه وو نژدې شوی. (زاد المعاد)

۵) رسول الله ﷺ به په نرمه ځمکه کې بولې کولې، که به یې نرمه ځمکه ونه موندله نو په لرګي او یا بل سخت شي به یې ځمکه نرموله او بیا به یې بولې کولې. (زاد المعاد)

۶) له حبیب بن صالح ﷺ څخه روایت دی چې کله به رسول الله ﷺ ځاراګښت ته تلی نو پایزار یې په پښو کول او سر یې پټاوه. (ابن سعد)

۷) ځیني وختونه به یې په اوبو استنجا وهله، کله به یې په لوټه او کله به یې دواړه کارول. د لوټو شمېر به طاق وو، لږ تر لږه درې. په استنجا کې یې

له چپه لاسه کار اخیستل او کله چې به یې په اوبو استنجا وو هله نو وروسته به یې لاس په ځمکه مښي.

۸ ) د بولو لپاره به پر دوو تلو کښېنستی، د دوارو ورنو تر منځ به یې فاصله پرېښوده، د ځاراګښت لپاره یې د رېګ یا خاورې غونډۍ، د ونو ځلي یا د خورما او نورو شیانو حجاب خوښاوه.

۹ ) کله چې به رسول اللهﷺ پر ځاراګښت کښېنستی نو قبلې ته به یې نه مخ ګرزاوه او نه شا. ( زاد المعاد )

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ به کله استنجا ته تلی نو ما به اوبه ورته راوړې، ده به ځان پرې پاکاوه بیا به یې لاسونه په خاورو مښل. وروسته به مې دویم لوښی راوور نو ده به اودس پرې وکړ.
(سنن ابی داود)

مطلب دادی چې رسول اللهﷺ په لوټه او یا بل شي تر استنجا وهلو وروسته په اوبو هم پاکي کوله، وروسته یې لاس په ځمکه مښل او پرېمنځل یې او بیا یې اودس کاوه. له دې حدیث څخه معلومه شوه چې رسول اللهﷺ ت قضا حاجت او استنجا وروسته اودس هم کاوه مګر کله - کله به یې د دې څرګندولو لپاره چې اودس کول یوازې ښه او غوره کار دی فرض او واجب نه دی هغه پرېښودی هم. په سنن ابی داود او سنن ابن ماجه کې له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې یو ځل رسول اللهﷺ له بولو فارغ شو نو عمر ﷺ د اوداسه اوبه ورته راوړې. ده ووېل: اې عمره! دا څه دي؟ ولې له اوبو سره ولاړ یې. عمر ﷺ ووېل: تا ته مې د اوداسه اوبه راوړې دي. رسول اللهﷺ ووېل: زه په دې نه یم امر شوی چې کله بولې وکړم حتما به اودس کوم، که زه همداسي

دوام ورکړم او تل يې جاري وساتم نو د امت لپاره به يو قانون او دستور وګرزي. (معارف الحديث)

**د قضاء حاجت او استنجا په اړه لارښوونې:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: زه ستاسو لپاره د يوه پلار په څېر يم، زه تاسو ته درښيم چې کله قضاء حاجت ته ولاړ شئ نو قبلې ته مو مه مخ ګرزوئ او مه شا بلکې داسې کښېنئ چې قبله مو اړخ ته وي، نه شا او مخ ته. ابو هريره ﷺ وايي: رسول الله ﷺ په استنجا کې د درو لوټو د استعمال امر وکړ او په خشيو، هډوکو او راسته لاس استنجا يې منعه کړه. (معارف الحديث، سنن ابن ماجه، دارمي)

له عبدالله بن مغفل ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: په تاسو کې دې هيڅوک لومړی په خپله غسل خانه کې بولې نه کوي چې بيا ترې غسل او يا اودس وکړي ځکه ډېری وسوسې له همدې پيدا کېږي.

(معارف الحديث)

**د قضاء حاجت ځای ته د تلو دعا:-**

له زيد بن ارقم ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د قضاء حاجت په ځای کې چټل مخلوقات شيطانان او نور اوسېږي، نو کله چې بيت الخلا ته ځئ بايد لومړی دا دعا ووايا ست: اعوذ بالله من الخبث والخبائث.

(ابوداود، ابن ماجه، معارف الحديث)

عبدالله بن ارقم ﷺ وايي چې ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل وېې ويل: کله چې جماعت ودرېږي او په تاسو کې يو څوک استنجا ته اړتيا لري نو بايد

لو مړی له استنجا ځان خلاص کړي. ( جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

**د استنجا مسایل: –**

۱) کوم نجاست چي د مخ یا شا له خوا ووزي استنجا ضروري ده.

(شامي)

۲) که نجاست شا و خوا خپور نه شي او استنجا په اوبو ونه شي کړای بلکي په پاکه ډبره او یا لوټه استنجا ووهي او دومره یې وچ کړی چي نجاست له منځه ولاړ شي نو هم پروا نه لري خو دا خبره د طبعي صفایي خلاف ده البته که اوبه کمې او یا نه وي نو مجبوري ده. (تنویر، شامي)

۳) په لوټه د استنجا وهلو کومه خاصه طریقه نه شته صرف دې ته دي پام کوي چي مرداري شا و خوا خپره نه شي او بدن پاک شي. (فتوح، هندیه)

۴) په لوټه تر استنجا وروسته د اوبو استنجا سنت ده. (ترمذي)

خو که نجاست تر ورغوي زیات خپور شي نو په دې وخت کي یې په اوبو مینځل واجب دي یعني له مینځلو پرته لمونځ نه کېږي او که نجاست خپور شوی نه وي یوازي په لوټه یې پاک کړي نو لمونځ کولای شي خو د سنت خلاف دی. (شرح التنویر)

۵) کله چي بیت الخلا ته ورځي نو تر دروازې دباندي دي بسم الله ووایي او مسنونه دعا دي وکړي.

۶) کله چي ور ننوزي نو اول دي چپه پښه د ننه کړي.

۷) بیت الخلا ته دي لوڅ سر نه ځي. (زاد المعاد)

۸) که د چا پر ګوتمۍ د الله یا رسول نوم لیکلی وي نو هغه دي لرې کړي.

۹ ) کوم تاویز چي پوښ ولري نو په غاړه کول يې جایز دي.

۱۰ ) که په بیت الخلا کي پرنجی ورشي نو له ځان سره دي الحمدلله ووايي په خوله دي د الله نوم نه اخلي.

۱۱ ) په بیت الخلا کي دننه دي خبرې نه کوي. (مشکوة)

۱۲ ) کله چي راوزي نو اول دي راسته پښه را وباسي او له دروازې په راوتلو دي مسنونه دعا ووايي.

۱۳ ) تر استنجا وروسته دي چپ لاس په ځمکه ومښي، بیا دي په خاوره ترککړولو وروسته ومينځي.

۱۴ ) استنجا باید په چپه لاس ووهل شي خو که عذر وي نو په راسته لاس هم پروا نه لري.

۱۵ ) په داسي ځای کي استنجا کنا ده چي بل څوک يې عورت ويني، په ولاړه بولې کول، په څاه، حوض کي دننه هر ډول مرداري مکروه تحريمي او ممنوع دي.

۱۶ ) د مسجد له دېوال سره، په هدیره او یا د یوه شي په غار کي هر ډول مرداري منعه ده.

۱۷ ) پر تیټ ځای په کښېنستلو پورته بولې کول، د خلکو د تګ-راتګ پر لار مرداري کول.

۱۸ ) او د اوداسه یا غسل په ځای کي مرداري کول مکروه او ممنوع دي.

۱۹ ) د حاجت پوره کولو پر مهال له اړتیا پرته باید خبرې ونه شي.

(مشکوة)

۲۰) د بولو او یا استنجا پر مهال دي خپلو فرجو ته راسته لاس نه وروړي بلکي له چپ لاس څخه دي کار اخلي. (بخاري و مسلم)

۲۱) د بولو له څاڅکو دي ډېره ډډه کوي ځکه د قبر ډېر عذاب له دې څاڅکو څخه د ځان نه ساتلو په وجه وي. (ترمذي)

۲۲) که په ځنګل یا له ښاره دباندي په میدانی کي قضاء حاجت ته اړتیا شي نو د خلګو له نظره لرې دي ولاړ شي. (معارف الحدیث، سنن ابی داود، ترمذي)

۲۳) یا دي داسي کښته ځای ته ولاړ شي چي هیڅوک یې نه شي لېدای.

۲۴) د بولو کولو لپاره دي نرمه ځمکه پیدا کړي چي څاڅکي ورو انه لوزي او په ځمکه کي جذب شي. (ترمذي)

۲۵) بولې باید په ناسته وشي نه په ولاړه. (ترمذي)

۲۶) که تر بولو وروسته استنجا ته اړتیا وي نو باید د دېوال او یا شي پناه وجود ولري. (بهشتي زیور)

**مسواک:-**

د مسواک په فضیلت او اهمیت کي ګڼ احادیث راغلي دي، رسول اللهﷺ ویلي دي: که زه پر خپل امت له سختۍ نه وېرېدای نو د هر لمانځه لپاره به مي مسواک پرې واجب کړی وای. (صحیح البخاري، صحیح مسلم)

مسواک وهل د پاکۍ وسیله او د الهي رضا سبب دی. (بخاري)

رسول الله ﷺ ویلي: هر وخت چي جبریل راغلی ما ته یې د مسواک وهلو خبره کړې ده او وېره ده چي (د جبریل په بیا - بیا ټینګار او وصیت) زه د خپلې خولې لومړنۍ برخه په مسواک وهلو سوری نه کړم. (مسند احمد)

رسول الله ﷺ چي به کله د قرآن ویلو یا خوب اراده وکړه نو مسواک به یې واهه. کور ته د ننوتلو پر مهال یې هم مسواک واهه، عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ کور ته تر ننوتلو وروسته لومړی مسواک واهه او د اوداسه و لمانځه پر مهال یې هم له مسواک څخه کار اخیست. په ګوته مسواک وهل هم کافي دي، په خپله ګوته وي او که د بل چا او په سخت کلک ټوکر مسواک هم کفایت کوي.

ابو نعیم او بیهقي روایت کوي چي رسول الله ﷺ به د غاښو پر ساره مسواک واهه او په مواهب اللدنیه کي دي چي په راسته لاس د مسواک وهل مستحب دي. د احادیثو ځینو شارحینو ویلي چي په مسواک کي له راسته اړخ څخه مطلب دادی چي له همدې خوا یې شروع وشي. له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي دشپې به د رسول الله ﷺ مسواک ساتل کېده، کله چي به دشپې لمانځه ته پورته شو د مسواک په وهلو به یې اودس کاوه.

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د ورځې یا د شپې کله له خوبه را پاڅېد نو تر اوداسه وړاندي یې حتما مسواک واهه. (معارف الحدیث، مسند احمد، سنن ابی داود)

د وفات په ناروغۍ کي د رسول الله ﷺ وروستی عمل مسواک وو، له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د کوم لمانځه لپاره چي

مسواک ووهل شي تر هغه لمانځه چي بې مسواکه وشي اويا ځله فضيلت لري. (شعب الايمان، معارف الحديث)

**د مسواک سنتونه:-**

۱) مسواک بايد تر يوه لوېشت زيات او تر ګوته پنډ نه وي.

(بحر الرايق)

۲) مسواک بايد لږ تر لږه درې ځله ووهل شي او هر ځل دي په اوبو لوند کړي.

۳) که په ګوته مسواک وهي نو طريقه يې داده چي د خولې راسته اړخ کښته- پورته په بټه ګوته پاک کړي او همدارنګه يې چپ اړخ د شهادت په ګوته پاک کړي.

۴) د مسواک نيولو طريقه داده چي کمچه ګوته دي تر مسواک لاندي، بټه ګوته دي د مسواک تر سر لاندي او پاتي ګوتې دي پر مسواک سربېره وي. (شامي)

مسواک بايد د غاښو پر سور او د خولې پر اوږدوالي ووهل شي، د غاښو ظاهر او باطن او اطراف دي هم په مسواک پاک کړي، همدا راز بايد د خولې کښته- پورته برخه، ژامې او نور هم په مسواک صفا شي.

(طحطاوي)

**د مسواک سنت او مستحب وختونه:-**

۱) تر ويدېدو وروسته.

۲) د اوداسه پر مهال.

۳) د قرآن کریم د تلاوت لپاره.

۴) د احادیثو د درس پر مهال.

۵) د خولې د بد بویي او غاښونو د رنګ خرابېدو پر مهال.

۶) لمانځه ته د ولاړېدو پر مهال چې د اوداسه او لمانځه تر منځ زیاته فاصله وي.

۷) تر الهي ذکر وړاندي.

۸) کعبې یا حطیم ته تر داخلېدو وروسته.

۹) کور ته تر ننوتلو وروسته.

۱۰) له مېرمنې سره تر جنسي اړیکو وړاندي.

۱۱) د خیر یوه مجلس ته تر تګ وړاندي.

۱۲) د لوږې او تندې پر مهال.

۱۳) د مرګ د اثارو تر پیدا ایښت وړاندي.

۱۴) د پېشلمي پر مهال.

۱۵) تر خوراک وړاندي.

۱۶) سفر ته تر تلو وړاندي.

۱۷) له سفره تر راستنېدو وروسته.

۱۸) تر ویدېدو وړاندي. (الترغیب و الترهیب)

**غسل:-**

عائشه ﷺ وایي چې رسول اللهﷺ چې به کله د جنابت غسل کاوه نو تر هر څه اول به یې دواړه لاسونه مینځل، بیا به یې په چپه لاس استنجا وهله او په ښي لاس به یې پر چپه لاس اوبه اچولې (په لاس اوبه اچول په داسي حال

کي وو چي د اوبو اخيستلو لپاره به وړوکی لوښی نه وو موجود ) بیا به يې داسي او دس کاوه لکه د لمانځه لپاره، وروسې به يې اوبه ورواخيستې دوښتانو په بېخونو کي به يې ګوتې واچولې هلته به يې اوبه رسولې تر دې چي کله به رسول الله ﷺ پوه شو ټولو ته يې په ښه ډول اوبه رسولې دي نو درې لاسونه به يې ډک کړل، درې ځله به يې پر خپل سر اوبه اچولې، وروسته به يې پر خپل ټول بدن اوبه بهولې او بيا به يې دواړې پښې مينځلې. (بخاري و مسلم)

عبدالله بن عباس ﷺ دې ته ورته حديث له ميمونې ﷺ څخه هم روايت کړی، په هغه کي دې زياته کړې چي بيا ما رسول الله ﷺ ته دسمال ورکړ نو ده وانه خيست. د صحيحينو په بل روايت کي دا زياتونه هم ده چي رسول الله ﷺ د دسمال استعمالولو پر ځای له بدن څخه اوبه وڅنډلې. (بخاري و مسلم)

د عائشې ﷺ او ميمونې ﷺ له دې رواياتو څخه د رسول الله ﷺ د غسل پوره تفصيل ښکاري يعني دا چي رسول الله ﷺ تر هر څه وړاندي درې ځله خپل لاسونه مينځل (ځکه چي د لاسونو په وسيله ټول بدن مينځل کېږي) وروسته يې په چپه لاس استنجا وهله او په راسته لاس يې اوبه ورباندي اچولې. بيا يې چپ لاس پر ځمکه مښی او په ښه ډول يې مينځی، وروسې يې اودس کاوه چي درې ځله يې په خوله اوبه رغړولې، پزه يې په ښه ډول پاکوله، د هغې دننه برخه يې مينځله، له عادت سره سم يې د ږيرې خلال کاوه، د هغې هر وېښته يې مينځی، د وېښتانو بېخونو ته يې اوبه رسولې، وروسته يې د سر وېښتان هم دغه ډول مينځل او د هر وېښته بېخ ته يې د اوبو رسولو هڅه کوله. بيا يې ټول بدن مينځی، وروسته به د غسل له ځايه لرې

شو او پښې به یې ومینځلې. غالبا دا کار یې له دې وجې کاوه چې د غسل هغه ځای به پاک او پوخ نه وو. (معارف الحدیث)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: حایضه ښځه او جنب سړی دې د قرآن هیڅ شی نه لولي یعني دوی دواړو ته د مقدس الهي کتاب لوستل روا نه دي. (معارف الحدیث، جامع ترمذي)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د بدن تر هر وېښته لاندې د جنابت اثار وي، نو ځکه باید د جنابت په غسل کې وېښتان ښه ومینځل شي (څو د انساني بدن هغه برخه چې تر وېښتانو لاندې پټه ده صفا شي) او د بدن ظاهري برخه (چې وېښتان ورباندې نه شته) هم باید په ښه ډول صفا او ومینځل شي.

(سنن ابی داود، جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

له سمره بن جندب ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د جمعې په ورځ (د لمانځه لپاره) اودس وکړي نو هم کافي دی او څوک چې غسل وکړي نو غسل غوره دی. (مسند احمد، سنن ابی داود، جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## د غسل مسنون صورتونه:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: پر هر مسلمان حق ده (یعني اړینه ده) چې د هرې اونۍ په اوو ورځو کې یوه ورځ (جمعه) غسل وکړي، د خپل سر وېښتان او ټول بدن دې په ښه ډول ومینځي. (بخاري و مسلم، معارف الحدیث)

۱) د جمعې په ورځ د سهار تر لمانځه وروسته د هغو خلګو لپاره غسل سنت دی چې د جمعې لمونځ پرې واجب وي.

۲) د اخترانو په ورځ تر سهار وروسته د هغو خلګو لپاره غسل سنت دی چې د اختر لمونځ پرې واجب وي.

۳) د حج او عمرې د احرام لپاره غسل سنت دی.

۴) د عرفات په ورځ د لمر تر زوال وروسته د حج کوونکو لپاره غسل سنت دی. (بهشتي ګوهر)

## اودس

### په قیامت کې د اودس د غړو رڼا:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وویل: زما امتیان به د قیامت په ورځ را وبلل شي نو د اوداسه له کبله به یې ځیرې، لاسونه او پښې ځلیږي نو که په تاسو کې څوک خپله رڼا او نورانیت زیاته او پوره کولای شئ نو حتما دې داسې وکړي. (بخاري و مسلم)

### د اوداسه طریقه:-

له عثمان ﷺ څخه روایت دی چې یوه ورځ یې اودس وکړ، لومړی یې پر خپلو دواړو لاسونو درې ځله اوبه واچولې، بیا یې درې ځله په خوله اوبه غرغره کړې، درې ځله یې په پزه کې اوبه واچولې، دننه او دباندې یې وایستلې هغه یې صفا کړه، بیا یې درې ځله خپل مخ ومینځه، تر دې وروسته یې راسته لاس درې ځله تر څنګلو ومینځه، بیا یې چپه لاس درې ځله تر څنګو ومینځه، وروسته یې پر سر مسح وکړه، بیا یې درې ځله راسته

پښه ومينځله او ور پسې يې درې ځله چپه پښه ومينځله (په دې توګه يې تر پوره اوداسه وروسته) وويل: ما رسول الله ﷺ وليد چې عيني زما په څېر يې اودس وکړ او ويې ويل: که چا دا ډول زما په شان اودس وکړ او بيا يې په پوره توجو دوه رکعته لمونځ داسې وکړ چې د نفس له فکرونو خالي وو نو د ده مخکيني ټول ګناهونه به معاف شي. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

تر اوداسه وروسته يې دا دعا ويله:

اشهد ان لا اله لا الله وحده لا شريک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله، اللهم اجعلنی من التوابين و اجعلنی من المتطهرين و اجعلنی من عبادک الصالحين و اجعلنی من الذين لا خوف عليهم و لا هم يحزنون.

زه شاهدي ورکوم چې له الله پرته هيڅ معبود نه شته او شاهدي ورکوم چې بې شکه محمد د الله بنده او رسول دی، اې الله! ته مې په ډېر پاکي کوونکو، نېکو بندګانو او هغو خلګو کې شامل کړه چې نه به وېرېږي او نه به غمجن وي.

په سنن نسايي کې روايت دی چې رسول الله ﷺ به تر اوداسه وروسته ويل:

سبحانک اللهم و بحمدک اشهد ان لا اله الا انت استغفرک واتوب اليه.

اې الله! ته پاک يې، زه دې ستايم، شاهدي ورکوم چې صرف ته معبود يې، له تا بخښنه غواړم او تا ته توبه باسم. (زاد المعاد)

له ابو موسی اشعري ﷺ څخه روايت دی چې زه د اوداسه پر وخت رسول الله ﷺ ته ورغلم نو دا دعا مې ترې واورېده:

اللهم اغفر لی ذنبی ووسع لی فی داری و بارک لی فی رزقی.

اې الله! زما ګناهونه وبخښه، کور مې پراخ کړه او په روزي کې مې برکت واچوه.

له مستور بن شداد ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ مې د اوداسه پر مهال ولید په کمچه ګوته یې د پښو ګوتې خلالولې.
(جامع ترمذي، ابوداود، ابن ماجه، معارف الحدیث)

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به کله اودس کاوه نو پر یوه لاس به یې لږ اوبه واخیستلې تر زنې لاندې د ږیرې داخلي حصې ته به یې رسولې او ږیره به یې خلالوله، ویل به یې چې ما ته مې رب همداسې امر کړی دی. (معارف الحدیث، سنن ابی داود)

رسول الله ﷺ په اوداسه کې له اوبو ښه کار اخیست مګر بیا یې هم امت ته د اوبو په استعمال کې د اسراف له کولو د ځان ساتنې سپارښتنه کړې ده.
(زاد المعاد)

## د اوداسه سنتونه او اداب :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: اې ابو هریره! کله چې اودس کوې نو بسم الله او الحمدلله وایه، اثر به یې دا وي چې تر څو اودس ولرې نو تر هغه وخته به دې لیکونکې فرشتې پر له پسې نېکۍ لیکي.
(معجم صغیر، طبراني، معارف الحدیث)

له لقیط بن صبره ﷺ څخه روایت دی چې اې د الله رسوله! د اوداسه په اړه را ته ووایه. ده وویل: اودس په ښه او کامله طریقه کوه، د لاسونو او پښو مینځلو پر مهال ګوتې خلالوه، د پزې تینکو ته اوبه رسوه او ښه یې پاکوه مګر که دې روژه وه. (معارف الحدیث، سنن ابی داود، جامع ترمذي)

رسول الله ﷺ به ډېر وخت په خپله اودس کاوه او ځيني وختونه به بل چا اوبه ور اچولې. (زاد المعاد)

**د اوداسه له درلودو سره اودس:-**

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: څوک چي له پاکۍ سره - سره اودس وکړي د هغه لپاره به لس نېکۍ وليکل شي.

(جامع ترمذي)

رسول الله ﷺ به ډېر ځله نوی اودس کاوه او کله - کله به يې په يوه اوداسه څو لمنځونه هم کول.

**د اوداسه سنت طريقه:-**

اوداسه کوونکي ته په کار ده چي اول د لمانځه لپاره د اوداسه نيت وکړي (په دې سره يې ثواب ډېرېږي) د اوداسه پر مهال دي مخ قبلې ته کړي او پر لوړ ځای دي کښېني چي د اوبو څاڅکي ور وانه لوزي، بيا دي د بسم الله الرحمن الرحيم په ويلو اودس پيل کړي. په ځينو رواياتو کي دي چي دا الفاظ دي ووايي:

۱) بسم الله العظيم و الحمد لله على دين الاسلام.

۲) بيا دي دواړه لاسونه درې ځله تر مړوندونو ومينځي.

۳) بيا دي مسواک ووهي، که مسواک نه وو نو غاښونه دي په ګوته ومښي او په خوله دي درې ځله اوبه ورغړوي، داسي چي ټولي خولې ته ورسېږي (مګر که يې روژه وه نو غرغره دي نه کوي چي اوبه يې ستوني ته ولاړې نه شي).

۴) بیا دي دري ځله په پزه اوبه ورغړوي او په چپه لاس دي پاکه کړي (که يې روژه وه نو تر نرمې غوښې دي اوبه پورته نه بيايي.)

۵) بیا دي دري ځله مخ د تندي له وېښتانو، تر زنې لاندي او د يوه غوږ له نرمۍ د بل غوږ تر نرمۍ، ومينځي، پر ټولو ځايونو دي اوبه وبهوي، د وريځو بيخ ته دي هم اوبه ورسول شي چي هسي نه کوم ځای وچ پاتي وي، د مخ مينځلو پر مهال دي ږيره د ګوتو په ورننويستلو خلال کړي.

۶) بیا دي دري ځله راسته لاس له څنګلو سره ومينځي، بيا دي چپه لاس همداسي ومينځي، د يوه لاس په ګوتو دي بل لاس خلال کړي، که مېرمنې ګوتمۍ يا بنګړي په لاس کړي وي نو هغه دي وښوروي هسي نه کوم ځای وچ پاتي شي.

۷) بیا دي يو ځل پر ټول سر مسح وکړي او غوږونه دي هم مسح کړي، د غوږونو داخلي برخه دي په سبابه ګوته او پورتنۍ برخه دي په بټه ګوته مسح کړي، ورپسې دي د ګوتو په شا څټ مسح کړي (مګر غاړه دي نه مسح کوي ځکه دا کار منعه دی) د غوږو مسح کولو لپاره نويو اوبو ته اړتيا نه شته، له سره پاتي شوې اوبه کافي دي. (ترمذي، مشکوة)

۸) بیا دي راسته پښه له بجلکو سره دري ځله ومينځي او بيا دي چپه پښه ومينځي، د چپ لاس په کمچه ګوته دي د پښو ګوتې خلال کړي، د راسته پښې له راسته کمچې څخه دي شروع کړي او د چپې پښې پر کمچۍ ګوته دي پای ته ورسوي (همدا د اوداسه سنت طريقه ده.) (بهشتي زيور)

**د اوداسه مسایل :-**

۱) د اوداسه اندامونه باید ښه و مینځل شي.

۲) اودس باید پر له پسې وي یعني د یوه اندام تر مینځلو وروسته دي د دویم اندام په مینځلو کې ځنډ او تاخیر نه وي.

۳) په ترتیب سره د اوداسه کول سنت دي، د اوداسه په منځ کې دي دا دعا ووايي: اللهم اغفر لی ذنبی و واسع لی في داری و وبارک لی في رزقي.

کله چي اودس وکړي نو دا دعا دي ووايي: اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله. (مسلم)

بیا دي دا دعا ووايي: اللهم اجعلنی من التوابین و اجعلنی من المتطهرین، سبحانک اللهم و بحمدک، اشهد ان لا اله الا انت استغفرک و اتوب الیک. (ترمذي، بهشتي زیور)

**تیمم :-**

له جابر ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: تیمم پر پاکه ځمکه دوه ځله لاس وهل دي، یو ځل د مخ لپاره او بل ځل تر څنګلو د دواړو لاسونو لپاره. (مستدرک)

رسول الله ﷺ د هر لمانځه لپاره نه بېل تیمم واهه او نه یې هیڅکله د دې امر کړی دی، بلکي تیمم یې عین د اوداسه ځای ناستی بللی دی.

(زاد المعاد)

د امام ابو حنیفه، امام مالک او امام شافعي په نزد د تیمم طریقه داده چي دوه ځله پر ځمکه لاس ووهل شي. یو ځل د مخ او بل ځل تر څنګلو د لاسونو لپاره. (مدارج النبوة)

مسئله:-

د کوم عذر له مخې چي د اوداسه لپاره اودس روا دی، هماغه ډول د غسل لپاره تیمم روا دی او د غسل تیمم هم هغه ډول دی. (بهشتي زیور)

مسئله:- پر پاکه خاوره، ریګ، ډبره، چونه، د خاورو پر پخو او کچه لوښو چي غوړ ونه لري، د خاورو پر پخو او خامو خښتو، د ډبرو، خښتو او چونې پر دېوالونو تیمم روا دی.

## د تیمم فرضونه:-

۱) نیت کول.

۲) پر خاوره تر لاس وهلو وروسته یې پر مخ تېرول.

۳) دویم ځل یې پر خاوره تر وهلو وروسته له څنګلو سره پر لاسونو تېرول. (بهشتي زیور)

## د تیمم سنت طریقه:-

د تیمم طریقه داده چي اول دي د ناپاکۍ لرې کولو نیت وکړي، بیا دي بسم الله وو وایي، وروسته دي دواړه لاسونه د خاورو پر لویه لوټه ووهي او ودي څنډي، که خاورې ډېري پر مښتې وي نو پو دي کړي، دواړه لاسونه دي پر مخ داسي را تېر کړي چي هیڅ ځای پاتي نه شي، که د یوه وېښته په اندازه ځای هم پاتي شي نو تیمم نه صحیح کېږي، بیا دي دویم ځل دواړه لاسونه په

خاورو ووهي او ودي څنډي. لومړی دي د چپه لاس څلور ګوتې د راسته لاس د ګوتو تر سرونو لاندي کښېږدي، کش دي کړي تر څنګلې دي ورسوي، په همدا ډول ورلو کي دي راسته لاس کښته خوا ته وګرزوي، بیا دي د چپه لاس ورغوی پر راسته لاس سربېره د څنګلو له خوا تر ګوتو کش کړي او د راسته لاس پر بته ګوته سربېره دي تېر کړي، راسته لاس دي پر چپه لاس همداسي وګرزوي، بیا دي ګوتې خلال کړي، که یې ګوتمی په ګوته وي نو د هغې لرې کول یا ښورول ضروري دي، د ګوتو خلال هم سنت دی. د اوداسه او غسل دواړو د تیمم همدا طریقه ده. (بهشتي زیور)

## د لمانځه را ګرزول ضروري نه دي:-

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي دوه صحابه کرام په سفر ولاړل، په داسي ځای کيٍ د لمانځه وخت پرې را ورسېد چي اوبه ورسره نه وي ځکه نو دواړو په تیمم لمونځ وکړ. وروسته یې د لمانځه تر وخت ختمېدو وړاندي اوبه وموندلې نو یوه د اوداسه په کولو دویم ځل لمونځ وکړ او هغه بل را ونه ګرزاوه. کله چي دواړه رسول الله ﷺ ته راغلل نو یا دونه یې وکړه. چا چي لمونځ نه وو را ګرزولی رسول الله ﷺ ورته وویل چي تا سمه لار غوره کړې ده او د تیمم په وهلو چي دي کوم لمونځ کړی دی هغه درته بس دی (شرعي مسئله داده چي په داسي ځای کي د تیمم په وهلو لمونځ کول کفایت کوي) وروسته په وخت کي د ننه د اوبو په موندلو هم د هغه را ګرزول ضروري نه دي، له همدې کبله چي دي څه کړي صحیح دي او کوم چا چي د اوداسه په کولو دویم لمونځ کړی وو هغه ته یې وویل: تا ته به دوه چنده

ثواب درکړل شي ځکه ستا دويم لمونځ نفل شو او الله نېکي نه ضايع کوي.
(سنن ابی داود)

## لمونځ:-

له عبدالله بن قرط ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: له بنده څخه به تر ټولو لومړی د لمانځه پوښتنه کېږي که هغه صحيح وو نو ټول اعمال به ې صحيح وي او که ناسم وو نو ټول اعمال به يې ناسم وي.
(طبراني في الاوسط، حيات المسلمين)

له عباده بن صامت ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: الله پنځه وخته لمونځ فرض کړی دی، چا چي د هغه لپاره ښه اودس وکړ، پر ښه وخت يې ادا کړ، رکوع او سجده يې هم په سم ډول وکړل او د خشوع له صفت سره يې ترسره کړنو له داسي سړي سره د الله پخه وعده ده چي هغه به بخښي او چا چي داسي ونه کړل له هغه سره د الله هيڅ وعده نه شته، که يې خوښه وه وبه يې بخښي او که يې خوښه وه سزا به ورکړي. (معارف الحديث، مسند احمد، سنن ابی داود)

## د پنځو فرضو لمنځونو وختونه:-

له بريده ؓ څخه روايت دی چي يو چا له رسول الله ﷺ څخه د لمانځه د وختونو په اړه پوښتنه وکړه نو ده ورته وويل: دا دوې ورځې (نن او سبا) له موږ سره لمونځ وکړه (تر غرمې وروسته) چي کله لمر زوال وکړ ده بلال ته د اذان امر وکړ، اذان وشو بيا يې ورته وويل: نو هغه د ماپښين د لمانځه لپاره اقامت وکړ (د ماپښين لمونځ وشو) بيا (د مازيګر په را رسېدو) رسول

الله ﷺ بلال ته امر وکړ نو هغه (له عادت سره سم لومړی اذان او بیا ) د مازیگر د لمانځه لپاره اقامت وکړ ( او د مازیگر لمونځ وشو) اذان او بیا لمونځ داسې وخت وشول چې لمر ښه لوړ او په بشپړه ډول روښانه وو (په رڼا کې یې هغه تغیر نه وو راغلی چې ماښام پرې راځي ) وروسته یې د لمر له لوېدو سره بلال ته امر وکړ نو هغه له عادت سره سم د ماښام اذان وکړ، بیا یې اقامت ووایه او د ماښام لمونځ وشو، بیا چې کله شفق غایب شو نو رسول الله ﷺ ورته امر وکړ، ده د ماخوستن (له عادت سره سم لومړی اذان وکړ او بیا ) یې اقامت ووایه او (د ماخوستن لمونځ وشو) بیا چې کله د شپې په ختمېدو څرنګه سپیدې وچاودې ده بلال ته امر وکړ او هغه د سهار (له عادت سره سم لومړی اذان وکړ، بیا یې اقامت ووایه او د سهار لمونځ وشو) په دویمه ورځ یې بلال ته په سهرځکي کې د ماپښین د لمانځه قایمولو امر وکړ او ویې ویل: د ماپښین لمونځ دې نن وروسته په سهرځکي کې وشي. د رسول الله ﷺ له امر سره سم هغه د سهرځکي پر مهال هغه د ماپښین اذان او بیا اقامت وکړ او وخت ښه سوړ شو یعني تر پوره ځنډ وروسته په دې ورځ د ماپښین لمونځ په وروستي وخت کې وشو او د مازیګر لمونځ په داسې وخت کې ادا شو چې که څه هم لمر لوړ وو خو دتېري ورځې په پرتله ډېر وروسته ادا شو. ماخوستن یې د شپې د درېیمې برخې تر تېرېدو وروسته وکړ او د سهار لمونځ یې د اسفار پر وخت (د ورځې په روښانه کېدو) بیا یې وویل: هغه سړی چیرې دی چې د لمانځه د وختونو په اړه یې پوښتنه کړې وه. هغه وویل: اې د الله رسوله! زه حاضر یم. ده وویل: ستاسو د لمنځونو مستحب وخت د هغه څه په منځ کې دی چې ودې لیدل. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

**د ماپښين لمونځ :-**

له ابو سعيد خدري ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د گرمۍ په موسم کي د ماپښين لمونځ په سړځگي کي کوئ. (صحيح البخاري)

**د ماخوستن لمونځ :-**

عبدالله بن عمر ؓ وايي چي يو ځل رسول الله ﷺ هغه مهال د ماخوستن لمانځه ته راغی چي د شپې درېيمه برخه تېره وه. ويې ويل: که دا فکر نه وای راسره چي دا وخت به مي پر امت سخت او مشکل شي نو ما به دا لمونځ په همدې وخت کي کولای ځکه د دې لمانځه لپاره تل همدا وخت غوره دی.
(صحيح مسلم، معارف الحديث)

**د سهار لمونځ :-**

رافع بن خديج ؓ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: د سهار لمونځ په اسفار کي کوئ (د رڼا د خپرېدو پر مهال يې ادا کوئ ځکه په دې کي اجر او ثواب زيات دی.) (سنن ابی داود، جامع ترمذي، دارمي، معارف الحديث)

**په لمانځه کي له ځنډ څخه منعه :-**

له علي ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ما ته وويل: ای علي! په درو کارونو کي ځنډ مه کوه.

۱) په لمانځه کي چي وخت يې راشي.

۲) په جنازه کي چي کله تياره شي.

۳) د ميړه نه درلودونکې ښځې په نکاح کي چي مناسبه جوړه يې پيدا شي. (جامع ترمذي، معارف الحديث)

## د ویدېدو او هیرېدو له وجې د لمانځه قضا کېدل:-

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که له چا لمونځ هېر شو او یا ویده وو نو کفاره یې داده چې کله ور یاد شي او یا له خوبه را پاڅي هماغه وخت دې وکړي. (معارف الحدیث، صحیح البخاري و صحیح مسلم)

## په لمانځه کې لټي:-

ابو ذر غفاري ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ را ته وویل: ستا به څه حال او یا څه دریځ وي چې کله پر تاسو د لمانځه مړه کوونکي واکمن مسلط شي او یا به لمنځونه پر سم وخت نه کوي؟. نو ما ورته وویل: ته زما لپاره څه امر کوې؟ یعني په داسې وخت کې باید زه څه وکړم؟. ده وویل: د وخت په راتلو خپل لمونځ وکړه او که له دوی سره پر لمانځه کولو برابر شوې نو ورسره ویې کړه دا به دې نفل شي. (معارف الحدیث، صحیح مسلم)

## د بل لمانځه انتظار:-

یو ځل د ماښام تر لمانځه وروسته ځیني خلک د ماخوستن لمانځه ته په انتظار وو، رسول الله ﷺ په بیړه راغی ساه یې وهله او ویې ویل: اې خلګو! زېری واورئ ستاسو رب د اسمان یوه دروازه پرانیسته، تاسو یې فرشتو ته مخامخ کړاست او د فخر په ډول یې وویل چې وګورئ زما بندګانو یو لمونځ کړی او د بل لمانځه انتظار کوي. (ابن ماجه)

## جمع بین الصلاتین:-

په بخاري او مسلم کې له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چې وایي: ما هیڅکله رسول الله ﷺ نه دی لیدلی چې په بل وخت کې یې کوم

لمونځ کړی وي مګر د ماښام او ماخوستن دوه لمنځونه چي په مزدلفه کي يې سره يو ځای کړل، په احاديثو کي د عرفات پر مهال د ماپښين او مازيګر د لمنځو يو ځای کولو روايات هم شته. دا جمع د حج د مناسکو ادا کولو له وجې وه نه د سفر له وجې او په جامع الاصول کي د ابوداود په حواله له ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي ويې ويل: رسول الله ﷺ هيڅکله په سفر کي له يوه ځل پرته ماښام او ماخوستن يو ځای کړي نه دي.

د جمع بين الصلاتين معنا داده چي اول لمونځ بالکل په وروستي وخت کي ادا شي او دويم لمونځ دومره په بيړه وشي چي ښخي په اول وخت کي يې ادا کړي او ځيني دې ته د صوري جماعت لمونځ ورکوي ځکه ظاهرا خو سره يو ځای شوي او په حقيقت کي يو ځای نه دي او دا هماغه صورت دی چي احناف يې په سفر کي جمع بين الصلاتين بولي. (مدارج النبوة)

په جامع الاصول کي د ابوداود په حواله له نافع او عبدالله بن واقدي څخه روايت دی چي يو ځل په سفر کي موذن عبدالله بن عمر ﷺ ته وويل: الصلاة. ابن عمر ﷺ وويل: درځه، ان تر دې چي د شفقت تر لوېدو وړاندي را کښته شو د ماښام لمونځ يې وکړ، ورپسي منتظر شو، شفق ولوېد بيا يې د ماخوستن لمونځ وکړ.

وروسته يې وويل: رسول الله ﷺ چي به کله په سفر کي تلوار درلود نو همداسي يې کول او همداسي امر يې کاوه لکه ما چي وکړل.

(مدارج النبوة)

**د لمانځه ممنوع وختونه: ـ**

عقبه بن عامر وايي چي رسول الله ﷺ په درو وختونو کي د لمانځه له کولو منعه کړې ده او په دې وخت کي يې د مړي ښخول يعني د جنازې د لمانځه کول هم منع کړي دي:

۱) د لمر ختلو پر مهال.

۲) د زوال پر مهال.

۳) د لمر لوېدو پر مهال.

## د رسول الله ﷺ لمونځ

په احاديثو کي دي چي رسول الله ﷺ به کله لمانځه ته ولاړ شو الله اکبر يې وايه، له تکبير تحريمه سره يې دواړه لاسونه تر غوږو پورته کول او تر دې وروسته يې راسته لاس د چپ لاس پر مړوند نياوه بيا يې دا ثنا ويله: سبحانک اللهم الخ...

تر دې وروسته يې اعوذ بالله من الشيطان الرجيم ويله، بيا يې بسم الله، ورپسې يې الحمد لله او په پای کي يې امين وايه (د امام صاحب په مذهب کي امين ورو ويل کېږي.)

له عمر ﷺ څخه روايت دی چي امام دي په څلورو شيانو کي اخفا کوي يعني ورو دي وايي: اعوذ بالله، بسم الله، آمين او سبحانک اللهم. بيا به رسول الله ﷺ تر فاتحې وروسته سورت وايه، کله چي به له قرأت څخه خلاص شو نو د تکبير په ويلو به رکوع ته تلی (له ټيټېدو سره به يې تکبير وايه) له کوع په سر را پورته کولو به يې سمع الله لمن حمده ويل، په رکوع کي به يې

په دواړو ورغوو ګونډې ټينګې نيولې ګوتې به يې خلاصولې (علماء وايي چي په لمانځه کي د ګوتو درې حالته دي: اول د رکوع په حالت کي بايد خلاصې وي، دويم: د سجدې په حالت کي بايد سره مښتې وي او درېيم: په نورو حالاتو کي بايد ګوتې پر خپل حال پرېښودل شي، د قيام حالت وي او که د تشهد.)

رسول اللهﷺ به په رکوع کي بازوګان له بغلونو لرې ساتل، ملا به يې سيده نيوله، سر به يې نه کښته وو او نه پورته، درې ځله به يې سبحان ربی العظيم ويل (دا يې کمه درجه ده، ځيني وختونه به يې تر دې هم زياتوله او طاق عدد افضل دی) کله چي به يې له رکوع سر را پورته کړ نو تر هغو به سجدې ته نه تلی چي سيده به نه وو درېدلی، کله چي به سجدې ته ولاړ نو تر لاسونو وړاندي يې ګونډې پر ځمکه اېښودلې، بيا يې لاسونه اېښودل، ور پسې به يې لومړی پزه لګوله بيا تندی، په سجده کي به يې بازوګان او نس له ورنونو دومره لرې ساتل چي وری يې تر منځ تېرېدای شوای. په سجده کي به يې سر د دواړو ورغوو تر منځ وو، د پښو د ګوتو مخ به يې قبلې ته وو، په سجده کي يې لږ تر لږه درې ځله سبحان ربی الأعلی ويله او کله چي به له سجدې را پورته شو نو تر هغو دويمې سجدې ته نه تلی چي ارام به نه وو کښېنستلی، کله چي به يې قيام اوږد وو نو رکوع او سجده به يې هم اوږده ول او که به يې قيام لنډ وو نو رکوع او سجده به يې هم لنډ ول. (مدارج النبوة)

رسول اللهﷺ په هرو دوو رکعتونو کي التحيات وايه. (صحيح مسلم)

د وايلؓ په حديث کي دي چي کله به رسول اللهﷺ له سجدې څخه قيام ته ولاړېده نو پر ورنونو او ګونډو په تکيه کولو به درېده، سنت داده چي

دواړه لاس پر ګونډو ونیسي او پر هغو د زور په کولو ولاړ شي. له عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د درېدو پر مهال پر ځمکه له تکیه کولو منعه کړې ده ( مګر د ضرورت، تکلیف، بوډاتوب او کمزورۍ پر مهال پروا نه لري.) (مدارج النبوة)

کله چي به رسول الله ﷺ پر تشهد کښېناست نو چپه پښه یې غوړوله پري کښېناست او ښۍ پښه یې دروله، وروستۍ ناسته یې هم د لومړنۍ په څېر وه، کله چي به یې تشهد وایه نو دواړه لاسونه به یې پر ورنو ایښودل، د راسته لاس ګوتې به یې دننه په ورغوي کي را غونډې کړې، منځنۍ او بټه ګوته به یې حلقه کړه، د شهادت په ګوته به یې اشاره کوله (او کله چي به یې لا اله ویله نو ګوته به یې پورته کړه او پر الا الله به یې کښته کړه.)

(مدارج النبوة)

له عبدالله بن مسعود ﷺ او عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي موږ ته رسول الله ﷺ دا التحیات را وښود:

التحیات لله و الصلوت و الطیبات السلام علیک ایها النبی و رحمة الله و برکاته. السلام علینا و علی عباد الله الصالحین اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده ورسوله. (رواه مسلم، معارف الحدیث)

له عبد الرحمن بن لیلا څخه روایت دی چي زه له کعب بن عجره سره مخ شوم نو ویې ویل: ایا هغه ډالۍ درکړم چي له رسول الله ﷺ مي اورېدلې؟. ما وویل: هو! حتما. ویې ویل: ما رسول الله ﷺ ته وویل: تا خو موږ ته پر ځان د سلام طریقه را وښوده مګر درود څرنګه ووایو؟ نو ده دا الفاظ را وښودل:

اللهم صل على محمد و على آل محمد كما صليت على ابراهيم و على آل ابراهيم انك حميد مجيد. اللهم بارك على محمد و على آل محمد كما باركت على ابراهيم و على آل ابراهيم انك حميد مجيد.

(بخاري و مسلم، معارف الحديث)

له یوه بل صحابي ابو مسعود انصاري رضي الله عنه څخه هم دې مضمون ته ورته حدیث روایت شوی، په هغه کي دي چي کله له رسول الله ﷺ څخه د درود په اړه پوښتنه وشوه او ورته وویل شول چي اې د الله رسوله! موږ په لمانځه کي پر تا څرنګه درود ووایو؟ نو ده پورتني الفاظ وروښودل. (مدارج النبوة)

طبراني، ابن ماجه او دار قطني له سهیل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت کړی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک پر ما درود ونه وایي نو لمونځ یې نه شته. (مدارج النبوة)

## تر درود وروسته او له سلام وړاندي دعا:-

په مستدرک حاکم کي دي چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وویل: لمونځ کوونکی دي تر تشهد وروسته درود ووایي او بیا دي دعا. د صحیح البخاري، صحیح مسلم او نورو په یوه روایت کي له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه د تشهد د حدیث په پای کي د رسول الله ﷺ وینا هم نقل شوې ده یعني لمونځ کوونکی چي کله تشهد ووایي نو کومه دعا چي ورته ښه ښکاري هغه دي غوره کړي او له الله دي وغواړي. (معارف الحديث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: کله چي په تاسو کي څوک د تشهد له ویلو فارغ شي نو په کار ده چي له څلورو شیانو پناه وغواړي. (مسلم)

رسول الله ﷺ تر درود وروسته دا دعا ویله:

اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَالِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْمَأْثَمِ وَالْمَغْرَمِ.

اې الله! زه د قبر له عذابه، د مسیح دجال له فتنې، د مرګ و ژوند له فتنې، ګناه او تاوان څخه ستا پناه غواړم.

عبدالله بن عباس ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ موږ ته دا دعا داسي را ښووله لکه د قرآن یو سورت. (بخاري و مسلم، مدارج النبوة)

رسول الله ﷺ به د لمانځه په پای کي تر تشهد وروسته راسته او چپ لور ته د سلام ګرزولو پر وخت خپلې سترګې خلاصې ساتلې نه بندې.

(صحیح مسلم، مدارج النبوة)

**سجده سهوه:-**

۱) په لمانځه کي چي څو مره شیان واجب دي که له هغو څخه یو او یا ډېر په هېره پاتي شي نو سجده سهوه واجب ده او په کولو يې لمونځ صحیح کېږي او که سجده سهوه ونه کړي نو لمونځ دي بیرته را وګرزوي.

۲) که په هېره د لمانځه کوم فرض پاتي شي نو لمونځ په سجده سهوه نه صحیح کېږي بیا دي له سره وکړي.

۳) د سجده سهوې طريقه داده چې په وروستي رکعت کې دې صرف التحيات ووايي، راسته لور ته دې يو سلام وګرزوي، دوې سجدې دې وکړي، بيرته دې کښېني، التحيات، درود شريف او دعا دې ووايي او دواړو لورو ته په سلام ګرزولو دې لمونځ ختم کړي. (فتاوی هنديه، شرح البدايه)

که يې په هېره د سلام تر ګرزولو وړاندې سجده وکړه نو يې هم لمونځ ادا او صحيح شو. (شرح الهدايه، بهشتي زيور)

**تر لمانځه وروسته اعمال:-**

د رسول الله ﷺ عمل دا وو چې کله به يې سلام وګرزاوه نو درې ځله به يې استغفر الله او بيا به يې اللهم انت السلام و منک السلام تبارکت يا ذالجلال و الاکرام ويل (اې الله! ته سلام يې، سلامتي له تا ده، اې د لويي او عزت څښتنه ته برکتمن يې.) صرف د همدومره ويلو تر مهاله به يې مخ قبلې ته وو او په بيره به يې کله پر راسته او کله پر چپه اړخ مخ مقتديانو ته را ګرزاوه او ابن مسعود ﷺ ويلي چې ما ډېر ځله رسول الله ﷺ پر راسته اړخ په مخ را ګرزولو ليدلی دی. (زاد المعاد)

**تر لمانځه وروسته ځانګړې دعاوې:-**

مغيره بن شعبه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ به تر هر فرض لمانځه وروسته دا دعا ويله: لَاۤ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ. لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. اَللّٰهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ. وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. (بخاري و مسلم، مشکوة)

له الله پرته هیڅ معبود نه شته، تنها دی، هیڅ شریک نه لري، پاچاهي او حمد ده لره دی، دی پر هر څه قدرت لري، اې الله! ته چي څه ورکړې منع کوونکی یې نه شته او ته چي څه بند کړې ورکوونکی یې نه شته او هیڅ شتمن ستا له عذابه د هغه شتمني نه شي ژغورلای.

امام نووي وايي: په لمانځه کي تر سلام وروسته باید تر هر ډول اذکارو روایت شوی استغفار مخته شي خو وروسته دي نوري دعاوې ووايي او بیا دي اللهم انت السلام ولولي. (مدارج النبوة)

رسول اللهﷺ به کله د دعا په پیل او کله د دعا په منځ کي دا الفاظ زیاتول: ربنا اتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة و قنا عذاب النار. اې زموږ ربه! د دنیا او اخرت ښېګڼه راکړه او د اور له عذاب څخه مو وساته.

ثوبانؓ وايي چي رسول اللهﷺ چي به کله سلام وګرزاوه نو درې ځله به یې استغفار وایه او بیا پورتنۍ دعا. (مسلم، معارف الحدیث)

انسؓ وايي چي رسول اللهﷺ به کله له لمانځه خلاص شو نو خپل راسته لاس به یې پر سر تېر کړ او ویل به یې: بسم الله الذی لا اله الا هو الرحمن الرحیم اللهم اذهب عنی الهم و الحزن.

(بزار، طبراني، ابن سني، حصن حصین)

ما د الله په نوم لمونځ ختم کړ چي له ده پرته هیڅ معبوّد نه شته، رحمان او رحیم دی، اې الله! له ما اندېښنه او غم لرې کړه.

له رسول الله ﷺ څخه تر هر لمانځه وروسته د معوذتينو ويل هم نقل شوي دي او دا صحيح حديث دی. تر هر لمانځه وروسته د لس ځله قل هو الله ويلو روايت هم شته او دا ډېر لوی فضيلت لري. (مدارج النبوة)

له ابو بكر صديق ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ تر هر لمانځه وروسته دا دعا ويله: اللهم انی اعوذبک من الكفر و الفقر و عذاب القبر. اې الله! زه په تا له کفر، فقر او د قبر له عذابه پناه غواړم. (جامع ترمذي)

له عبد الله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به سهار او ماښام حتما دا دعا ويله: اللهم انی اسئلک العفو و العافية في الدنيا و الاخرة و فی اهلي و مالي. اې الله! زه په دين و دنيا او کور و مال کې ستا د بخښنې او معافيت غوښتونکی يم. (معارف الحديث)

## د نبوي لمانځه کيفيت

ابو هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ به دومره نفل کول چې پښې به يې وپړسېدې، يو چا ورته وويل: تا ته خو د مخکينيو او وروستنيو ګناهونو د بخښنې زېری درکړل شوی دی نو بيا ولې دومره تکليف کوې؟. رسول الله ﷺ وويل: افلا اکون عبدا شکورا؟. يعني کله چې الله دومره فضل را باندې کړی نو شکر کښونکی بنده نه شم؟. (شمايل ترمذي)

رسول الله ﷺ ويلي: زما د سترګو سړوالی په لمانځه کې دی.
(خصايل نبوي)

عوف بن مالک ﷺ وايي چې يوه شپه زه له رسول الله ﷺ سره وم دی له خوبه را پا څېد، مسواک يې وواهه، اودس يې وکړ او پر لمانځه ودرېد، نو

زه هم ورسره ملګری شوم، ده د سورت البقرې تلاوت شروع کړ نو د رحمت پر هیڅ ایت داسي نه تېرېده چي هلته په درېدو یې له الله څخه د رحمت غوښتنه نه کوله او د عذاب پر هیڅ ایت داسي نه تېرېده چي په درېدو یې له الله څخه د عذاب پناه نه غوښته (په نفلي لمنځو کي دا ډول کړنه روا ده مګر په دې شرط چي په عربي وي، په فرض لمانځه کي جواز نه لري) بیا یې د قیام په اندازه اوږده رکوع وکړه او ویې ویل: سبحان ذی الجبروت و الملکوت والعظمة و الکبریاء. وروسته یې له رکوع سر پورته کړ، همدومره ودرېد او همدا کلمات یې ویل، بیا یې سجده وکړه هماغه کلمات یې ویل، بیا د دوو سجدو تر منځ کښېناست او هغه کلمات یې ویل، تر دې وروسته یې په پاتي رکعتونو کي آل عمران، مائده او النساء تلاوت کړل. (شمایل ترمذي)

عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ یوه شپه په تهجد کي دا ایت تکراراوه:

إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ

(المائدة: ۱۱۸)

که عذاب ورکوې نو بې شکه ستا بندګان دي او که یې بخښې نو ته غالب د حکمت څښتن یې. (خصایل نبوي)

## د رسول الله ﷺ ځانګړي لمنځونه

عطاء وایي چي یو ځل مي عائشې ﷺ ته وویل چي د رسول الله ﷺ تر ټولو عجیبه خبره راته بیان کړه. دې وویل: د رسول الله ﷺ کومه خبره عجیبه نه وه؟، بیا یې وویل: یوه شپه د ویدېدو لپاره زما کور ته راغی او په شړي

کي پټ شو، تر پرېوتلو لږ څنډه وروسته يې وويل: پرېږده چي لږ د خپل رب عبادت وکړم، په همدې سره ولاړ شو اودس يې تازه کړ، د لمانځه نيت يې وتاړه او ژړا يې پيل کړه ان پر سينه يې اوښکې وبهېدې، بيا يې رکوع وکړه، په هغې کي يې هم ژړل، بيا يې سر له سجدې پورته کړ او ژړل يې لنډه دا چي تر سهاره يې همدا حالت وو ان تر دې چي سهار بلال د لمانځه د بلنې لپاره راغی. ما وويل: اې د الله رسوله! ته ولې دومره ژاړې الله خو ستا مخکيني او وروستني ټول ګناهونه در بخښلي دي؟. نو ده وويل چي ايا د الله شکر ايستونکی بنده نه شم؟. بيا يې وويل: زه به ولې داسي نه کوم حال دا چي نن دا ايت را باندي نازل شو، تر دې وروسته يې له ان فی خلق السماوات څخه تر لا تخلف الميعاد پوري د سورت آل عمران د وروستۍ رکوع اياتونه تلاوت کړل. (خصايل نبوي، مدارج النبوة)

## د تهجد او وتر لمونځ:-

اسود وايي: ما له عائشې ﷺ څخه په شپه کي د رسول الله ﷺ د لمانځه يعني تهجد او وتر په اړه پوښتنه وکړه چي د رسول الله ﷺ عمل څه ډول وو؟. دې وويل: رسول الله ﷺ د ماخوستن تر لمانځه وروسته د شپې په لومړنۍ برخه کي خوب کاوه او بيا تهجد، کله چي به د شپې وروستۍ برخه شوه بيا به يې وتر کول او پر خپله بستره به پرېووت، که به يې خوښه وه نو له خپلې مېرمنې سره به يې جماع کوله، بيا به د سهار تر اذان سمدستي وروسته پورته شو، غسل ته د اړتيا پر وخت به يې غسل کاوه که نه د اوداسه تر کولو وروسته به مسجد ته تلی. (شمايل ترمذي)

## د شعبان پنځلسمه شپه:-

له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: ما ته همدا اوس جبریل راغی او ویې ویل: نن شپه د شعبان پنځلسمه ده، په دې شپه به الله تعالی د بنو کلب د پسونو د وړیو په اندازه مخلوقات له جهنم څخه ازاد کړي خو الله به مشرک، کینه ساتونکي، د خپلوي غوڅوونکي، تر بجلکو د لنګ ټیټوونکي، د مور و پلار نافرماني کوونکي او تل شراب څښونکي ته به د کرم په نظر و نه ګوري.

تر دې وروسته رسول الله ﷺ جامه ورپورته کړه ویې ویل: اې عائشې! ایا نن شپه د عبادت اجازه راکوې؟ (د اجازې اخیستل یې د دې لپاره ضروري وبلل چې څو له شپه یې د عبادت هدف نه درلود بلکې یو څه برخه یې له مېرمنو سره د وخت تېرولو لپاره هم ځانګړې کړې وه چې په دې شپه یې نه شوای تر لاسه کولای) ما وویل: هو! زما مور او پلار دې تر تا قربان وي، نو دی ولاړ شو او لمونځ یې پیل کړ بیا یې یوه اوږده سجده وکړه ان ما فکر وکړ چې الله دې نه کړي وفات شوی نه وي، زه ور ولاړه شوم ومې ښوراوه او خپل لاس مې د هغه پر تلو کېښود، ده حرکت وکړ او زه خوشاله او مطمینه شوم. ما واورېدل په سجده کې یې ویل: اللهم انی اعوذبک بعفوک من عقابک و اعوذ برضاک من سخطک و اعوذبک منک جل وجهک لا احصی ثناء علیک انت کما اثنیت علی نفسک. اې الله! زه ستا د عفوې او بخښنې په وسیله ستا له عذاب څخه پناه غواړم، ستا د رضا په وسیله ستا له نا رضایته پناه غواړم،

په تا له تا پناه غواړم، ته د عظمت څښتن يې او زه ستا مناسب حمد نه شم بيانولای، ته هغسي يې لکه څرنګه چي دي د خپل ځان ثنا بيان کړې.

عائشه رضي الله عنها وايي چي سهار مي کله د دعا دا کلمې ذکر کړې نو رسول الله ﷺ وويل: اې عايشې! دا زده کړه او نورو ته يې هم وروښيه، دا ماته جبريل را ښودلې دي او ويلي يې دي چي بايد په سجده کي يې بيا – بيا ووايم. (بيهقي، مشکوة، الترغيب والترهيب)

## د سهار او ماښام مسنون اذکار

له مسلم بن الحارث رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ده ته په ځانګړې ډول وويل: کله چي د ماښام لمونځ وکړې نو له يو چا سره تر خبرو وړاندي اووه ځله دا دعا وايه: اللهم اجرني من النار. اې الله! ما له دوزخه وساته. که دې تر ماښام وروسته دا دعا وکړه او په همدې شپه مړ شوې نو له دوزخ څخه به ستا د ژغورنې پرېکړه وشي او همدارنګه کله چي د سهار لمونځ وکړې نو له يو چا سره تر خبرو وړاندي يې اووه ځله د الله حضور ته وړاندي کوه، که په هغه ورځ مرګ درباندي راغی نو د الله له خوا به له دوزخ څخه ستا د ساتنې پرېکړه وشي. (سنن ابن ماجه، زاد المعاد)

عثمان رضي الله عنه وايي چي له رسول الله ﷺ څخه مي واورېدل ويل يې: هر څوک چي سهار او ماښام درې ځله دا دعا ووايي: بسم الله الذی لا يضر مع اسمه شیء فی الارض ولا في السماء وهو السميع العليم. د الله په نوم چي له نامه سره يې په ځمکه او اسمان کي هيڅ شی زيان نه شي رسولای او دی اورېدونکی ډېر پوه دی.

په هغه شپه او ورځ به له هر ډول بلا خوندي وي او درې ځله دي دا دعا وايي: اعوذ بكلمات الله التامات كلها من شر ما خلق. زه د الله په ټولو پوره کلمو د ده د هر مخلوق له شر څخه پناه غواړم.

(ادب المفرد، ابن حبان، حاکم)

## د سهار تر لمانځه وروسته او په شپه کي:-

۱) یو ځل الحمد لله او ایت الکرسي. له شهد الله انه لا اله الا هو و الملائکة و اولوا العلم قائما بالقسط د ایت تر اخیر فان الله سریع الحساب پوري یو ځل.

۲) که فاتحه، ایت الکرسي او له هغې سره متصل پنځه ایاتونه تر پنځو لمنځو وروسته ووايي نو ځای به يې په جنت کي وي، هره ورځ به الله او یا ځله د رحمت په نظر ورته ګوري او اویا حاجتونه به يې پوره کړي یعني بخښي يې. (ابن السني)

۳) درې ځله دي رضيت بالله ربا و بالاسلام دينا و بمحمد نبيا و رسولا وايي. يعني زه د الله په ربوبيت، د اسلام په دين او محمد ﷺ په نبوت او رسالت راضي يم.

فضیلت:-

د دې دعا په درې ځله ويلو به الله د قیامت په ورځ دومره نعمت ورکړي چي لوستونکی پرې راضي شي. (حصن حصین)

۴) له عبد الله بن خبيب رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: تاسو سهار او ماښام قل هو الله احد، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب

الناس درې څله وایاست او داپه هر څه کي درته کافي دی. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

فسبحان الله حین تمسون و حین تصبحون و له الحمد فی السموت و الارض و عشیا و حین تظهرون یخرج الحی من المیت و یخرج المیت من الحی و یحیی الارض بعد موتها و کذالک تخرجون. (صحاح سته)

نو تاسو سهار او ماښام د الله پاکي بیانوئ، په ټولو اسمانو او ځمکه کي ده لره حمد دی، تر زوال وروسته او د مازیګر پر وخت هم، دی ژوندی له مړي او مړی له ژوندي را باسي، ځمکه تر مرګ وروسته ژوندۍ کوي او همداسي به تاسو را پاڅوي.

فضیلت:-

که یې دشپې ووایي نو د ورځې د ټولو اذکارو کمبوت پوره کوي او که یې سهار ووایي نو دشپې د اذکارو او اورادو کمبوت پوره کوي، له عبدالله بن غنام بیاضي ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: که څوک سهار دا دعا ووایي:

اللهم ما اصبح بی من نعمة او باحد من خلقک فمنک وحدک لا شریک لک الحمد و لک الشکر. (معارف الحدیث)

اې الله! په دې سهار کي چي ما او یا بل مخلوق ته کوم نعمت ورکول شوی هغه صرف ستا له خوا دی، ته یو یې هیڅ شریک نه لرې تا لره حمد او شکر دی.

نو ده د هغې ورځې د ټولو نعمتونو شکر ادا کړ او څوک چې يې ماښام ووايي نو د شپې د ټولو نعمتونو شکر يې ادا کړ.

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چې ابو بکر صديق ﷛ رسول الله ﷺ ته وويل: ما ته د ذکر او دعا هغه کلمې را وښيه چې زه يې سهار او ماښام وايم. نو رسول الله ﷺ وويل: دا دعا وايه:

اللهم فاطر السماوات و الارض عالم الغيب و الشهادة رب کل شیء وملیکه اشهد ان لا اله الا انت اعوذبک من شر نفسی و شر الشيطان و شر که.

اې د اسمانو او ځمکې پيدا کوونکې! په پټو او ښکاره پوهېدونکې ته د هر څه رب او مالک يې، زه شاهدي ورکوم چې له تا پرته هيڅ معبود نه شته، زه له تا د خپل نفس او شيطان له شره او د هغه له شرک څخه پناه غواړم.

رسول الله ﷺ وويل: اې ابوبکره! ته سهار او ماښام او پر بستر د ويدېدلو پر وخت الله ته دا دعا کوه.

(سنن ابی داود، جامع ترمذي، معارف الحديث)

له معاذ بن جبل ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ زما لاس ونيو او ويې ويل: زه له تا سره مينه کوم. ما وويل: اې د الله رسوله! زما هم له تا سره مينه ده. ده وويل: تر هر لمانځه وروسته حتما له الله دا دعا غواړه او هيڅکله يې مه پرېږده.

اللهم اعنی علی ذکرک و شکرک و حسن عبادتک.

اې زما ربه! له ما سره مرسته وکړه، ما ته د خپل ذکر، شکر او ښه عبادت توفيق راکړه. (مسند احمد، سنن ابی داود، سنن نسايي، زاد المعاد، معارف الحديث)

له ابو بکر صديق ؓ څخه روايت دی چي ما وويل: اې د الله رسوله يوه داسي دعا را وښيه چي زه يې په خپل لمانځه کي وغواړم نو ده دا دعا را وښوده:

اللهم انی ظلمت نفسی ظلما کثيرا و لا يغفر الذنوب الا انت فاغفر لی مغفرة من عندک و ارحمنی انک انت الغفور الرحيم.

اې الله! ما پر خپل ځان ډېر ظلم کړی او په دې کي شک نه شته چي له تا پرته بل د ګناهونو هيڅ بخښونکی نه شته نو ته مي له خپلې خوا په خاص مغفرت وبخښه، پر ما رحم وکړه بې شکه ته بخښونکی ډېر مهربان يې.

## د ماښام او سهار تسبيحات

### فاطمي تسبيحات:-

په مسند احمد کي له ام سلمې ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دا کلمې خپلې لور فاطمې ته هغه وخت ور وښودې چي د يوه غلام غوښتلو لپاره راغله. ده ورته وويل چي د ويدېدو پر مهال دري ډېرش ځله سبحان الله، دري ډېرش ځله الحمد لله او څلور ډېرش ځله الله اکبر وايه، بيا يو ځل لا اله الا الله وحده لا شريک له. له الملک و له الحمد وهو علی کل شیء قدير وايه يعني له الله پرته هيڅ معبود نه شته دی يو دی، هيڅ شريک نه لري، پاچاهي او ستاينه ده لره ده او دی پر هر څه قادر دی. د امت د افرادو لپاره مستحبه ده

چي دا تر هر لمانځه وروسته ووايي او د سل شميرې پوره کولو لپاره يو ځل پورتنۍ دعا هم ولولي. (زاد المعاد)

ځوک چي د سهار او ماښام تر لمانځه وروسته په خپل ځای په ناسته له چا سره تر خبرو وړاندي دا دعا ووايي:

لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک و له الحمد وهو علی کل شیء قدير.

له الله پرته هيڅ معبود نه شته، دی يو دی، هيڅ شريک نه لري: پاچاهي او ستاينه ده لره ده او دی پر هر څه قادر دی.

نو د هغه لپاره د ښېګيو د پيدا کولو، بديود له منځه وړلو او درجې د لوړولو لوی تاثير لري. (مدارج النبوة، زاد المعاد)

**نور تسبيحات:-**

۱) سهار او ماښام دي سل ځله دا تسبيحات وايي:
سبحان الله و بحمده سبحان الله العظيم.

۲) دا دي هم سهار او ماښام سل ځله وايي:
سبحان الله، الحمد لله، لا الا الا الله الله اکبر.

۳) هره ورځ دي سل ځله وايي: سبحان الله وبحمده.

۴) کله چي د ويدېدو اراده وکړي نو دري دېرش ځله دي سبحان الله، دري دېرش ځله دي والحمد لله او څلور دېرش ځله الله اکبر وايي.

۵) کله چي تهجد ته ولاړېږي نو لس ځله دي الله اکبر، لس ځله دي الحمد لله او لس ځله دي سبحان الله وايي او بيا دي استغفر الله تعالى ربي من کل ذنب واتوب اليه وايي.

۶) تر هر لمانځه وروسته دي دري دېرش ځله سبحان الله، دري دېرش ځله الحمد لله، څلور دېرش ځله الله اکبر او لس ځله لا اله الا الله وايي.

۷) تر هر لمانځه وروسته دي سل ځله سبحان الله، سل ځله الحمد لله او سل ځله الله اکبر وايي بيا دي يو ځل دا دعا ولولي: لا اله الا الله وحده لا شريک له ولا حول ولا قوة الا بالله، سبحان ربک رب العزة عما يصفون و سلام على المرسلين والحمد لله رب العالمين.

۸) له څه تعين او معلوم شمېر پرته دي سبحان الله وبحمده ډېر وايي. (حصن حصين)

## د تسبيحاتو شمېرل:-

۹) څرنګه چي د تسبيحاتو د ويلو لپاره ځانګړي شمېري هم راغلي دي نو د شمېرېي دوې طريقې دي پر تسپو شمېرل او پر ګوتو چي دواړې طريقې سنت دي. پر ګوتو د شمېر طريقه د رسول الله ﷺ په قولي او فعلي حديث ثابته ده ځکه نو ډېر فضيلت لري. (اوراد رحماني)

## د ګوتو بندونه:-

رسول الله ﷺ ويلي: کلمه طيبه او تسبيحات پر ګوتو شمېرئ، د قيامت په ورځ به د ګوتو حساب هم کېږي ورته وبه وايي چي خپل حساب راکړه،

دوی به د خبرو ځواک تر لاسه کړي او پر رسول الله ﷺ دي زموږ مورو پلار قربان شي چي په هر څه کي د ده نمونه را سره ده. (شرح شمایل نبوي)

په حدیث کي دي چي رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته ویل چي دوی دي د تکبیر (الله اکبر)، تقدیس (سبحان الملک القدوس) او تهلیل (لا اله الا الله) شمېر ته پام کوي او پر ګوتو دي شمېري ځکه د قیامت په ورځ به له ګوتو پوښتنه وشي او هغوی به د تکبیر، تقدیس او تهلیل شمېر بیان کړي.

(حصن حصین، شمایل ترمذي)

عبدالله بن عمر ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ د راسته لاس پر ګوتو تسبیحات ویل. (شمایل ترمذي، حصن حصین)

## تر لمانځه وروسته اذکار:-

باید ووایو چي په احادیثو کي کومې دعاوې او اذکار نقل شوي لکه مخکینی او نوري، تر لمانځه وروسته یې له جلا والي پرته د ویلو سپارښتنه شوې ده. له لمانځه سره د پیوستون مطلب دادی چي د لمانځه او دعاوو تر منځ باید داسي مصروفوونکی شی نه وي چي له الهي یاد سره منافي بلل کېږي او که دومره خاموش پاتي شي چي ډېره نه وي نو پروا نه لري، له همدې کبله له لمانځه تر فراغت وروسته هر څه له یادې طریقې سره ووایي هغه تر لمانځه وروسته بلل کېږي.

پاتي شوه دا خبره چي ایا تر فرضو وروسته د موکدو سنتو کول د فرضو او اذکارو یا د دعاوو تر منځ بېلتون او لرېوالی راولي او که نه دې ته هم پام په کار دی. ښکاره ده چي فصل نه راولي او په کومو احادیثو کي چي ځیني دعاوې او اذکار سمدستي تر لمنځو وروسته ویل شوي له هغه دا نه ښکاري

چي له فرضو سره دي يو ځای شي بلکي مقام يې تر هغو سنتو وروسته بې له څه بوختيا دی چي د فرضو تابع دي او کوم سنت چي د فرضو تابع نه دي هلته يې تر فرضو وروسته سمدستي ويل کافي دي.

په ځينو رواياتو کي دي چي د فرضو او سنتو تر منځ د ځينو دعاوو او اذکارو په وسيله جلاوالی اختياري دی مګر غوره داده چي په يوه وړوکې دعا او ذکر دي سره بيل کړي او کومې دعاوې او اذکار چي اوږده وي تر سنتو وروسته دي وو ايي. له رسول الله ﷺ څخه په داسي دعا او ذکر بېلتون نه دی ثابت چي په مسجد کي يې ويلي وي لکه ايت الکرسي او تسبيحات (کله-کله يې ويل جلا خبره ده) زموږ بحث پر همېشه ويلو دی.

لنډه دا چي کله امام د ماپښين، ماښام او ماخوستن سلام وګرزوي نو څرنګه چي تر دې فرضو وروسته سنت شته نو په ناسته ځنډ کول مکروه دي، هغه ته په کار ده چي تر لنډې دعا وروسته سنتو ته ولاړ شي او تر کومو لمنځو وروسته چي سنت نه وي هلته تر ډېره مخامخ قبلې ته مخ کول پروا نه لري. (مدارج النبوة)

## د قرأت طريقه

رسول الله ﷺ په تلاوت کي د ترتيل عادت درلود، په بيړه او چټک تلاوت يې نه کاوه بلکي هر حرف يې واضح وايه، د يوه - يوه ايت پر تلاوت يې وقفه کوله، د مد حروف يې کشول مثلا رحمان او رحيم يې په مد ويل او د تلاوت په پيل کي يې له شيطان رجيم څخه پناه غوښته او ويل يې: اعوذ بالله

من الشيطان الرجيم او ځيني وختونه به يې ويل چي: اللهم اني اعوذبک من الشيطان الرجيم من همزه ونفخه و نفثه.

ام سلمه ﷺ وايي: رسول اللهﷺ په تلاوت کي هر حرف جلا - جلا داسي وايه چي پر رب العالمين به ودرېد، بيا به يې پر الرحمن الرحيم وقف وکړ او وروسته به پر مالک يوم الدين تم شو. (شمايل ترمذي)

عبدالله بن قيس ﷺ وايي: ما له عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي رسول اللهﷺ ورو قرآن وايه او که په لوړ اواز؟. دې وويل: دواړه ډوله. ما وويل: الحمدلله، د الله شکر او احسان دی چي هر ډول اسانتيا يې راکړې. (شمايل ترمذي)

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي دې ته وويل شول چي ځيني خلک ټول قرآن په يوه شپه کي يو ځل يا دوه ځله وايي. دې وويل: دوی هم لوستی او هم يې نه دی لوستی (يعني الفاظ خو يې تلاوت کړل مګر حق يې نه دی ادا کړی) زه به ټوله شپه له رسول اللهﷺ سره ولاړه وم ده به په لمانځه کي سورت البقرة، آل عمران او نساء ويل: د خوف په هر ايت کي يې الله ته دعا کوله او امن يې غوښت. (مسند امام احمد)

۱) رسول اللهﷺ به ځيني وختونه په لمانځه کي دومره اوږد قرأت وايه چي پښې به يې وپړسېدې او په سينه کي به يې د کټوې په څېر اواز پيدا شو.

۲) د رسول اللهﷺ دايمي عبادت خوښ وو. (بخاري)

۳) د امامت پر مهال به يې داسي لمونځ ورکاوه چي پر مقتديانو به تکليف نه وو.

۴) او یوازې یې ډېر اوږد لمونځ کاوه. (نسایي)

که به په نفلي لمانځه بوخت وو او په همدې وخت کې به یو څوک راغی هلته به کښیناست نو ده به لمونځ را لنډاوه او د هغه د اړتیا تر پوره کولو وروسته به بیرته په لمانځه بوختېده، که څه هم ده ته الله پوره توجو کوله او ډېر ور نژدې وو خو چې لمونځ به یې پیل او اوږد کړ او د ماشوم اوازبه یې واورېد نو له دې وجې به یې را لنډاوه چې مور یې په تکلیف نه شي.
(زاد المعاد)

رسول الله ﷺ په ولاړه، ناسته، اوداسه او پرته له اوداسه هر حالت کې قرآن وایه، د هغه تلاوت یې نه منع کاوه او ده په ډېره ښه طریقه تلاوت کاوه.
(زاد المعاد)

سعد بن هشام له عائشې رضي الله عنها څخه روایت کوي چې دې وویل: په یوه شپه کې مې د رسول الله ﷺ قرآن ویل نه یادېږي او دا مې هم یاد نه دي چې ټوله شپه دې یعني له ماخوستن څخه تر سهاره لمونځ کړی وي او یا دې د رمضان له میاشتې پرته ټوله میاشت روژه نیولې وي. (مسلم، مشکوة)

**پر سپرلۍ نفلي لمونځ:-**

د رسول الله ﷺ طریقه دا وه چې نفل لمنځونه یې پر سپرلۍ هم کول، مخ که به یې هرې خوا ته وو خو سجده به یې په اشاره کوله او سجده به یې تر رکوع لږ ټیټه وه. (زاد المعاد)

**د تلاوت سجده:-**

رسول الله ﷺ چي به د قرآن د تلاوت پر مهال د سجدې پر کوم ځای ورغی (د سجدې ایت به یې تلاوت کړ نو تکبیر به یې وایه او سجده به یې کوله). (زاد المعاد)

**د تلاوت سجده واجب ده:-**

د تلاوت د سجدې طریقه داده چي د الله اکبر په ویلو دي سجده وکړي او د الله اکبر د ویلو پر مهال دي لاس نه پورته کوي، په سجده کي دي لږ تر لږه دري ځله سبحان ربی الاعلی ووايي او بیا دي د الله اکبر په ویلو سر را پورته کړي.

**لارښوونه:-**

د لمانځه لپاره چي کوم څه شرط دي د تلاوت د سجدې لپاره هم شرط دي یعني د اوداسه درلودل، پاک ځای، د بدن او جامو پاکوالی او قبلې ته مخ کول. (بهشتي زیور)

**د شکر سجده:-**

ابو بکر صدیق ؓ وايي چي رسول الله ﷺ ته به چي کله خوشالوونکی خبر او یا د ښې پېښې خبر ورکړل شو نو د الهي شکر ادا کولو لپاره به پر سجده پرېووت. (ابوداود، ترمذي، مشکوة المصابیح، ص: ۱۳۱)

له عبدالرحمن بن عوف ؓ څخه روایت دی چي کله رسول الله ﷺ ته د خپل رب له لوري دا زیری ورکړل شو چي که څوک پر تا درود ووايي زه به

رحم پرې وکړم او که څوک پر تا سلام ووايي نو زه به پرې سلام ووايم نو ده د شکر سجده وکړه. (زاد المعاد)

علامه شامي وايي: که څوک کوم نعمت تر لاسه کړي، يا الله مال او اولاد ورکړي او يا له مصيبت څخه خلاص شي نو مستحبه ده چې الله ته د شکر سجده وکړي، د هغه حمد، تسبيح او تکبير ووايي او بيا هغسې سر را پورته کړي لکه د تلاوت له سجدې چې را پورته کېږي. په دې اړه ګڼ احاديث راغلي او له ابو بکر، عمر او علي ؓ څخه هم د شکر د سجدې کول ثابت دي او د شکر د سجدې سنت مقصود نه دی. (شامي ۱ / ۱۲۵۴)

## په بېلابېلو لمنځونو کې قرأت:-

رسول الله ﷺ به په لمانځه کې تر فاتحې وروسته بل سورت وايه او د سهار په لمانځه کې به يې له شپېتو اياتونو تر سلو اياتونو اوږد قرأت وايه، کله به يې سورت ق تلاوت کاوه او کله روم. ځيني وختونه به يې لنډ قرأت وايه، په سفر کې به يې معوذتين ويل او د جمعې د ورځې د سهارني لمانځه په لومړي رکعت کې به يې الم تنزيل السجدة ويل په دويم کې به يې او هل اتى على الانسان، د جمعې په لمانځه کې به يې کله سورت المنافقون او کله سبح اسم ربک الأعلى يا سورت الغاشي ويل. لنډه دا چې رسول الله ﷺ د وخت حکمت او غوښتنې ته په پام اوږده او لنډ سورتونه ويل چې دا خبره د عمر ؓ په حديث کې هم راغلې ده. پاتې شوه دا خبره چې د سهار او ماپښين په لمنځو کې يې طوال مفصل وايه، د مازيګر او ماخوستن په لمنځو کې اوساط مفصل او د ماښام په لمانځه کې قصار مفصل ويل او د ډېرو فقهاوو عمل هم پرې کړی نو دا په اکثرو اصولو کې د رسول الله ﷺ معمول وو. په دې

اړه ګڼ روایات او اثار راغلي دي، د احنافو په نزد یې له رسول الله ﷺ څخه دوام نه دی ثابت.

د دوی په نزد د یو وخت لپاره سورت معلومول او شیخ ابن همام نقل کړی چې دا کراهیت د لزوم او بل سورت د مکروه بللو په صورت کې دی. د تبرک په نیت د رسول الله ﷺ د قرأت اتباع کراهیت نه لري خو شرط دا دی چې کله - کله بل سورت هم ووایي، څو خلک ګومان ونه کړي چې نور نه دي جایز. (مدارج النبوة)

## د سهار په سنتو کي قرأت:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د سهار د سنتو په دوو رکعتونو کي قل یا ایها الکافرون او قل هو الله احد وویل، په یوه حدیث کي د رسول الله ﷺ دا وینا نقل شوې چي د سهار په سنتو کي د دې دوو سورتونو ویل څومره ښه دي. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

په ځینو احادیثو کي د نورو سورتونو ویل هم ثابت دي.

(خصایل نبوي)

## رسول الله ﷺ د سهار په لمانځه کي:-

۱) ده به سورت ق او داسي نور سورتونه ویل او وروسته به یې لمنځونه کوتاه وو. (مسلم، معارف الحدیث)

۲) کله به یې واللیل اذا عسعس وایه. (مسلم)

۳) کله به یې مومنون وایه. (مسلم)

۴) ځیني وختونه به یې سورت الزلزال وایه. (سنن ابی داود)

۵) له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې د سورت البقرة دا ایت: قولوا امنا بالله او د سورت آل عمران دا ایت: قل یا اهل الکتاب یې هم ویل.
(صحیح مسلم)
(په ځینو احادیثو کې د پورتنیو سورتونو ویل هم نقل شوي دي.) له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د جمعې په ورځ د سهار په لومړي رکعت کې الم تنزیل او په دویم رکعت کې هل اتی علی الانسان ویل.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## ماپښین او مازیګر :-

له جابر بن سمره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د ماپښین په لمانځه کې واللیل اذا یغشی سورت وایه او په یوه روایت کې دي چې سورت سبح اسم ربک الاعلی یې وایه. د سهار په لمانځه کې یې هم همدا ډول سورتونه ویل او د سهار په لمانځه کې به اوږده وو.
(مسلم، معارف الحدیث)

له ابو قتاده ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د ماپښین د لمانځ په لومړنیو دوو رکعتونو کې سورت الفاتحه او وروسته یو بل سورت وایه او په وروستیو دوو رکعتونو کې یې صرف فاتحه ویله او ځیني وختونه به یې زموږ د تعلیم لپاره په سري لمنځو کې هم یو نیم ایت دومره لوړ وایه چې موږ به واورېد. د ده قرأت به په لومړي رکعت کې اوږد او په دویم کې هغومره اوږد نه وو. په مازیګر او سهار کې یې هم همدا تګلاره وه. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

**د ماپښين سنت :-**

علي ﷺ تر ماپښين وړاندي څلور رکعته کول او ويل يې چي رسول الله ﷺ هم دا څلور رکعتونه کول او اوږد قرأت يې پکي وايه.

فايده:-

امام غزالي په احياء العلوم کي ليکلي چي په دې څلورو رکعتونو کي دي هم سورت البقره وايي او يا دي بل اوږد سورت ووايي چي په قرأت کي د رسول الله ﷺ اتباع وشي.

**د ماخوستن لمونځ :-**

براء ﷺ وايي چي ما له رسول الله ﷺ څخه د ماخوستن په لمانځه کي والتين و الزيتون واورېد او تر ده د هيچا ښه ږغ نه دی اورېدلی. رسول الله ﷺ معاذ ﷺ ته وويل چي د ماخوستن په لمانځه کي والشمس، والضحی، والليل او يا سبح اسم ربک الاعلی وايه. (بخاري و مسلم، معارف الحديث)

**د جمعې او اختر په لمنځونو کي قرأت :-**

له نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د جمعې او اختر په لمنځونو کي سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حديث الغاشيه ويل. که به د اختر او جمعې لمنځونه دواړه سره يو ځای شول نو په دواړو لمنځو کي به يې همدا سورتونه ويل. (مسلم)

په بل حديث کي د ق و القرآن المجيد و اقترب الساعة ويل هم نقل شوي دي.

## د سورت معلومول:-

شاه ولي الله په خپل کتاب حجة الله البالغة کي ليکي: رسول اللهﷺ په ځينو لمنځونو کي د ځينو ګټو او مصلحتونو پر بنسټ د خاصو سورتونو ويل خوښ کړي دي خو په قطعي ډول يې نه معلوم کړي او نه يې نورو ته د داسي کولو امر کړی دی، نو که په دې کي څوک د رسول اللهﷺ اتباع کوي او په دې لمنځونو کي ډېر وخت هماغه سورتونه وايي نو ښه کار دی او که څوک دا کار نه کوي نو هم پروا نه لري. (معارف الحديث)

رسول اللهﷺ د جمعې او اختر له لمانځه پرته په نورو لمنځونو کي معلوم سورت نه وايه، په فرضو لمنځونو کي داسي لوی او کوچنی سورت نه شته چي رسول اللهﷺ نه وي ويلی او د نوافلو په يوه رکعت کي يې دوه سورتونه هم ويلي دي خو په فرضو کي يې داسي نه دي کړي. عموما به يې لومړی رکعت تر دويم لوی وو، د قرأت تر ختمولو وروسته يې لږ دمه اخيستله، بيا د تکبير په ويلو رکوع ته تلی. (زاد المعاد)

سليمان بن يسار له ابو هريرهؓ څخه روايت کوي چي هغه د خپل وخت امام ته په اشاره کولو وويل: ما له فلاني امام پرته د هيچا تر شا د رسول اللهﷺ لمانځه ته ورته لمونځ نه دی کړی.

سليمان بن يسار وايي چي ما په هغه پسي لمونځ کړی دی د هغه عادت داوو چي د ماپښين دوه رکعتونه يې اوږده کول او وروستي دوه رکعتونه يې لنډ، د مازيګر لمونځ يې کوتاه کاوه په ماښام کي يې قصار مفصل، په ماخوستن کي يې اوساط مفصل او د سهار په لمانځه کي يې طوال مفصل ويل. (نسايي)

تشریح:-

مفصل د قرآن کریم د اخیري منزل سورتونو ته ویل کېږي یعني له سورت الحجرات څخه د قران کریم تر پایه او بیا دا هم درې برخې لري له سورت الحجرات څخه تر سورت البروج پوري سورتونه طوال مفصل بلل کېږي، له بروج څخه تر سورت لم یکن پوري اوساط مفصل او له لم یکن څخه تر اخیري سورتونو قصار مفصیل بلل کېږي. (معارف الحدیث)

که د لمانځه په لومړي رکعت کي د یوه سورت لږ برخه ووایي، په دویم رکعت کي د یوه سورت منځنۍ یا لومړنۍ برخه ووایي، بیا په دویم رکعت کي د بل سورت منځنۍ یا ابتدایي برخه ووایي او یا وړوکی سورت پوره تلاوت کړي نو له کراهیت پرته صحیح دی. (صغیري)

خو عادت کول یې د فضیلت خلاف دي، غوره داده چي په هر رکعت کي مستقل سورت وویل شي. (بهشتي زیور)

## موکد سنت

له ام المؤمنین ام حبیبې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي په شپه او ورځ کي (پر فرضو سربېره) دوولس رکعته لمونځ وکړي د هغه لپاره به په جنت کي کور تیار شي، څلور تر ماپښین وړاندي، دوه تر ماپښین وروسته، دوه تر ماښام وروسته، دوه تر ماخوستن وروسته او دوه تر سهار وړاندي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث، شمایل ترمذي)

## د سهار سنت:-

له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د سهار دوه رکعته سنت تر دنیا او ما فیها غوره دي. (معارف الحدیث، مسلم)

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که چا د سهار دوه رکعته سنت نه وي کړي نو باید د لمر تر راختلو وروسته یې وکړي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## د ماپښین سنت:-

له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ تر ماپښین وړاندې څلور رکعته کول کله چې به یې ونه کړل نو د ماپښین له لمانځه څخه تر خلاصېدو وروسته یې کول. (جامع ترمذي)

## د ماښام او ماخوستن سنت:-

رسول الله ﷺ تر ماښام او ماخوستن وروسته هیڅکله دوه رکعته سنت نه دي پرېښي چې د ماخوستن له لمانځه څخه په خلاصېدو تر لنډې دعا وروسته سمدستي کېږي.

## وتر (واجب لمونځ):-

له خارجه بن حذافه رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: الله تاسو ته یو بل زاید لمونځ هم درکړی دی او ستاسو لپاره تر سرو اوښانو هم غوره دی چې تاسو یې د دنیا تر ټولو ښه شتمني ګڼئ، دا وتر لمونځ دی الله ستاسو لپاره د ماخوستن تر لمانځه وروسته د سپېدو تر چاودېدو ټاکلی (د دې پراخ وخت په هره برخه کې کېدای شي.)

(جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک دشپې په وروستۍ برخه کي د نه را پورته کېدو وېره لري نو هغه ته په کار ده چي د شپې په پیل یعني ماخوستن سره وتر وکړي او که څوک هیله لري چي د شپې په اخیري برخه کي به تهجد ته را پورته شي نو هغه دي په وروستۍ برخه کي یعني تر تهجد وروسته وکړي ځکه د دې وخت لمانځه ته د رحمت ملایکې راځي او دا ډېر د فضیلت وخت دی. (معارف الحدیث، مسلم)

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک له وترو ویده شي او یا یې له یاده ووزي نو تر ویښېدو او یاد وروسته دي وکړي. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، ابن ماجه، معارف الحدیث)

د رسول الله ﷺ اکثر عمل دا وو چي وتر یې دشپې په اخیره کي تر سپیده چاود وړاندي کول، کله به یې د شپې په پیل یا منځ کي کول او که به تهجد ته را پورته شو بیرته یې نه را ګرزول. په ترمذي کي دي چي (لاوتران فی لیلة) یعني په شپه کي دوه ځله وتر نه شته.

شیخ ابن الهمام د هدایې په شرح کي لیکي چي که چا د شپې په لومړۍ برخه کي وتر وکړل او بیا تهجد ته را پورته شو نو بیرته دي نه را ګرزوي.

(مدارج النبوة)

عائشه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ د شپې په هره برخه کي وتر کړي یعني کله د شپې په پیل، کله په منځ او کله په پای کي او په شپه کي د ده د وترو انتها وروستۍ څلورمه برخه وه. (بخاري، مسلم، مشکوة)

عبدالله بن قيس ﷺ وايي: ما له عائشې ﷺ څخه وپوښتل چې رسول الله ﷺ څو رکعته وتر کول؟. دې وويل: ده څلور او درې رکعته (يعني اووه رکعته)، شپږ او درې رکعته (نهه رکعته)، اته او درې (يوولس رکعته)، لس او درې (ديارلس رکعته) وتر کول او ده هيڅکله تر اووه رکعته او تر ديارلس رکعته زيات وتر نه دي کړي. (ابوداود، مشکوة)

فايده:-

ځيني صحابه کرام د تهجد او وتر دواړو مجموعې ته هم وتر وايي، د عائشې ﷺ طريقه هم دا وه دې په دې حديث کې عبدالله بن قيس ته پر همدې اصولو ځواب ورکړی مطلب يې دادی چې رسول الله ﷺ د وترو تر درې رکعتو وړاندې ځيني وختونه يوازې څلور رکعته تهجد کاوه، کله شپږ رکعته، کله اته رکعته او کله لس رکعته خو تر څلورو رکعتونو د کم او تر لسو رکعتونو د زيات تهجد معمول يې نه وو او د تهجد تر دې رکعتونو وروسته يې درې رکعته وتر کول. (معارف الحديث)

له ابن عباس ﷺ څخه په يوه اوږده روايت کې دي چې ده يوه شپه له رسول الله ﷺ سره لمونځ وکړ، هغه دوه رکعته وکړل، د حديث راوي معن وايي چې ده وويل: رسول الله ﷺ شپږ ځله دوه- دوه رکعته وکړل چې دوولس شول (ملا علي قاري ويلي چې د امام ابو حنيفه په نزد د تهجد دوولس رکعته دي) بيا يې وتر وکړل او پرېووت. د سهار د لمانځه لپاره چې کله بلال بلنې ته راغی نو دوه رکعته لنډ سنت يې وکړل، د سهار د لمانځه لپاره ور ووت. (شمايل ترمذي)

عبد العزیز بن جریج وايي چي ما له عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ په وترو کي کوم سورتونه ويل؟. دې وويل: په اول کي يې سبح اسم ربک الاعلی، په دويم کي قل يا ايها الکافرون او په درېيم کي قل هو الله ويله. ځيني وختونه به يې معوذتين يعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس هم ويل. (جامع ترمذي، سنن ابی داود)

کله چي به يې سلام وګرزاوه نو درې ځله به يې سبحان الملک القدوس ويل، درېيم ځل به يې اواز لوړ او حروف به يې کش کړل. (مدارج النبوة)

د احنافو په نزد د وتر لمانځه په اخيري وروستي رکعت کي تر قرأت وروسته دقنوتو دا دعا ويل کېږي.

**د قنوتو دعا:-**

اللهم انا نستعينک و نستغفرک ونؤمن بک ونتوکل عليک ونثنی عليک الخير و نشکرک و لا نکفرک و نخلع نترک من يفجرک اللهم اياک نعبد و لک نصلی و نسجد و اليک نسعی و نحفد و نرجو رحمتک و نخشی عذابک ان عذابک بالکفار ملحق.

اې الله! زه له تا مرسته او معافي غواړم، پر تا باور لرم، پر تا مي يقين دی، ستا ښه ستاينه کوم، له تا مننه کوم، ناشکري دي نه کوم، هغه څه بېلوم او خوشي کوم يې چي ستا نافرماني کوي اې الله! موږ ستا عبادت کوو، ستا لپاره لمونځ کوو، سجده کوو، ستا لور ته در په منډه يو، در پوري مښلو، ستا د رحمت اميدواريو او له عذابه دي وېرېږو بې شکه ستا عذاب کافرانو ته رسېدونکی دی.

د چا چې دعاء قنوت یاد نه وي دا دعا دې ووایي: ربنا اتنا في الدنيا حسنة و في الاخرة حسنةو قنا عذاب النار او یا دې درې ځله اللهم اغفرلي، یا درې ځله یا ربي ووایي نو لمونځ یې کېږي. (بهشتي زیور)

له حسن بن علي رضی الله عنه څخه روایت دی چې ما ته رسول الله ﷺ څو کلمې راوښودې زه یې د وترو په قنوتو کې وایم:

اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ، فَإِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ، إِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ [وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ]، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ،

اې الله! ما ته د هغو خلکو لار راوښیه چې تا لارورښودلې، د هغو خلکو سلامتي راکړې چې تا سلامتي ورکړې، د هغو خلکو په څېر کار را جوړ کړه چې ته یې کارسازیې، څه چې دې راکړي برکت پکې واچوه او د هغه څه له شره مې وساته چې تا مقدر کړی ځکه فیصله کوونکی ته یې، ستا پر خلاف هیڅوک فیصله نه شي کولای بې شکه ستا دوست خوارېدای نه شي، ته برکتمن یې، اې زموږ ربه لوړ او بالا یې.
(ترمذي، ابوداود، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

په ځینو روایاتو کې تر انه لا يذل من واليت وروسته د ولا يعز من عاديت الفاظ هم راغلي دي، په ځینو روایاتو کې تر تعاليت وروسته د استغفرك و اتوب اليك نقل هم شوی دی او تر دې وروسته د وصلی الله علی النبی زیاتونه هم ده. ځینو علماوو په وترو کې د دعا لپاره همدا الفاظ غوره کړي.

په احنافو کي چي کوم قنوت رواج دي هغه امام ابن ابی شیبه، امام طحاوي او نورو له عمر، عبدالله بن مسعود او نورو څخه روایت کړي. علامه شامي د احنافو له ځینو کبایرو نقل کړی چي که د اللهم انا نستعینک له دعا سره د حسن بن علي قنوت هم وویل شي نو غوره دي.

(معارف الحدیث)

له علي ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د خپلو وترو په اخیر کي دا دعا ویله: اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوْبَتِكَ، وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْكَ، لَا أُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ، أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ اې الله! زه ستا د رضا په وسیله ستا له خپګانه او ستا د عفوې په وسیله ستا له سزا پناه غواړم، له تا په تا پناه غواړم، زه ستا داسي ستاینه نه شم کولای لکه تا چي د خپل ځان ستاینه کړې ده. (سنن ابی داود، جامع ترمذي، نسایي، ابن ماجه)

**تر وترو وروسته نفل:۔**

له ام سلمې ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ تر وترو وروسته دوه رکعته نور هم کول. (جامع ترمذي)

دا روایت له عائشې ؓ او ابو امامه څخه هم نقل شوی دی. (معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ تر وترو وروسته دوه لنډ رکعتونه کول چي اذا زلزلت الارض او قل یا ایها الکافرون سورتونه یې پکي ویل.

(ابن ماجه، مدارج النبوة)

ځیني علماء د همدې احادیثو پر بنسټ تر وترو وروسته دوه رکعته په ناسته غوره ګڼي، په صحیح مسلم کي له عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی

چي ده يو ځل رسول الله ﷺ پر ناسته په لمانځه وليد نو پوښتنه يې وکړه چي ما ته ستا په حواله يو چا ويلي وو چي ته د ولاړې تر لمانځه د ناستې د لمانځه ثواب نيمايي ګڼې؟ او په خپله د ناستې لمونځ کوې؟. ده وويل: هو! مسئله همداسي ده يعني د ناستې لمونځ د ولاړې تر لمانځه نيم ثواب لري مګر زه په دې معامله کي ستاسو په څېر نه يم يعني له ما سره د الله بېله معامله ده، په ناسته هم د پوره لمانځه ثواب راکوي.

ځکه نو اکثر علماء وايي چي اصل او قاعده داده چي په ناسته د لمانځه ثواب د ولاړې په پرتله نيم دی. (معارف الحديث)

## قيام الليل يا تهجد

### فضيلت او اهميت:-

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: زموږ رب د شپې په دريمه برخه کي د دنيا اسمان ته راځي او وايي: څوک دی چي له ما دعا وغواړي او زه يې قبوله کړم؟، څوک دی چي له ما غوښتنه وکړي او زه يې ورکړم؟ او څوک چي له ما مغفرت او بخښنه وغواړي زه يې بخښم. (صحيح البخاري، مسلم، معارف الحديث)

### د تهجد لمونځ:-

له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د شپې د تهجد لمانځه ته به ولاړ شو نو په دوو مختصرو رکعتونو يې پيل کاوه. (مسلم)

له دې څخه د شپې په عبادت کي د ده يو مصروفيت او ادب معلومېږي. (معارف الحديث)

عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ تر ماخوستن وروسته (مراد یې د شپې اخیره ده) یوولس رکعته کول، دا د تهجد او وترو لمونځ وو کله چي به سهار شو نو د سهار د سنتو دوه لنډ رکعتونه به یې وکړل او له دې معلومېږي چي د تهجد رکعتونه اوږده ول، بیا به د لږ ارام لپاره پر خپل راسته اړخ پرېووت تر دې چي کله به موذن اذان کاوه. (معارف الحدیث)

عارب بن حامد وایي چي ما له عائشې ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ د شپې په اول کي د جنابت غسل کاوه او که په اخیر کي؟. دې وویل: ځیني وختونه یې د شپې په اول کي کړی او ځیني یې په اخیر کي. ما وویل: الله اکبر، هغه الله لره حمد چي پراختیا یې را وستلې ده. بیا مي پوښتنه وکړه دا وو ایه چي رسول الله ﷺ د شپې په اول کي وتر کول او که په پای کي؟. دې وویل: کله یې دشپې په اول کي کول او که یې د شپې په اخیر کي؟. ما وویل: الله اکبر، هغه الله لره حمد چي په عمل کي یې پراختیا راوستې ده. بیا مي وویل: رسول الله ﷺ په تهجد کي ورو قرآن وایه او که په لوړ اواز؟. دې وویل: کله به یې په لوړ اواز وایه او کله به یې په ټیټ اواز. ما وویل: الله اکبر، هغه الله لره حمد چي په عمل کي یې پراختیا راوستې ده.

(شمایل ترمذي)

له رسول الله ﷺ څخه د تهجد بېلا بېل رکعتونه نقل شوي دي چي له مختلفو وختونو سره تړاو لري، که به وخت ډېر وو ډېر رکعتونه یې کول که نه کم یې کول. د تهجد په رکعتونو کي داسي خاص شمېر نه شته چي د هغه کمبوت او زیادت روا نه وي، رسول الله ﷺ به ځیني وختونه د وخت له پراختیا سره – سره لږ رکعتونه کول خو قرآن به یې ډېر وایه. (مسایل نبوي)

له عائشې ﷞ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ (د کمزورۍ په زمانه کې) د نوافلو پر مهال په ناسته قرآن وایه او کله چې به رکوع ته د پرش یا څلوېښت ایاتونه پاتې ول نو وبه درېد، تلاوت به یې وکړ، رکوع ته به ولاړ، رکوع یې د ولاړې په حالت کې کوله، بیا به یې سجده وکړه او دویم رکعت یې هم په دې ډول ادا کاوه. (شمایل ترمذي)

په بل حدیث کې دي چې کله به رسول اللهﷺ قرآن په ولاړه وایه نو رکوع او سجده یې هم په ولاړه کول او کله چې به یې قرآن په ناسته وایه نو رکوع او سجده یې هم په ناسته کول. (شمایل)

تحقیق دا دی چې په روژه کې د رسول اللهﷺ تهجد لمونځ د ده له عادت سره سم یوولس رکعته وو (د تراوو لمونځ له دې جلا دی.) (مدارج النبوة)

له عائشې ﷞ څخه په یوه اوږده حدیث کې روایت دی چې کله به له رسول اللهﷺ څخه د خوب، درد او یا ناروغۍ له کبله تهجد قضا شو نو په ورځ کې به یې (د قضا په ډول) دوولس رکعتونه کول. (شمایل ترمذي)

## د څاښت و اشراق لمونځ او نور نوافل

علي ﷛ وايي: کله چې به سهار مهال لمر پر اسمان دومره را پورته شو لکه ما زیګر مهال چې پورته وي په همدې وخت کې به رسول اللهﷺ دوه رکعته د اشراق لمونځ کاوه او کله چې به د مشرق لور ته دومره را لوړ شو لکه د ماپښین پر مهال چې د مغرب پر خوا وي نو په دې وخت کې به یې د څاښت څلور رکعته کول. (شمایل ترمذي)

## اشراق:-

په یوه حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د سهار لمونځ په جماعت وکړي بیا تر لمر راختلو هلته ناست وي، الله یادوي، دوه رکعته د اشراق لمونځ وکړي (بیا له مسجده را ستون شي) نو هغه ته به د یوه حج او عمرې په څېر ثواب ورکړل شي، د پوره حج او پوره عمرې، د پوره حج او پوره عمرې، د پوره حج او پوره عمرې. (حصن حصین)

## د څاښت لمونځ:-

ډېرې علماء وايي چې د څاښت لمونځ مستحب دی باید کله وشي او کله پرېښودل شي، په نوافلو کې د رسول الله ﷺ عادت ډېر وخت همدا سي وو او ډېرو صحابه وو او تابعینو هم پرې عمل کړی دی. ډېر علماء د څاښت د رکعتونو شمېر مختلف بیانوي، لږ تر لږه دوه رکعته او زیات یې اته رکعته دی، له رسول الله ﷺ څخه همدومره نقل شوي دي د دې لمانځه په قرأت کې له مشایخو څخه د سورت الشمس، سورت الضحی، سورت اللیل، سورت الم نشرح نقل شوي او تر لمانځه وروسته سل ځله د دې دعا نقل هم شته:

اللهم اغفرلی وارحمنی وتب علی انک انت التواب الغفور.

(مدارج النبوة)

اې الله! ما وبخښه، پر ما رحم وکړه او زما توبه ومنه بې شکه ته بنه توبه قبلوونکی او بخښونکی یې.

## ترمازیګر وړاندې نفل :-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: پر هغه بنده دې د الله رحمت وي چې ترمازیګر وړاندې څلور رکعته وکړي.
(جامع ترمذي، مسند احمد)

## تر ماښام وروسته د اوابین لمونځ :-

د عمار بن یاسر له زوی محمد بن عمار څخه روایت دی چې ما خپل پلار عمار بن یاسر ولید تر ماښام وروسته یې شپږ رکعته کول او ویل یې: ما خپل حبیب ﷺ ولید چې تر ماښام وروسته یې شپږ رکعته کول او ویل یې: کوم بنده چې تر ماښام وروسته څلور رکعته وکړي نو ګناهونه به یې وبخښل شي که څه هم د سمندر د ځګ په اندازه وي. (معارف الحدیث، معجم طبراني)

## د ماخوستن رکعتونه :-

د ماخوستن پر مهال غوره او مستحب داده چې لومړی څلور رکعته سنت وشي، بیا څلور رکعته فرض او وروسته دوه رکعته سنت موکد، بیا که یې زړه وو دوه رکعته نفل دې هم وکړي په دې سره به د ماخوستن سنت شپږ رکعته شي. (بهشتي زیور)

# د لمانځه په اړه ځیني لارښوونې

۱) له عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د شپې خپل عادت او اذکار پوره نه کړای شي نو باید له سهار وروسته یې تر غرمې په یو وخت کې پوره کړي، دا داسې ده لکه په شپه کې چې یې پوره کړي وي.
(مسلم، شمایل ترمذي)

۲) په لمانځه کي چي تر فاتحې وروسته کوم سورت پیل کړي نو د بسم الله الرحمن الرحیم ویل مستحب دي او که رکوع وکړي نو باید بسم الله ونه وایي. (بهشتي زیور)

۳) له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که امام د فاتحې تر ختم وروسته امین ووایي نو مقتدي دي هم امین ووایي، د چا امین چي د ملایکو له امین سره برابر شي د هغه مخکیني ګناهونه به وبخښل شي. (صحیح البخاري و مسلم، معارف الحدیث)

۴) د سهار په لومړي رکعت کي باید د دویم په پرتله لوی سورت وویل شي، په نورو وختونو کي باید دواړه رکعتونه یو ډول وي، د یوه یا دوو ایاتونو زیات پروا نه لري.

۵) د دعا لپاره دي دواړه لاسونه له سینې سره وغوړول شي.

(بهشتي زیور)

۶) راسته لور ته په سلام ګرزولو کي دي اواز لوړ او چپه لور ته دي نسبتا ټیټ وي. (امام احمد، مدارج النبوة)

۷) د ابو حنیفه په نزد په رکوع او سجده کي اعتدال واجب دی او د دواړو سجدو ترمنځ اعتدال ته هم شاملیږي. (مدارج النبوة)

په لمانځه کي د کتلو ځای:-

۸) په لمانځه کي دي د ولاړې پر مهال د سجدې ځای ته ګوري، د سجدې پر مهال دي پزې ته ګوري او د سلام ګرزولو پر مهال دي اوږو ته ګوري. (بهشتي زیور)

۹) کله چي به رسول الله ﷺ پر لمانځه ولاړ وو نو سر به یې ځوړند وو.
(مسند احمد)

په تشهد کي به یې نظر تر اشارې نه تېرېده (د شهادت ګوتې ته به یې کتل). (زاد المعاد)

۱۰) انس رضی الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ ما ته وویل: اې انسه! خپل نظر په ټول لمانځه (قیام) کي هغه ځای ساته چي سجده کوې. (بیهقي، مشکوة)

۱۱) تر فرض لمانځه وروسته دي سنت د فرضو پر ځای نه کوي بلکي راسته، چپه، مخ او یا شا لور ته دي حرکت وکړي او که کور ته ولاړ شي سنت وکړي نو لا غوره ده. (مدارج النبوة)

## په کور کي د نفلو کول:-

۱۲) عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وایي چي ما له رسول الله ﷺ وپوښتل: ایا په مسجد کي د نفلو کول غوره دي که په کور کي؟. رسول الله ﷺ وویل: ته وینې زما کور مسجد ته څومره لنډ دی چي مسجد ته راتګ هیڅ مشکل نه لري (مګر له دې سره - سره) له فرضو پرته زه په خپل کور کي د مسجد په پرتله لمونځ ډېر خوښوم. (شمایل ترمذي)

۱۳) رسول الله ﷺ ویلي: ځیني لمنځونه په خپل کور کي کوئ او له کورونو هدیره مه جوړوئ. (مشکوة)

## د ښځې لمونځ:-

۱۴) ابن عمر رضی الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ وویل: د ښځې لپاره د سرای په منځ کي تر لمانځه د دالان لمونځ ښه دی او په خلاصه فضا کي تر لمانځه یې

د خونې لمونځ ښه دی. (ابوداود، مشکوة)

۱۵) عمرو بن شعیب له خپل پلار او پلار یې له خپل نیکه څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وویل: خپل ماشومان په اووه کلنۍ کې لمانځه ته وهڅوئ او که یې پر لس کلنۍ ونه کړي نو وهئ یې. (ابوداود، مشکوة)

## د لمانځه مخته تېرېدل:-

۱۶) له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که په تاسو کې څوک په دې وپوهېږي چې د خپل مسلمان ورور مخ ته د لمانځه پر مهال تېرېدل څومره ګناه ده نو سل کاله ولاړه به د لمونځ کوونکي تر مخ تر تېرېدو غوره وبولي. (مشکوة ابن ماجه)

## د نارینه او ښځې د لمانځه توپیر:-

د ښځو د لمانځه طریقه هم د نارینه وو په شان ده یوازې په لاندینیو شیانو کې یې توپیر شته:

۱) د تکبیر تحریمه پر مهال باید نارینه له څادر او یا بل شي څخه لاس را وباسي تر غوږونو یې پورته کړي، خو چې د یخ او نورو له کبله د لاس پټولو ته اړتیا نه وي او ښځې یې باید په هر حالت کې له لوڅولو پرته تر اوږو پورته کړي.

۲) تر تکبیر تحریمه وروسته باید نارینه لاس تر نامه لاندې ونیسي او ښځې پر سینه، همدارنګه باید مېرمنې د راسته لاس ورغوی د چپه لاس د ورغوي پر شا کېښېږدي، نه دې حلقه جوړوي او نه دې د چپه لاس مړوند نیسي.

۳ ) نارینه باید رکوع ته په ښه ډول ټیټ شي چي کوناټي او شا یې برابر وي خو مېرمنې دي دومره نه ټیټېږي بلکي دومره دي ټیټې شي چي لاسونه یې ګونډو ته ورسېږي.

۴ ) نارینه باید په رکوع کي ګوتې ازادې کړي او ګونډې ونیسي، مګر ښځې به ګوتې نه ازادوي بلکي سره مښلوي به یې.

۵ ) نارینه باید د رکوع پر مهال څنګلې له اړخونو لرې وساتي او ښځې پیوستې.

۶ ) نارینه باید په سجده کي نس له ورنونو او بازوګانو له بغلونو جلا کړي او ښځې پیوست.

۷ ) ښځې باید په سجده کي څنګلې له ځمکې لرې کړې او ښځې دي وغوړوي.

۸ ) نارینه باید په سجده کي د دواړو پښو پر ګوتو ودرېږي خو ښځې دي داسي نه کوي.

۹ ) نارینه باید د ناستې په حالت کي پر چپه پښه کښېني او خپله راسته پښه دي د ګوتو پر زور ودروي خو ښځې باید پر کوناټي کښېني او دواړې پښې راسته طرف ته وباسي داسي چي راسته ورون یې پر چپه ورون راشي او راسته لینګی یې پر چپه لینګي وي.

۱۰ ) ښځه هیڅ وخت په لوړ اواز د قرأت اختیار نه لري بلکي تل به په ورو اواز قرأت وایي. (بهشتي زیور)

# صلوة التسبيح او نور لمنځونه

له عبدالله بن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ خپل اکا عباس بن عبد المطلب ته وويل: اې عباسه اې زما اکا! ايا زه تا ته غوره ډالۍ او قيمتي تحفه وړاندي کړم، ايا ځانګړې خبره در وښيم؟، ايا ستا لس کارونه او لس خدمتونه وکړم؟ (يعني تا ته يو داسي عمل در وښيم چي لس لويي ګټې در ورسوي، هغه داسي عمل دی چي که يې وکړې نو الله به ټول ګناهونه در وبخښي.)

۱) مخکيني هم او ۲) وروستني هم. ۳) زاړه هم او ۴) نوي هم. ۵) په هېره ترسره شوي هم او ۶) قصدي هم. ۷) هم صغيره او ۸) هم کبيره. ۹) او پټ و ۱۰) ښکاره (دا عمل صلوة التسبيح دی، طريقه يې داده چي) څلور رکعته لمونځ وکړه په هر رکعت کي الحمد لله او بل سورت ووايه، کله چي په اول رکعت کي له لمانځه خلاص شې نو د قيام په حالت کي پنځلس ځله سبحان الله، و الحمد لله و لا اله الا الله الله اکبر ووايه. تر دې وروسته رکوع ته ولاړ شه، په رکوع کي هم تر تسبيحاتو وروسته لس ځله پورتنۍ کلمې ووايه، بيا له رکوع را پورته شه په ولاړه تر ربنا و لک الحمد وروسته لس ځله هغه کلمې ووايه، بيا سجدې ته ولاړ شه، په سجده کي تر تسبيحاتو وروسته لس ځله هغه کلمې ووايه، بيا له سجدې را پورته شه په ناسته لس ځله هغه کلمې ووايه، په دويمه سجده کي هم لس ځله هغه کلمې ووايه، بيا له سجدې را پورته شه په ناسته تر دوهم وړاندي يې لس ځله ووايه. په لومړي او دويم رکعت کي له تکبير پرته قيام ته ولاړ شه، څلور رکعتونه همداسي وکړه او په

همدې ترتیب په هر رکعت کي هغه کلمې پنځه اویا ځله ووایه. (زما اکا!) که کولای شې نو دا لمونځ هره ورځ وکړه، که یې هره ورځ نه شې کولای نو د جمعې په ورځ یې وکړه، که دا هم نه شې کولای نو په کال کي یې یو ځل وکړه او که دا هم نه شې کولای نو لږ تر لږه یې په ټول ژوند کي یو ځل وکړه. (سنن ابي داود، سنن ابن ماجه، دعوات کبیر للبیهقي، معارف الحدیث)

## د استخارې لمونځ:-

۱) مسئله:- کله چي څوک د کار اراده وکړي نو له الله دي مشوره واخلي همدې ته استخاره وايي په احادیثو کي یې ډېر ترغیب بیان شوی دی. رسول الله ﷺ ویلي: له الله سره مشوره نه کول او د استخارې پرېښودل بد مرغي او کم نصیبي ده، که کوم ځای دوستي و واده کوي، یا یې د سفر اراده وي او یا یوه کار ته نېت لري نو بې استخارې د ي نه کوي ان شاء الله الله به یې هیڅکله له پرېشانۍ سره مخ نه کړي. (رد المحتار ۱ / ۷۱۸)

۲) مسئله:- د استخارې د لمانځه طریقه داده چي لومړی دي دوه رکعته نفل وکړي او بیا دي د زړه په ښه حضور دا دعا ووايي:

اللهم انی استخیرک بعلمک و استقدرک بقدرتک واسئلک من فضلک العظیم فانک تقدر و لا اقدر و تعلم و لا اعلم و انت علام الغیوب اللهم ان کنت تعلم ان (هذا الامر) خیر لی في دیني و معاشی و عاقبة امری فاقدره لی ویسره لی ثم بارک لی فیه و ان کنت تعلم ان (هذا الامر) شر لی في دیني و معاشی و عاقبة امری فاصرفه عنی و اصرفني عنه. واقدر لی الخیر حیث کان ثم ارضني به.

ژباړه: اې الله! زه ستا د علم په وسیله له تا خیر غواړم، ستا د قدرت په وسیله له تا قدرت غواړم او له تا د لوی فضل غوښتنه کوم ځکه ته قدرت لرې زه یې وسه یم، ته پوهېږې زه نه پوهېږم او ته په غیبو ښه خبریې، اې الله! که ستا په علم کي دا کار زما د دنیا او اخرت په ګټه وي نو زما لپاره یې مقدر کړه، بیا پکي برکت واچوه او که ستا په علم کي دا کار زما د دین او اخرت شر وي نو دی له ما او ما له ده لرې کړه، زما لپاره خیر مقدر کړه هر ځای چي وي پرې راضي مي کړه.

کله چي په قوسینو کي نیول شویو د هذا الامر الفاظو ته ورسېږي نو د هغو د لوستلو پر وخت دي هغه کار په ذهن کي ور تېر کړي چي د هغه لپاره استخاره کوي، بیا دي پر پاکه نالي د قبلې لور ته په مخ کولو له اوداسه سره ویده شي. کله چي له خوبه را پاڅي او په زړه کي یې کوم اړخ پیاوړی وي هماغه غوره دی باید ویې کړي. (الدر المختار ۱/ ۷۱۸)

۳) مسئله: - که په یوه ورځ هیڅ پوه نه شو او د زړه شک و تردد یې له منځه نه وو تللی نو دویمه ورځ دي هم استخاره وکړي په دې توګه دي تر اوو ورځو دوام ورکړي نو ان شاء الله حتما به د هغه کار ښه والی او بدي ورته معلومه شي. (الدر المختار ۱/۷۱۸)

۴) مسئله: - که حج ته ځي نو دا استخاره دي نه کوي چي حج ته ولاړ شم که نه؟ بلکي دا استخاره دي وکړي چي په فلانۍ ورځ ولاړ شم او که نه؟. (بخاري، الدر المختار ۱/ ۷۱۸، معارف الحدیث)

## صلوة الحاجات:-

له عبدالله بن اوفی ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک الله او یا انسان ته اړتیا لري (که هغه اړتیا مستقیما له الله سره تعلق ولري او یا له بنده سره تړلي وي) نو هغه ته په کار ده چي ښه اودس وکړي، وروسته دوه رکعته لمونځ ادا کړي، بیا د الله حمد او ثنا ووایي، وروسته پر رسول الله ﷺ درود ووایي او بیا الله ته دا دعا وکړي:

لا اله الا الله الحليم الكريم سبحان الله رب العرش العظيم و الحمد لله رب العالمين اسئلك موجبات رحمتك وعزائم مغفرتك و الغنيمة من كل بر و السلامة من كل اثم لاتدع لى ذنبا الا غفرته، ولا هما الا فرجته، و لا حاجة هى لك رضا الا قضيتها يا ارحم الراحمين.

له الله پرته هیڅ معبود نه شته، حلیم، کریم او پاک الله دی، د عرش څښتن دی او ټولي ستاینې الله لره دي. اې الله! زه له تا څخه ستا د رحمت لازموونکو شیانو او هغه څه غوښتنه کوم چي ستا مغفرت حتمي کړي. په نېکي کي خپله برخه او له ګناه څخه سلامتي غواړم، اې ارحم الراحمینه! زما هیڅ ګناه له بخښنې پرته، هیڅ تکلیف له ختمولو پرته او هیڅ داسي حاجت چي ستا خوښ وي له پوره کولو پرته مه پرېږده. (معارف الحديث، ترمذي، ابن ماجه)

له حذیفه ؓ څخه روایت دی چي د اندېښنې او مهمې پېښې پر مهال دا د رسول الله ﷺ همېشنی عادت وو چي لمونځ به يې کاوه.
(سنن ابی داود، معارف الحديث)

**د کسوف لمونځ:-**

له ابو موسی اشعري ﷺ څخه روایت دی چي یوه ورځ لمر تندر ونیو نو رسول اللهﷺ داسي وېرېدلی راغی لکه د قیامت د راتلو وېره چي یې درلوده، وروسته مسجد ته ولاړ او په دومره اوږده قیامه، رکوع او سجده یې لمونځ وکړ چي هیچا یې دومره اوږد لمونځ نه وو لیدلی. بیا یې وویل: دا د الله د قدرت نښې دي، د چا د مرګ او ژوند له وجې نه راځي بلکي د انسانانو په زړونو کي د وېري را منځ ته کولو لپاره را منځ ته کېږي، کله چي تاسو دا ډول کوم شی وویني نو په وېره او اندېښنه ورته متوجې شئ هغه یاد کړئ او دعا و استغفار وغواړئ. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

**د استسقا لمونځ:-**

له عبدالله بن زید ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ خلګ د استسقا د لمانځه لپاره عیدګاه ته بوتلل، په لوړ قرأت یې دوه رکعته لمونځ وکړ، قبلې ته په مخ اړولو یې د دعا لپاره لاسونه پورته کړل او قبلې ته د مخ کولو پر مهال یې خپل څادر واړاوه. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## تسبیحات

له سمره بن جندب ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: څلور کلمې تر ټولو غوره دي: ۱) سبحان الله ۲) الحمدلله ۳) لا اله الا الله ۴) الله اکبر. (مسلم)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: دوې کلمې پر ژبه سپکې، په تله کي درنې او د الله ډېري خوښې دي: سبحان الله و بحمده سبحان الله العظیم. (بخاري، معارف الحدیث)

له جویریې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه ورځ د سهار د لمانځه تر کولو وروسته له دې ووت، دا د خپل لمانځه پر ځای ناسته وه یو شی یې ویل: رسول الله ﷺ د څاښت پر وخت راغی، دا هماغسي د خپلې وظیفې په ویلو بوخته وه ده ورته وویل: ایا له کومه وخته چي زه تللی یم ته له هماغه وخته دا ډول ذکر کوې؟. دې وویل: هو!. رسول الله ﷺ وویل: ما له تا څخه تر تلو وروسته څلور کلمې درې ځله وویلې که له سهاره ستا له دې ټولي وظیفې سره وتلل شي نو پر درنې به وي هغه کلمې دا دي: ۱) سبحان الله و بحمده عدد خلقه ۲) وزنة عرشه ۳) و رضی نفسه ۴) و مداد کلماته. یعني الله ره د ده د ټولو مخلوقاتو د شمېر په اندازه، د ده د عرش له وزن سره برابر، د ده د پاک ذات له رضا سره سم او د هغه د کلمو له مقدار سره برابر تسبیح او حمد دی. (مسلم، معارف الحدیث)

**غوره ذکر:-**

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: لا اله الا الله تر ټولو غوره ذکر دی. (جامع ترمذي، سنن ابن ماجه)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک سل ځله لا اله الا الله وحده لا شریک له. له الملک و له الحمد وهو علی کل شیء قدیر

يعني له الله پرته هيڅ معبود نه شته، دی يو دی، هيڅ شريک نه لري، پاچاهي د ده ده او حمد ده لره دی، دی پر هر څه قدرت لري.

نو د لسو مرييانو د ازادولو په اندازه ثواب به ورکړل شي، سل نېکۍ به يې وليکل شي، غلط کارونه به يې وبخښل شي، دا عمل به يې په دې ورځ تر ماښامه د شيطان له حملو وساتي او د هيچا عمل به د ده تر دې عمل زيات نه وي خو پرته له هغه چا چي تر دې زيات عمل يې کړی وي.

(بخاري، مسلم، معارف الحديث)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ماته وويل: ايا تا ته هغه کلمې در وښيم چي د عرش له لاندي نازلې شوې او د جنت خزانه ده؟ هغه دادي: لا حول و لا قوة الا بالله. کله چي يې بنده له زړه څخه وايي نو الله وايي چي دې بنده (له خپلې ځان غوښتنې لاس واخيست) زما تابع او امر منونکی شو. (دعوات کبير للبيهقي، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ ويلي چي لا حول ولا قوة الا بالله د نهه نوي ناروغيو دوا ده او د ټيټې درجې ناروغي يې فکر و اندېښنه ده.

(مشکوة د دعوات کبير په حواله)

ابو هريره ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: هر بنده چي تر لمانځه وروسته (۳۳) سبحان الله، (۳۳) ځله الحمد لله، (۳۴) ځله الله اکبر او په پای کي لا اله الا الله وحده لا شريک له، له الملک و له الحمد وهو على کل شيء قدير ووايي نو له ده سره د ستر اجر وعده ده.

د صحيح مسلم په بل روايت کي دي چي کوم څوک دا تسبيحات وايي گناه يې بخښل کېږي که څه هم د سمندر د ځګ په شان وي. (مسلم)

رسول الله ﷺ ویلي چي څوک د شپې په را ویښېدو کي ستونزه لري او د الله په لار کي د مال له لګولو یې طبیعت بخل او تنګي احساسوي، د هغه په لار کي د جهاد توان نه لري نو په کار ده چي سبحان الله وبحمده ډېر ووایي ځکه دا د الله په نزد د ده په لار کي د سرو زرو د غره تر مصرفولو هم ډېر ورته محبوب دی. (الترغیب و الترهیب)

په یوه حدیث کي دي چي رسول الله ﷺ ښځو ته وویل: تاسو پر ځان سبحان الله، سبحان الملک القدوس او لا اله الا الله لازم کړئ هیڅکله یې مه پرېږدئ که نه د الله له رحمته به هېري شئ. (حصن حصین)

**اسم اعظم:-**

له اسماء بنت یزید ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اسم اعظم په دې دوو ایاتونو کي دی:

وَإِلَـهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ لاَّ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ (البقرة: ۱۶۳)

الم * اللّهُ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ* (آل عمران: ۱، ۲)

(جامع ترمذي، ابوداود، ابن ماجه، سنن الدارمي، معارف الحدیث)

په بېلابېلو احادیثو کي د لاندینیو کلمو په اړه ویل شوي چي دا اسم اعظم دی:

۱) یا ذالجلال و الاکرام

۲) یا ارحم الراحمین

۳) لا اله الا الله وحده لا شریک له

۴) له الملک و له الحمد

۵) لا اله الا الله

۶) لا حول و لاقوة الا بالله

له انس ﷺ څخه په روایاتو کې دي چې زه یوه ورځ رسول الله ﷺ ته ورغلم، هلته یوه سړي لمونځ کاوه په خپله دعا کې یې وویل: اې الله! زه له تا څخه د هغو ټولو ستاینو په وسیله خپل حاجات غواړم چې ته یې وړ یې، له تا پرته هیڅ معبود نه شته، ته ډېر مهربان او احسان کوونکی یې، د ځمکې او اسمان پیدا کوونکی یې، زه له تا پناه غواړم، اې ذوالجلال و الاکرام او اې حی و قیومه!. نو رسول الله ﷺ وویل: دې بنده د الله د اسم اعظم په وسیله دعا وکړه، که په دې وسیله له الله دعا وغوښتل شي نو قبلوي یې او که څه ترې وغواړي نو ورکول کېږي. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، سنن النسایي، سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

## د الله ذکر

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: الله وايي چې له بنده سره زما معامله د هغه د باور پر اساس ده، زه هغه مهال ورسره یم چې دی مې یادوي، که مې په زړه کې داسې یاد کړي چې بل څوک نه وي خبر نو زه به یې هم دغسې یاد کړم او که مې د نورو خلکو په مخ کې یاد کړي نو زه به یې تر هغو د ښو بندګانو په ډله کې یاد کړم (یعني د ملایکو په ډله کې د هغوی مخ ته.) (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د الله نبي موسی ﷺ الله ته وویل چې اې زما ربه! ما ته داسې کلمه را وښیه چې په

وسېله یې ستا ذکر وکړم (یا یې ووېل: په وسېله یې تا را وبولم) الله ووېل
چي اې موسی! لا اله الا الله وایه. ده ووېل: اې زما ربه! دا کلمه خو ستا ټول
بندګان وایي، زه داسي کلمه غواړم چي ته یې خاص ما ته را وښیې. الله
ووېل: اې موسی! که اووه اسمانونه له ما پرته، د اسمانو ټول کاینات او
اووه ځمکې په یوه تله کي واچول شي نو لا اله الا الله به ورباندي درنه وي.
(شرح السنة للبغوي، معارف الحدیث)

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه
وشوه: په بندګانو کی څوک افضل او الله ته د قیامت په ورځ نژدې دی؟. ده
ووېل: ډېر ذکر کوونکي نارینه او ښځې.
(حیات المسلمین، ترمذي، ابن ماجه)

له عبدالله بن یسر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته یو چا ووېل:
اې د الله رسوله! د نېکۍ کارونه ډېر دي او ټول نه شم کولای، نو یو داسي
شی را وښیه چي زه یې ټینګ ونیسم او ویې کړم. پر دې سربېره یې دا هم
ووېل چي ته څه را ښیې باید ډېر نه وي څکه وېره ده چي زه یې یاد نه کړای
شم. رسول الله ﷺ ووېل: خپله ژبه دي د الله په ذکر لنده ساته. (جامع ترمذي،
معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ووېل: څوک چي په
مجلس کي کښېني او الله یاد نه کړي دا ناسته به یې ډېره د ارمان او افسوس
وړ وي او همدا دول چي څوک پرېوزي او الله یاد نه کړی نو هغه پروته به د ده
لپاره د ارمان او افسوس سبب وي. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

معاذ بن جبل ﷺ وايي چي زه له رسول اللهﷺ څخه اخير پر دې خبره بېل شوم چي ترې ومي پوښتل: د الله تر ټولو کوم عمل ډېر خوښ دی؟. ده وويل: دا چي د الله د ذکر پر مهال دې مرګ راشي. (حصن حصين)

په يوه بل حديث کي دي چي رسول اللهﷺ وويل: قسم په الله! په نړۍ کي ځيني کسان پر نرمو او نازکو بسترو د ويدېدو پر مهال هم د الله ذکر کوي، همدوی به الله لوړو جنتونو ته داخل کړي (دا فکر مه کوئ چي څو د ښه ژوند وسايل پرې نه ږدئ الهي ذکر ګټه نه لري.)(حصن حصين، ابن)

هر نېک عمل د الله په ذکر کي داخل دی، د تفسير او حديث امام سعيد بن جبير رحمه الله وايي چي د الله ذکر يوازي تسبيحات، تهليل او د ژبې ترياد پوري نه دی محدود بلکي د الله د اطاعت هر عمل الهي ذکر دی، په دې شرط چي د اطاعت نيت يې کړی وي. په دې توګه د دنيا ټول کاروبار ته شمول لري، که شرعي حدودو ته پاملرنه وشي، روا ترسره کړي او له ممنوع څخه ځان وساتي نو دا ټول کارونه چي ظاهرا دنيوي دي هم په الهي ذکر کي شامليږي. (اذکار نووي، ص: ۵)

عائشه صديقه ﷺ وايي چي رسول اللهﷺ به په هر حالت کي د الله ذکر کاوه او ويې ويل: ځيني وختونه به يې پر چارپايي د پروتي پر مهال خپله وظيفه پوره کوله. (کتاب الاذکار للنووي)

ابو هريره ﷺ وايي: په کومو کورونو کي چي د الله ذکر کېږي د اسمان اوسېدونکو ته داسي ځلېدونکي ښکاري لکه د ځمکې اوسېدونکو ته چي ستوري ښکاري.

# د قرآن کريم عظمت او فضيلت

رسول الله ﷺ ووېل: د چا په سينه کي چي هيڅ قرآن نه وي د وېجاړ کور په څېر دی. (ترمذي، دارمي)

فايده:-

په دې کي ټينګار شوی چي بايد د مسلمان زړه له قرآنه خالي نه وي، رسول الله ﷺ ويلي چي څوک د يوه قرآني ايت تلاوت ته غوږ ونيسي نو داسي نېکي ورته ليکل کېږي چي وده کوي (او د دې ودې هيڅ حد يې نه دی بيان کړی.) له الله څخه مو هيله داده چي وده يې هيڅ حد ونه لري، پر له پسې زياته شي او څوک چي يو ايت ولولي هغه به د قيامت لپاره ورته يو نور وي او د نېکي تر ډېرېدو به هم زيات وي. (مسند احمد)

فايده:-

الله اکبر! قرآن څومره ستر شی دی، که د قرآن تلاوت نه شي کولای نو ويونکي ته دي يې غوږ ونيسي، پر دې به هم ثواب ورکړل شي. (حيات المسلمين)

## تلاوت:-

رسول الله ﷺ ويلي چي د قيامت په ورځ به د قرآن ويونکو ته وويل شي: تاسو چي څومره ورو او په خواږه اواز په دنيا کي ښکلی قرآن وايه هماغه ډول قرآن ووايا ست او د هر ايت په بدل کي يوه درجه لوړه کړئ، ستاسو تم ځای ستاسو د تلاوت وروستی ايت دی. (ترمذي)

يعني تر کومه وخته چې يې وا ياست درجې به مو لوړېږي، له عثمان ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: په تاسو کې غوره بنده هغه دی چې يا قرآن زده کړي او يا يې نورو ته وروښيي. (بخاري، معارف الحديث)

له ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: الله وايي چې که څوک زما له ذکر، ما ته له سوال او دعا څخه د قرآن تلاوت بوخت وساتي نو تر هغه څه به زيات ورکړم چې سوال کوونکو او دعا کوونکو ته يې ورکوم. د نورو کلامونو په پرتله د الله کلام داسې عظمت او فضيلت لري لکه د مخلوق په مقابل کې الله. (جامع ترمذي، سنن الدارمي، شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

له عبيده مليکي ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: اې د قرآن خاوندانو! له قرآن څخه نالې او بالښت مه جوړوئ بلکې سهار او ماښام يې تلاوت کوئ لکه څرنګه چې يې حق دی، هغه وغوړوئ په مينه او مزه يې ولولئ، تدبر پکې وکړئ، اميد دی چې نجات به ومومئ، د بېړني بدلې فکر مه کوئ، د الله له خوا يې ستر ثواب او لويه بدله درکول کېدونکې ده.

(شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: چا چې په قرآن کې مهارت موندلی وي له همدې وجې يې حفظ او ناظره په ښه طريقه او بې تکلفه روان وايي هغه به له عزتمنو او فرمانبرداره فرشتو سره وي او کوم بنده چې يې (د ښه او رواني زده کړې نه درلودلو له وجې په زحمت او تکليف) داسې وايي چې پکې بنديږي نو هغه ته به دوه اجره ورکړل شي (يو د تلاوت او بل د زحمت.) (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: چا چي د قرآن یو حرف ولوست یوه نېکي یې ومونده او دا نېکي د الهي فضل د قانون له مخې له لسو نېکیو سره برابره ده (د لا وضاحت لپاره یې وویل چي) زه دا نه وایم چي الم یو حرف دی بلکي الف یو، لام بل او میم بل حرف دی (په دې توګه د الم ویونکی بنده د دېرشو نېکیو ثواب تر لاسه کوي.)

(جامع ترمذي، سنن الدارمي، معارف الحدیث)

## د قرآن ختمولو پر مهال دعا قبلېږي:-

په صحیحو احادیثو کي دي چي د قرآن ختمېدو پر مهال د الله خاص رحمت نازلېږي، د تفسیر امام مجاهد وایي چي د صحابه کرامو عادت دا وو چي د قرآن ختمېدو پر مهال به یې یو ځایي دعا کوله او ویل به یې چي د قرآن د ختم پر مهال د الله خاص رحمت نازلېږي او له حسن ﷺ څخه په صحیح سند نقل شوی چي کله به یې د قرآن تلاوت ختم کړ نو خپله کورنۍ به یې د دعا لپاره راغونډوله. (اذکار نووي، ص: ۴۹)

په یوه حدیث کي رسول الله ﷺ ویلي چي کوم څوک په شپه او ورځ کي شل ایاتونه هم ولولي نو په غافلانو کي به ونه لیکل شي.

(اذکار نووي، ص: ۵۴)

## سورت الفاتحة:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ابی بن کعب ته وویل: ایا غواړې د قران هغه سورت در زده کړم چي د دې درجې هیڅ سورت نه په تورات کي نازل شوی، نه په انجیل، نه په زبور او نه په قرآن کي؟. ابی وویل:

هو! اې د الله رسوله راویې ښیه. ده وویل: په لمانځه کې څرنګه قرأت وایې؟. ابی بن کعب سورت الفاتحه ورته واوروله (چي زه په لمانځه کي دا سورت دا ډول وایم) رسول الله ﷺ وویل: په هغه ذات قسم چي زما ځان یې په قبضه کي دی، په تورات، انجیل، زبور او په خپله په قرآن کي د دې په څېر سورت نه دی نازل شوی، دا هماغه سبع من المثانی و القرآن العظیم دی چي الله ما ته راکړی دی. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

یو ځل جبریل علیه السلام له رسول الله ﷺ سره ناست وو، ناڅاپه یې پورته اواز واورېد سریې پورته کړ ویې ویل: نن ځمکې ته یوه فرشته راغلې چي تر نن ورانديي هیڅکله نه وه را کښته شوې، بیا هغې فرشتې سلام وکړ ویې ویل: اې د الله رسوله! مبارک دي وي واخله تا ته دا دوه نوره درکړل شوي دي یو سورت الفاتحه او دویم د بقرې وروستي ایاتونه، په دوی کي چي هر یو ولولې ثواب به یې درکړل شي. (حصن حصین)

## سورت البقرة او آل عمران:۔

له ابو امامه رضی الله عنه څخه روایت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ویل یې: قرآن لولئ په قیامت به د خپلو لوستونکو شفاعت وکړي په خاصه توګه زهراوین یعني د هغه دوه مهم نوراني سورتونه البقرة او آل عمران تلاوت کوئ، د قیامت په ورځ به یې پر خپلو لوستونکو سیوری کړی وي او داسي به راشي لکه د ورېځي یوه لویه ټوټه او یا سایوان او یا لکه پر لیکه د درېدونکو مرغانو وزرونه، دا دواړه سورتونه به د قیامت په ورځ د خپلو ویونکو دفاع کوي، رسول الله ﷺ وویل: سورت البقرة ولولئ ځکه تر لاسه

کول یې لوی برکت دی، پرېښودل یې ارمان او باطل پال یې طاقت نه لري. (مسلم، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: له خپلو کورونو هدیرې مه جوړوئ (لکه څرنګه چي په هدیرو کي ذکر او تلاوت نه کېږي له همدې وجې یې فضا د ذکر او تلاوت له انوارو او اثارو خالي وي، خپل کورونه داسي مه ګرزوئ بلکي په ذکر او تلاوت یې اباد کړئ) او په کوم کور کي چي سورت البقره ویل کېږي شیطان ورته نه شي را تلای. (معارف الحدیث، جامع ترمذي)

**سورت کهف:-**

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي د جمعې په ورځ سورت الکهف ووایي نو د دوو جمعو تر منځ به ورته نور وي. (دعوات الکبیر للبیهقي، معارف الحدیث)

**سورت یس:-**

له معقل بن یسار ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د الله د رضا لپاره سورت یس ووایي مخکیني ګناهونه به یې وبخښل شي له همدې کبله یې پر مړیو وایاست. (شعب الایمان للبیهقي، معارف الحدیث)

**سورت الواقعة:-**

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک هره شپه سورت الواقعه تلاوت کوي هیڅکله به لوږه وربانديرا نه شي. په روایاتو کي ویل شوي چي عبدالله بن مسعود ﷺ په خپله پرې عمل

کاوه او خپلو اولادونو ته يې سپارښتنه کوله، دوی به هره شپه سورت الواقعه تلاوت کاوه. (شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

**سورت الملک:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د قرآن يوه سورت چې دېرش اياتونه دي د يوه بنده په حق کې الله ته تر هغه وخته سپارښتنه وکړه چې وبخښل شو او دا سورت تبارک الذی بيده الملک دی. (مسند احمد، جامع ترمذي، سنن ابی داود، سنن النسايي، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

**الم تنزيل:-**

له جابر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د الم تنزيل او تبارک الذی بيده الملک له ويلو پرته نه ويدېده (يعني د شپې تر ويدېدو وړاندې يې د دواړو تلاوت عادت وو.) (مسند احمد، جامع ترمذي، سنن الدارمي، معارف الحديث)

**سورت التکاثر:-**

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: ايا په تاسو کې څوک داسې نه شي کولای چې هره ورځ زر اياتونه قرآن ووايي؟. صحابه وو وويل چې څوک دا طاقت لري چې د ورځې زر اياتونه قرآن ووايي؟. رسول الله ﷺ وويل: ايا تاسو دومره نه شئ کولای چې سورت الهکم التکاثر وواياست؟. (شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

## سورت الاخلاص:-

له ابو درداء ﷜ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ایا په تاسو کي څوک د یوې شپې پر مهال د قرآن دریمه نه شي ویلای؟. صحابه کرامو ﷡ وویل چي څوک په یوه شپه کي د قرآن دریمه ویلای شي؟. رسول الله ﷺ وویل: قل هو الله د قرآن له دریمې سره برابره ده (نو چا چي په شپه کي تلاوت کړه ګواکي د قرآن دریمه یې ولوسته.)

(صحیح مسلم، معارف الحدیث)

له انس بن مالک ﷜ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: هر څوک چي پر بستره د ویدېدلو اراده وکړي او تر ویدیدو وړندي سل ځله قل هو الله ووایي نو په قیامت کي به الله ورته ووایي چي اې زما بنده! پر خپل راسته لاس جنت ته ولاړ شه. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## معوذتین:-

له عقبه بن عامر ﷜ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: تاسو پوهېږئ چي نن شپه پر ما کوم ایاتونه نازل شول د هغو مثال نه هیڅکله لیدل شوی او نه اورېدل شوی دی یعني قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

له عائشي ﵂ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به کله دشپې پر خپله بستره پرېووت نو خپل دواړه لاسونه به یې سره یو ځای کړل، بیا به یې قل هو الله، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ویل وروسته به یې پر لاس پو کړل او تر کومه ځایه چي به ممکنه وه دواړه لاسونه به یې پر خپل بدن

تېرول، له سر، مخ او د بدن له ظاهري حصې يې شروع کوله (تردې وروسته چي به د نور بدن تر کومه ځايه ممکنه وه لاسونه يې پرې تېرول) او دا کار يې درې ځله کاوه. (بخاري، معارف الحديث)

## ايت الکرسي:-

له ابی بن کعب ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ده ته وويل: اې ابو منذره! ته پوهېږې چي ستاسو په اند د کتاب الله کوم ايت ډېر عظمت لري؟. ما وويل: الله او رسول يې ښه پوهېږي، ده پر له پسې همدا پوښتنه تکرار کړه. ما وويل: الله لا اله الا هو الحی القيوم نو ده زه پر سينه وټپولم او ويې ويل: اې ابو منذره! علم دي سم دی او مبارک دي شه.

(مسلم، معارف الحديث)

## د سورت البقرې وروستي اياتونه:-

له ايضع بن عبد الکلامي ﷺ څخه روايت دی چي يو چا رسول الله ﷺ ته وويل: اې د الله رسوله! د قران کوم سورت تر ټولو ستر دی؟. ده وويل: قل هو الله. هغه وويل: د قرآن کوم اياتونه تر ټولو ستر دي؟. رسول الله ﷺ وويل: ايت الکرسي يعني الله لا اله الا هو الحی القيوم الخ... هغه وويل: او د قرآن کوم اياتونه دي چي ته په ځانګړي ډول غواړې د هغو فايده او برکات تا او ستا امت ته ورسېږي؟. ده وويل: د سورت البقرې اخيري دوه اياتونه له آمن الرسول څخه تر پايه. ورپسې رسول الله ﷺ وويل: دا اياتونه د الله د رحمت له هغو خاصو خزانو څخه دي چي د ده تر عرش لاندي دي، الله د

رحمت دا اياتونه دې امت ته ورکړي . په دې کې د دنيا او اخرت هره ښېګنه او هر شی شته. (مسند دارمي او معارف الحديث)

## د سورت آل عمران وروستي اياتونه :-

له عثمان بن عفان ﷺ څخه روايت دی چې ويې ويل: که څوک د آل عمران وروستي اياتونه ولولي نو د ټولې شپې د لمانځه ثواب به يې ولیکل شي. له ان فی خلق السماوات و الارض څخه تر لا تخليف الميعاد پورې.

## د سورت الحشر وروستي درې اياتونه :-

رسول اللهﷺ وايي چې که څوک سهار دا تعوذ، د سورت الحشر له دې درو اياتونو سره يو ځای کړي نو الله د هغه لپاره اويا زره ملايکې ګماري چې تر ماښامه ورته د مغفرت دعا کوي او که يې ماښام ووايي نو تر سهاره ورته د مغفرت دعا کوي او که مړ شو نو د شهيد په مرګ به مري.

(ترمذي، دارمي، ابن سعد، حصن حصين)

اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم (درې ځله)

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ * هُوَ اللَّهُ الَّذِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلاَمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ * هُوَ اللَّهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ* (سورت الحشر ۲۲ - ۲۴)

ژباړه: دی هغه الله دی چې له ده پرته بل معبود نه شته، په پټو او غيبو پوهېدونکی رحمان او رحيم دی، دا الله هغه دی چې له ده پرته بل معبود نه

شته، پاچا، پاک، سلامت، امن ورکوونکی، ساتونکی، عزیز، جبار او د ډېري لويي څښتن دی. الله له هغه شرکه پاک دی چي دوی یې کوي، الله پیدا کوونکی، سم جوړوونکی دی او ښکلي نومونه لري، د اسمانو او ځمکې هر څه د ده تسبیحات وايي او دی غالب د حکمت څښتن دی.

## د سورت الطلاق يو ايت:-

ابو ذر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: ما ته یو داسي ايت معلوم دی چي که خلک عمل پرې وکړي نو ورته کافي دی او هغه ايت دا دی:

وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ

(الطلاق: ۲، ۳)

څوک چي له الله وېرېږي نو الله ورته د وتلو ځای پیدا کوي او له هغه ځایه روزي ورکوي چي گومان يې نه وي.

يعني څوک چي له الله وېره وکړي الله يې د نجات لپاره لار پیدا کوي او له داسي ځایه روزي ورکوي چي وهم او گومان يې هم نه وو.

(مسند احمد، ابن ماجه، دارمي، مشکوة)

## دعا

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: الله ويلي: انا عند ظن عبدی بي و انا معه اذا دعاني. حديث قدسي

يعني زه پر ما د خپل بنده له گومان سره برابريم او کله چي مي ور بولي نو ورسره يم. (بخاري، الادب المفرد)

په حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ وویل: دعا عین عبادت ده. بیا یې د دلیل په توګه د قرآن دا ایت تلاوت کړ:

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ (غافر: ٦٠)

او ستاسو رب ویلي چې له ما دعا وغواړئ زه به یې قبوله کړم.

(مسند احمد، ترمذي، ابوداود، ابن ماجه، نسایي، حصن حصین)

**د دعا طریقه:-**

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: له الله څخه داسي غوښتنه کوئ چې لاسونه لوړ کړئ، د لاسو ورغوي مخ ته کړئ او سرچپه یې مه غواړئ، کله چې دعا وکړئ نو پورته شوي لاسونه پر مخ را تېر کړئ. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له ابی بن کعب ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به کله څوک یاداوه او هغه ته به یې دعا کوله نو لومړی به یې ځان ته دعا غوښته او بیا هغه ته. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

فضاله بن عبید وایي چې رسول الله ﷺ له یو چا څخه واورېدل په لمانځه کې یې دعا کوله، نه یې پر الله حمد ووایه او نه پر رسول الله ﷺ درود نو ویې ویل چې دې سړي په دعا کې بیړه وکړه. وروسته رسول الله ﷺ را وغوښت هغه او یا د ده په شتون کې یې نورو کسانو ته وویل: کله چې تاسو لمونځ وکړئ نو په کار ده چې تر دعا وړاندي د الله حمد او ثنا ووایي، بیا دي پر رسول الله ﷺ درود ووایي او وروسته چې یې څه خوښه وي له الله دي وغواړي. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، سنن النسایي، معارف الحدیث)

**په دعا کې لاس پورته کول:-**

د عکرمه خیال دی چې له عائشې ﷺ څخه یې واورېدل ویل یې چې رسول الله ﷺ مې ولید د دواړو لاسونو په پورته کولو یې دعا کوله او ویل یې چې اې الله! زه هم انسان یم نو ما مه نیسه، که مې په تېروتنه کوم مومن زورولی وي یا مې بد ورته ویلي وي نو سزا یې مه را کوه. (الادب المفرد)

**آمین:-**

له ابو زهیر نمیري ﷺ څخه روایت دی چې موږ یوه شپه له رسول الله ﷺ سره دباندې ولاړو، د الله پر یوه بنده ورغلو چې په ډېرو زاریو یې دعا کوله، رسول الله ﷺ ودرېد، د ده دعا او د الله په حضور کې یې د ده زارۍ اورېدې بیا یې را ته وویل چې که دې سرې دعا سمه ختمه کړه او سم مهر یې پر ولګاوه نو څه چې یې غوښتي د هغو پرېکړه یې وکړه. په موږ کې یو چا پوښتنه وکړه چې اې د الله رسوله! د سمې خاتمې او سم مهر لګولو طریقه څه ده؟. ده وویل: په اخیر کې د آمین په ویلو دعا ختمول (نو که یې داسې وکړل ګواکې په الله یې ومنله.) (ابوداود، معارف الحدیث)

**د سلامتۍ دعا:-**

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: په تاسو کې چې چا ته د دعا دروازه خلاصه شوه هغه ته د رحمت دروازې خلاصې شوې، له الله څخه چې کومې دعاوې غوښتل کېږي په هغو کې تر ټولو خوښه یې داده چې له ده څخه په دنیا او اخرت کې (د سلامتۍ دعا وغوښتل شي.)

## دعا د بلا دفع کوونکې:-

په یوه بل حدیث کي دي چي رسول الله ﷺ وویل: له قضا او قدر څخه د ساتنې هیڅ تدبیر ګټه نه لري مګر له الله څخه د دعا غوښتنه په راغلي مصیبت کي هم ګټه لري او په هغه کي هم چي نازل شوی نه وي او بې شکه بلا نازلېدونکې وي چي دعا ورسره یو ځای شي، نو د قیامت تر ورځې به د واړو ترمنځ شخړه وي (او انسان د دعا په مټ له هغې بلا ژغورل کېږي.) (حصن حصین، جامع ترمذي)

## له باور سره دعا:-

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: له الله څخه په دومره یقین دعا غواړئ چي حتما به قبلېږي، پوه شئ او په یاد ولرئ چي الله هغه دعا نه قبلوي چي د دعا پر مهال زړه غافل او بې پروا وي.
(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## په دعا کي بېړه:-

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ستاسو دعاوې تر هغه وخته قبلېږي چي له بېړي کار وانه خلي، هغه دا چي بنده وایي ما څومره دعاوې وکړې قبولې نه شوې؟. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## په دعا کي قاطعیت:-

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د دعا پر مهال داسي مه وایاست چي اې الله! که دي خوښه وي ما وبخښه، رحمت را باندي وکړه او روزي راکړه بلکي له خپلې خوا په عزم او قاطعیت سره دعا وغواړئ

او باور وکړئ چې دی څه وغواړي هغه به کېږي او هیڅوک ورباندي زورنه شي کولای. (بخاري، معارف الحدیث)

## د مرګ له دعا څخه منعه :ـ

لـه انس ﷺ څخـه روایـت دی چې رسول الله ﷺ وویـل: د مرګ دعا او غوښتنه مه کوئ که څوک مجبور وي او ژوند ورته سخت شوی وي نو الله ته دي داسي دعا وکړي چې اې الله! څو زما لپاره ژوند غوره وي ژوند راکړه او کله چې مرګ را ته غوره شي نو له دنیا مي واخله.

(سن النسایي، معارف الحدیث)

## په سجده کي دعا :ـ

رسول الله ﷺ ویلي: په سجده کي بنده خپل رب ته ډېر نژدې وي نو ډېري دعاوې کوئ.

## د دعا پر قبلېدو شکر :ـ

په یوه حدیث کي دي چې رسول الله ﷺ وویل: په تاسو کي څوک څه شی له دې عاجز کوي چې د خپلې دعـا قبولیت ووینـي مثلا لـه مرض څخه روغ شي، یا په خیر له سفر څخه راوګرزي نو دوایي:

الحمد لله الذی بعزته و جلاله تتم الصالحات.

(حصن حصین، ابن السني)

## قبولې شوې دعاوې:-

رسول الله ﷺ ویلي چي د مومن بنده هیڅ داسي دعا نه شته چي الله یې په اړه نه وي ویلي چي دا مي په دنیا کي قبوله کړې او دا مي ستا لپاره اخرت ته ساتلې، هغه وخت به مومن بنده هیله وکړي چي کاش! زما هیڅ دعا په دنیا کي نه وای قبوله شوې، له همدې وجې باید بنده هر وخت دعا وغواړي.
(حاکم)

رسول الله ﷺ ویلي چي دوه شیان د الله په دربار کي نه ردېږي یو د اذان پر مهال دعا او بل د جهاد پر مهال. (ابوداود)

رسول الله ﷺ ویلي چي د اذان او اقامت تر منځ د وقفې دعا نه ردېږي، صحابه کرامو ﷺ پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! په دې وقفه کی کومه دعا وکړو؟. ده وویل: دا دعا کوئ: اللهم انی اسئلک العفو و العافیة في الدنیا و الآخرة. له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: درې دعاوې په ځانګړي ډول قبلېږي چي هیڅ شک پکي نه شته: ۱) اولاد ته د مور او پلار دعا. ۲) د سفر او پردېسی دعا. ۳) د مظلوم دعا.
(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د پنځو کسانو دعاوې په خاص ډول قبلېږي: ۱) د مظلوم دعا څو چي یې بدله نه وي اخیستې. ۲) د حاجي دعا چي کور ته نه وي راغلی. ۳) د الله په لار کي د مجاهد دعا چي تر شهیدېدو له دنیا نه وي تللی. ۵) یوه ورور ته د بل غایبانه دعا.

د دې ټولو تر بیان وروسته رسول الله ﷺ وویل: په دې ټولو دعاګانو کې تر ټولو ژر قبلېدونکې دعا یوه بل ته غاییانه دعا ده.

(دعوات الکبیر للبیهقي، معارف الحدیث)

**خپل ورور ته غاییانه دعا:-**

رسول الله ﷺ به ویل: د مسلمان هغه دعا چې په غیاب یې خپل ورور ته کوي حتما قبلېږي، پر دې مهال یوې فرښتې ته دنده ورکول کېږي چې کله دی خپل ورور ته دعا کوي نو فرښته امین وایي او زیاتوي: ولک مثل ذالک. (الادب المفرد)

**له کشرانو څخه د دعا غوښتنه:-**

له عمربن الخطاب ﷺ څخه روایت دی چې یو ځل مې له رسول الله ﷺ څخه مکې ته د عمرې اجازه وغوښته نو ده اجازه راکړه او ویې ویل: وروره! موږ هم په دعاوو کې یاد ساته او هېروه مو مه. عمر ﷺ وایي: رسول الله ﷺ چې ما ته د ورور کومه کلمه وویله که یې په بدل کې ټوله دنیا راکړل شي نو هم پرې راضي نه یم. (سنن ابی داود، جامع ترمذي، معارف الحدیث)

**د رسول الله ﷺ ځیني دعاوې:-**

په صحیح مسلم کې له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چې جبریل رسول الله ﷺ ته راغی ویې ویل: اې محمده! په تکلیف یې؟. ده وویل: هو!. جبریل دا دم پرې وکړ: بسم الله ارقیک من کل داء یؤذیک من شر کل نفس او عین حاسد الله یشفیک باسم الله ارقیک.

يعني د الله په نوم دربانديدم کوم له هر مرض څخه چي تا ته تکليف رسوي، د هر نفس او حاسدې سترګې له شره جوړ شې، د الله په نوم دربانديدم کوم. (زاد المعاد)

## بېلابېلې دعاوې:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ ته تکليف ورسېد نو اسمان ته به يې وکتل وبه يې ويل: سبحان الله العظيم او کله چي به يې په دعا کي ډېره هڅه کوله نو يا حي يا قيوم به يې ويل. (زاد المعاد)

همدا راز له انس ﷺ څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ اندېښمن او يا فکرجن شو نو دا دعا به يې ويله: يا حي يا قيوم برحمتک استغيث. اې حي او قيومه! ستا په رحمت مرسته غواړم. (زاد المعاد)

او نورو ته به يې ويل: الزموا بيا ذالجلال و الاکرام يعني په يا ذالجلال والاکرام پسي ومښلئ او د دې کلمې په وسېله الله ته زاري او فرياد کوئ. (جامع ترمذي)

علي ﷺ ويلي چي د بدر په جګړه کي کله کافران د جګړې پر مهال رسول الله ﷺ ته ورسېدل نو ومي ليدل چي رسول الله ﷺ سر پر سجده ايښی يا حي او يا قيوم وايي، زه ولاړم او په جګړه کي مي ګډون وکړ، بيرته راغلم دی همدا سي پر سجده پروت وو يا حي يا قيوم يې ويل تر دې چي الله د فتحې زېری ورکړ. (نسايي، حاکم، حصن حصين)

- کله چي به رسول الله ﷺ د يوه شي په اړه ډېر پښېمان شو نو څادر به يې وغواړه وبه درېد او خپل لاسونه به يې دعا ته دومره اوږده کړل چي د بغل سپينوالی به يې ښکاره شو.

- کله چي به يې دعا ختمه کړه نو دواړه لاسونه به يې پر مخ تېر کړل.
- د دعا او استغفار الفاظ يې درې ځله تکرارول.
- رسول اللهﷺ په دعا کي سجع او قافيې ته نه پام کاوه او نه يې دا طريقه خوښوله.
- کله چي به له يو مجلس څخه ولاړ شو نو دا دعا يې ويله: سبحانک اللهم و بحمدک اشهد ان لا اله الا انت استغفرک و اتوب اليک. اې الله! زه ستا له حمد سره ستا پاکي بيانوم، په زړه اقرار کوم چي لدتا پرته هيڅ معبود نه شته، له تا بخښنه غواړم او تا ته توبه باسم. کله چي به خوښي ورته ورسېده نو ويل به يې: الحمد لله الذی بنعمته تتم الصالحات. يعني هغه الله لره شکر چي په پېرزوينه يې غوره شيان کمال ته رسېږي.
- او کله چي به سخت حالت پرې راغی نو ويل به يې: الحمد لله علی کل حال. يعني الله لره دي په هر حال کي حمد وي. (حاکم)
- کله چي به يې په لار کي د چا لاس ونيو او بيا به ترې بېل شو نو ويل به يې: ربنا اتنا فی الدنيا حسنة و في الاخرة حسنة و قنا عذاب النار.
- د قرض ادا کولو پر مهال به يې دا دعا کوله: بارک الله فی اهلک و مالک انما جزاء السلف الحمد و الاداء. يعني الله دي ستا په کور او مال کي برکت واچوي د قرض بدله ستاينه او پر وخت ادا کول دي.

- کله چي به چا نوې جامې واغوستې او رسول الله ﷺ ته به ورغی نو ده به ویل: حسنة، حسنة یعني ډېر ښه، ډېر ښه او بیا به یې ویل: ابل واخلق یعني زاړه یې کړه.
- کله چي به رسول الله ﷺ ته یوه مېوه ډالۍ شوه او هغه مېوه به د لومړي ځل لپاره د خوراک وړ وګرځېده نو په سترګو به یې ومونښله له دواړو شونډانو سره به یې ولګوله او وبه یې ویل: اللهم کما اریتنا اوله فارنا آخره. اې الله! لکه څرنګه چي دي یې پیل را ولید پای یې هم راووینه بیا به یې هلته حاضر ماشوم ته ورکړه. (ابن السني)
- کله چي به یې پوځ رخصتاوه نو دا دعا به یې کوله: استودع الله دینکم و امانتکم و خاتم اعمالکم. (ابوداود) زه مو دین، امانت او د اعمالو خاتمه الله ته سپارم.
- رسول الله ﷺ چي به کله نوې جامه واغوسته نو ویل به یې: الحمد لله الذی کسانا هذا یعني هغه الله لره حمد چي دا جامه یې را واغوسته یا به یې د شکر داسي نور الفاظ وویل، د شکرانې دوه رکعته لمونځ به یې وکړ او زړه جامه به یې یو مسکین ته ورکړه. (ابن عساکر)

- کله چي به یې له چا سره مېلمستیا وخوړه نو هغوی ته به یې ویل: اللهم بارک لهم في مارزقتهم واغفر لهم وارحمهم. (مسلم، معارف الحدیث)
- کله چي به رسول الله ﷺ په مجلس کي خبرې وکړې او بیا به پر ولاړېدو شو نو له لسو تر پنځلسو ځلو به یې استغفار غوښت. (ابن السني) په یوه روایت کي دا استغفار راغلی دی: استغفر الله الذی لا اله الا هو الحی القیوم و اتوب الیه. یعني زه له هغه الله څخه بخښنه غواړم چي له ده پرته هیڅ معبود نه شته، ژوندی دی، نړۍ اداره کوي او ده ته توبه باسم. کله چي به له ستونزې سره مخ شو نو نفل لمونځ به یې کاوه ځکه دا ظاهري، باطني، دنیوي او اخروي کټه لري او پرېشاني له منځه وړي. کله چي به رسول الله ﷺ د چا پوښتنې ته ورغی نو ورته ویل به یې: لا بأس طهور ان شاء الله تعالی. یعني هیڅ وېره نه شته، د کفارې ګناه ده که الله غوښته. (ترمذي، معارف الحدیث)

## د رسول الله ﷺ ځیني ښوول شوې دعاوې

### د شپې د اخیري وخت دعا:-

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: هره شپه چي کله د شپې درېیمه برخه پاتي وي الله د دنیا اسمان ته راځي او وایي: څوک شته چي له ما دعا وکړي زه یې واورم، له ما غوښتنه وکړي زه یې پوره کړم او له ما عفوه او مغفرت وغواړي زه یې وبخښم؟. (الادب المفرد)

له ابو هریره ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: دین اسانه دی او هر څوک چې په سختۍ پر دین د غالبېدو اراده وکړي نو دین به ماتې ورکړي، سم روان شئ، نږدې او سئ او یو بل ته زېرى ورکوئ، د سهار او ماښام پر وخت او د شپې په اخیري برخه کې پرې تکیه وکړئ. (ذکر الله)

له ابو هریره ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک په مجلس کې ډېرې بې ځایه خبرې وکړي او په اخیر کې دا ووایي: سبحانک اللهم و بحمدک اشهد ان لا اله الا انت استغفرک و اتوب الیک. یعني زه ستا له حمد سره ستا پاکي بیانوم او شاهدي ورکوم چې له تا پرته بل معبود نه شته، له تا بخښنه غواړم او تا ته توبه باسم نو الله به یې د مجلس ټولې تېروتنې ورو بخښي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

له ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: څوک چې د خوب لپاره پر بستره د ویدېدلو پر مهال درې ځله دا دعا ووایي: استغفر الله الذی لا اله الا هو الحی القیوم و اتوب الیک. زه له هغه الله مغفرت غواړم چې له ده پرته بل معبود نه شته، حي او قیوم دی او ده ته توبه باسم نو ټول ګناهونه به یې وبخښل شي که څه هم د ونو د پاڼو، د عایج د ریګستان د ذرو او نړۍ د ورځو په څېر بې شماره وي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## د بې خوبۍ دعا:-

له بریده ﷛ څخه روایت دی چې خالد بن ولید رسول الله ﷺ ته په شپه کې د بې خوبۍ شکایت وکړ رسول الله ﷺ وویل: کله چې پر بستره پرېوزې نو دا دعا ووایه:

اللهم رب السماوات السبع و ما اظلت و رب الارضين و ما اقلت و رب الشياطين و ما اضلت کن لی جارا من شر خلقک کلهم جميعا ان يفرط علی احد عز جارک و جل ثناءک و لا اله غيرک لا اله الا انت. (ترمذي)

اې الله! د اوو اسمانونو او هغه څه ربه چي دوی پرې سيوری کړی، د ځمکې او هغو شيانو ربه چي ځمکې پورته کړي، اې د شيطانانو او هغه څه ربه چي دی ګمراهان کړي ما د خپل ټول مخلوق له شره وساته چي تېری را باندي وکړي، ستا پناه غوښتونکی عزتمن دی، شان دي لوی دی، له تا پرته هيڅ معبود نه شته.

## د اندېښني او پرېشانی پر مهال دعا:-

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که د چا پرېشاني او اندېښنه زياته وي نو په کار ده چي دا دعا ووايي:

اللهم انی عبدک و ابن عبدک و ابن امتک و فی قبضتک ناصيتی بيدک ماض فی حکمک عدل فی قضاءک اسئلک بکل اسم هو لک سميت به نفسک او انزلته فی کتابک او استأثرت به ف ی مکنون الغيب عندک ان تجعل القرآن العظيم ربيع قلبي و جلاء همی و غمی.

اې الله! زه ستا بنده، ستا د بنده و مينځې زوی يم، ستا په ولکه کي او ټول ستا تر قدرت لاندي يم، زما په اړه ستا امر پلی او عين عدل دی، ستا په هر هغه نوم چي ځان دي پرې نومولی يا دي په خپل کتاب کي نازل کړی او يا

دي له ځان سره د غيبو په خزانه کي خوندي کړی سوال کوم چي قرآن زما د زړه سپرلی وګرزوه او په برکت يې زما اندېښني او غمونه را څخه لرې کړه.

رسول الله ﷺ وويل: هر بنده چي د دې کلمو په وسيله له الله دعا وکړي هغه به يې فکرونه او اندېښنې ختمې او حتما به پراخي ورکړي.

(رزين، معارف الحديث)

## د تکليف، غم او پور ادا کولو دعا:-

له ابو سعيد خدري ؓ څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ مسجد ته راغی هلته ابو امامه انصاري ناست وو، ده ورته وويل چي ولي بې وخته په مسجد کي ناست يې؟. هغه وويل: اې د الله رسوله! ډول- ډول غمونه او تکليفونه دي او د خلګو قرضونه را باندي دي. ده وويل چي زه تا ته ځيني داسي کلمې در ښيم چي په ويلو به دي غم او درد لرې شي، قرض به دي ادا شي، سهار او ماښام يې وايه.

اللهم انی اعوذبک من الهم و الحزن و اعوذبک من العجز و الکسل و اعوذبک من الجبن و اعوذبک من غلبة الدين و قهر الرجال.

يا الله! زه په تا له خپل غم او فکر څخه پناه غواړم، په تا له بې همتی، لټی، بې زړه توب، بخل، د قرض له ډېرېدو او خلګو له پشاره پناه غواړم.

ابو امامه ؓ وايي چي څو ورځې مي دا کلمې وويلې نو الله تعالی مي تکليف او غم لرې کړل او قرض مي ادا شو. (حصن حصين)

ابو الدرداء ؓ ته يو چا د کور سوځېدو خبر ورکړ، ده له څه اندېښنې پرته وويل چي هيڅکله به ونه سوځي او الله به داسي ونه کړي ځکه له رسول

الله ﷺ مې اورېدلي چې څوک دا کلمې د ورځې په پیل کې ووایي تر ماښامه به غم ور ونه رسېږي او څوک چې یې ماښام ووایي تر سهاره به غم ور ونه رسېږي، په ځینو روایاتو کې دي چې پر ځان، کورنۍ او مال به یې هیڅ افت را نه شي، ما سهار ویلې دي نو څرنګه مې کور سوځېدای شي؟. بیا یې خلکو ته وویل چې ورشئ وګورئ، ټول یې کور ته ورغلل نو ویې لیدل چې په سیمه کې اور لګېدلی د هغه د کور شا وخوا ټلورو خواوو ته کورونه سوځېدلي او د ده کور یې په منځ کې خوندي پاتې دی، هغه کلمې دادي:

اللهم انت ربی لا اله الا انت علیک توکلت و انت رب العرش العظیم. ما شاء الله کان و ما لم یشأ لم یکن لا حول و لا قوة الا بالله العلی العظیم. أعلم ان الله علی کل شیء قدیر و ان الله قد احاط بکل شیء علماً.

اې الله! ته زما رب یې، له تا پرته هیڅ معبود نه شته، پر تا مې توکل کړی، ته د ستر عرش رب یې، الله چې څه غوښتي کېږي او چې څه یې نه دي غوښتي نه کېږي، له ګناه د منعې او عبادت د کولو طاقت د الله له خوا دی چې لوړ او ستر دی، بې شکه پوهېږم چې ته پر هر څه قادر یې او یقینا الله پر هر څه د علم له مخې احاطه کړې ده.

## د تکلیف او غم پر مهال:-

په مسند کې له رسول الله ﷺ څخه روایت دی چې که څوک په غم اخته شي نو دا دعا دې ووایي: انا لله و انا الیه راجعون، اللهم اجرنی فی مصیبتی و اخلف لی خیرا منها. بې شکه موږ د الله یو او ده ته به ور ګرزو، اې الله! ما ته د دې مصیبت اجر او په عوض کې یې ښه بدله راکړه. (زاد المعاد)

په صحیحینو کي له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د نا ارامۍ پر مهال دا دعا ویله: لا اله الا الله العظیم الحلیم لا اله الا الله رب العرش العظیم، لا اله الا الله رب السماوات السبع و رب الارض و رب العرش العظیم. (زاد المعاد)

له الله پرته هیڅ معبود نه شته چي ستر او ډېر زغم درلودونکی دی، له الله پرته هیڅ معبود نه شته چي د ستر عرش خاوند دی، له الله پرته هیڅ معبود نه شته چي د اوو اسمانونو، ځمکې او ستر عرش څښتن دی.

کله چي څوک د یوه کار له کولو عاجز شي او یا ډېر طاقت غواړي نو باید د ویدېدو پر مهال دري دېرش ځله سبحان الله، دري دېرش ځله الحمد لله او څلور دېرش ځله الله اکبر ووایي.

(بخاري، مسلم، ترمذي، ابوداود، حصن حصین)

## په مصیبت کي د یو چا د لیدلو پر مهال دعا: -

له عمر بن الخطاب او ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که یو څوک په مصیبت او تکلیف اخته شخص وویني او دا دعا ووایي: الحمد لله الذی عافاني من ما ابتلاک به و فضلنی عل کثیر من خلق تفضیلا. یعني هغه الله لره حمد چي ما ته یې سلامتي راکړې او له هغه تکلیفه یې خلاص کړی یم چي ته پرې اخته یې او پر خپل ډېر مخلوق یې فضیلت راکړی نو له هر ډول تکلیف او مصیبت څخه به خوندي شي.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

له اسماء بنت عمیس ﷞ څخه روایت دی چي یو ځل رسول الله ﷺ را ته وویل: ایا داسي کلمې درونه ښیم چي د تکلیف او سختۍ پر مهال یې ووایې؟. هغه دادي: الله ربی لا اشرک به شیئا. یعني الله مي رب دی هیڅ شی ورسره نه شریکوم.

په یوه روایت کي ویل شوي چي اووه ځله دي وایي. (زاد المعاد)

**د سخت خطر پر مهال دعا:۔**

له ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چي موږ د خندق د غزا پر مهال رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله! ایا د دې نازک حالت لپاره کومه دعا شته چي له الله یې وغواړو؟ په داسي حال کي چي زړونه مو له وېري ستونو ته را رسېدلي دي، نو ده وویل: هو! الله ته دا دعا وکړئ: اللهم استر عوراتنا و امن روعاتنا. یعني اې الله! زموږ پرده وساته او وېره مو په اطمنان بدله کړه. ابو سعید خدري ﷛ وایي چي تر دې وروسته الله توپان را ولېږه، د دښمن مخ یې واړاوه او هغوی مات شول. (معارف الحدیث، مسند احمد)

**په خوب کي وېره:۔**

عبدالله بن عمرو بن العاص ﷛ روایت کوي چي رسول الله ﷺ وویل: کله چي په تاسو کي څوک د خوب پر مهال ووېرېږي نو دا دعا دي وکړي: اعوذ بکلمات الله التامات من غضبه و عذابه و من شر عباده و من همزات الشیاطین و ان یحذرون. یعني زه د الله په پوره کلمو د ده له غضب او عذاب، د ده د بندګانو له شر، د شیطان له وسوسو او د هغوی له حضور څخه پناه غواړم.

رسول الله ﷺ وویل: بیا به شیطانان د هغه هیڅ خراب نه کړای شي.

(معارف الحدیث)

## هر اړخیزه دعا:-

ابو امامه رضی الله عنه وایي: رسول الله ﷺ ډېري دعاوې بیان کړې چې زموږ نه یادې نه وې. ورته ومو ویل: اې د الله رسوله! تا ډېري دعاوې را ښودلې خو موږ یادې نه کړای شوې او غواړو چې له الله د هغو ټولو دعاوو غوښتنه وکړو د دې لپاره باید څه وشي؟.

رسول الله ﷺ وویل: زه یوه داسي دعا درښیم چې هغه ټولي دعاوې به پکې راشي، د الله حضور ته دا دعا وړاندې کړئ.

اللهم انا نسئلک من خیر ما سألک منه، نبیک محمد صلی الله علیه وسلم و نعوذ بک من شر ما استعاذ منه نبیک محمد صلی الله علیه وسلم و انت المستعان و علیک البلاغ و لا حول ولا قوة الا بالله.

اې الله! موږ له تا د هر هغه څه سوال کوو چې ستا نبي در څخه غوښتي او له هر هغه څه پناه غواړو چې ستا نبي یې له تا پناه غوښتې، ته مرسته کوونکی یې او مرسته ستا په کرم پوري تړلې ده، مقاصدو او مراد ته رسېدل او د هغو لپاره سعې او حرکت او د تر لاسه کولو قوت یې صرف له الله سره دی. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## قنوت نازله:-

د عام مصیبت لکه وچکالي، وبا، دښمنانو د حملې او نورو پر مهال دې قنوت نازله د سهار د لمانځه په وروستي رکعت کي تر رکوع وروسته وایي

او کـه يـې امـام وايـي نـو مقتـديان دي تـر هـرې جملـې وروسته ورو امين تکراروي.

اللَّهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ، فَإِنَّكَ تَقْضِيْ وَلاَ يُقْضَى عَلَيْكَ، إِنَّهُ لاَ يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ [وَلاَ يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ]، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ.

اې الله! مـا تـه د هغـو خلگـو لار را وښيه چې تـا لار ور ښودلې، د هغو خلگو سلامتي راکړه چې تا سلامتي ورکړې، د هغو خلگو په څېر کار را جوړ کړه چې تـا کـاز ور جوړ کړی دی، څه چې دي راکړي دي پـه هغـو کـي برکت واچوه او ماله هغه څه وساته چې تـا مقدر کړي ځکه صله کوونکی تـه يـې، يقينا ستا دوست ذليل کېدای نه شي او دښمن دي عزت نـه شـي تـر لاسه کولای، ته برکتمن، لوړ او لوی يې، موږ له تا بخښنه غواړو، تا ته توبه باسو او اې الله! پر رسول الله ﷺ کامل رحمت نازل کړه.

## د بازار په توره فضا کي د الهي ذکر بې ساری ثواب:-

لـه عمر ﷺ څخـه روايـت دی چي رسـول الله ﷺ وويـل: کـه څـوک بـازار تـه ولاړ او د بازار په غافله او له شوره ډکه فضا کي يې د زړه لـه اخلاصه وويل:

لا اله الا الله وحده لا شريک له، له الملک و له الحمد يحي و يميت وهو حي لا يموت بيده الخير وهو على کل شيء قدير. يعني له الله پرته هيڅ معبود نه شته، دی يو دی، هـيڅ شـريـک نـه لـري، پاچاهي او ستاينه ده لره ده، مـرګ او ژونـد دی کوي، تل به ژوندی وي، هيڅکله نه مري، خير د ده په لاس کي دی او پـر هـر څه قدرت لري نو د الله لـه خوا بـه ورتـه پـه زرګـونـو نېکـۍ ولیکـل شي، پـه

زرګونو بدۍ به یې معاف شي، په زرګونو درجې به یې لوړې شي او الله به د ده لپاره یوه ستره ماڼۍ جوړه کړي.
(جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

**د شفا ایاتونه:-**

د طریقت له امام ابو القاسم قشیري څخه نقل شوی، دی وایي چې بچی یې ناروغ شو او ناروغي یې دومره سخته شوه چې مرګ ته ورسېد. د ده وینا ده: رسول الله ﷺ مې په خوب ولید او د ماشوم حال مې ورته ووایه. هغه وویل: ته ولې د شفا له ایاتونو لرې یې؟، ولې یې نه درتېنګوې او ولې شفا نه غواړې؟. زه را پورته شوم او غور مې پرې وکړ نو د شفا دا ایاتونه مې شپږ ځایه د الله په کتاب کي وموندل:

۱) ویشف صدور قوم مؤمنین (التوبة: ۱۴)

او الله د مومن قوم سینې رغوي.

۲) و شفاء لما فی الصدور (یونس: ۵۷)

د سینو د تکلیف شفا ده.

۳) یخرج من بطونها شراب مختلف الوانه فیه شفاء للناس (النحل: ۶۹)

د دوی له ګېډو د څښاک شیان را باسي چې مختلف رنګونه لري او په هغو کي د خلکو لپاره شفا ده.

۴) وننزل من القرآن ما هو شفاء و رحمة للمؤمنین (الاسراء: ۸۲)

او موږ په قرآن کي داسي څه نازلوو چي د مومنانو لپاره شفا او رحمت دي.

۵) و اذا مرضت فهو یشفین (الشعراء: ۸۰)

او کله چي ناروغ شم دی مي رغوي.

۶) قل هو للذين امنوا هدی و شفاء (حم السجدة: ۴۴)

ورته ووايه دا د مومنانو لپاره هدايت او شفا ده.

ما دا اياتونه وليکل او په اوبو کي مي تر حل کولو وروسته په ماشوم وڅښل دی هماغه وخت داسي روغ شو لکه د پښو غوټې چي يې خلاصې شوې وې. (مدارج النبوة)

## درود او سلام

الله ويلي چي اې مومنانو! پر رسول الله ﷺ درود او سلام واياست. ده ويلي: يا ايها الذين امنوا صلوا عليه و سلموا تسليما.

رسول الله ﷺ ويلي: څوک چي زما د قبر په خوا کي را باندي درود وايي زه يې په خپله اورم او څوک چي يې له لرې فاصلې وايي ما ته رسېږي يعني د ملايکو په وسيله. (بيهقي، شعب الايمان، سنن النسايي، مسند دارمي، سنن ابی داود، زاد السعيد)

رسول الله ﷺ ويلي: که څوک په کتاب کي پر ما درود ووايي نو څو چي زما نوم په هغه کتاب کي وي ملايکې به تل ور باندي درود وايي.

(طبراني، زاد السعيد)

کله چي د جمعې په خطبه کي د رسول الله ﷺ نوم ياد شي يا خطيب دا ايت ووايي: يا ايها الذين امنوا صلوا عليه و سلموا تسليما نو په خپل زړه کي دي د ژبې له حرکت پرته صلی الله عليه وسلم ووايي. (الدر المختار)

په در مختار کي دي چي د درود پر مهال د اندامونو ښورول او اواز لوړول ناپوهي ده، له دې معلومه شوه چي په کومو ځايونو کي تر لمانځه وروسته د حلقو په جوړولو له حرکت سره کوم درودونه ويل کېږي هغه غلط دي.

کله چي د رسول الله ﷺ نوم ليکل کېږي نو صلوٰت او سلام دي هم وليکي يعني صلى الله عليه وسلم دي پوره کاږي يوازي پر ص يا صلعم دي کفايت نه کوي. د رسول الله ﷺ تر نوم وړاندي د سيدنا زياتول غوره او ښه کار دی.
(درمختار)

که په يوه مجلس کي څو ځله د رسول الله ﷺ نوم ياد شي نو د امام طحاوي مذهب دا دی چي پر يادوونکي او اورېدونکي هر ځل د درود ويل واجب دي خو فتوا پر دې ده چي يو ځل ويل يې واجب او بيا مستحب دي. په لمانځه کي له وروستي تشهد پرته په نورو ارکانو کي درود ويل مکروه دي.
(در مختار)

بې اودسه درود ويل روا او په اوداسه ويل يې افضل دي.
(زاد السعيد)

په حديث کي دي چي د جمعې په ورځ پر ما ډېر درود واياست، په دې وخت کي فرښتې حاضرې وي او ما ته يې را رسوي.
(ابن ماجه، ابوداود، نسايي، زاد السعيد)

ابو حفص ابن شاهين له انس ﷺ څخه روايت کړی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک پر ما زر ځله درود ووايي نو څو چي په جنت کي خپل ځای ونه ويني نه مري. (سعايه، زاد السعيد)

## درود د دعا د قبلېدو شرط :-

له عمربن الخطاب ؓ څخه روایت دی چي ویې ویل: دعا تر هغو د اسمان او ځمکې تر څوړنده وي چي پر رسول الله ﷺ درود نه وي ویل شوی.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

همدا روایت د علي ؓ په حواله هم نقل شوی دی.

(معجم اوسط للطبراني)

## په احادیثو کي د درود او سلام ترغیب، فضایل او برکات :-

له ابو برده بن دینار ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که زما هر امتي د زړه له اخلاصه پر ما درود ووایي، الله پرې لس ځله درود وایي، لس درجې یې لوړوي، په حساب کي یې لس نېکۍ لیکي او لس ګناهونه یې بخښل کېږي. (سنن النسایي، معارف الحدیث)

له کعب بن عجره انصاري ؓ څخه روایت دی چي یوه ورځ رسول الله ﷺ را ته وویل: ما ته راشئ، موږ ورغلو ( څه چي یې ویل ویې ویل او د منبر پر لور روان شو) کله چي یې د منبر پر لومړۍ زینه قدم کېښود نو ویې ویل: آمین، بیا یې پر دویمه زینه قدم کېښود ویې ویل: آمین، په درېیمهٔ زینه کي یې هم داسي وکړې. وروسته یې خپلې خبرې خلاصې کړې، کله چي له منبره را کښته شو نو خلګو ورته وویل: اې د الله رسوله! نن مو له تا داسي څه واورېدل چي وړاندي مو نه وو اورېدلي. ده وویل: کله چي منبر ته پورته کېدم نو جبریل امین راغی ویې ویل:

۱) هغه څوک دي تباه او هلاک شي چي د روژې په راتلو بې برخې وي او په دې کي يې هم د مغفرت فيصله ونه شي. ما وويل: آمين. کله چي مي د منبر پر دويمه زينه قدم کېښود نو ويې ويل:

۲) هغه څوک دي برباد او هلاک وي چي په مخ کي يې ستا نوم ياد شي او درود درباندي ونه وايي، ما وويل: آمين. بيا چي مي کله د منبر پر درېيمه زينه گام کېښود نو ويې ويل:

۳) هغه بد بخته سړی دي هلاک شي چي مور او پلار او يا په هغو کي يو يې بوډا شي او دی د جنت استحقاق تر لاسه نه کړي. ما بيا هم وويل: آمين. (جامع ترمذي، مستدرک حاکم، معارف الحديث)

له ابن مسعود ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د قيامت په ورځ به پر ما ډېر درود ويونکي ډېر را نژدې وي. (بيهقي، ترمذي)

له ابو بکر صديق ؓ څخه روايت دی چي پر رسول الله ﷺ درود ويل د گناهونو په مينځلو او پاکولو کي په سړو اوبو د اورتر وژلو ډېر تاثير او اغېز لري او پر رسول الله ﷺ سلام ويل د مرييانو تر ازادولو زيات فضيلت لري.

لنډه دا چي پر رسول الله ﷺ درود او سلام ويل د انوارو او برکتونو سرچينه او د ټولو غوره کارونو و نېکمرغيو کيلي ده.

د تصوف لارويانو په دې باب کي د ښې ونډې اخيستلو او مينې له امله د سترې بريا او الهي لورينو وړتيا تر لاسه کړې ده، ځينو مشايخو ويلي چي کله د روزنې لپاره کامل او پوره مرشد نه وي نو په کار ده چي پر رسول الله ﷺ درود ويل لازمي کړي. دا يوه داسي طريقه ده چي د حق پلټونکی خپل هدف ته رسېږي، پر رسول الله ﷺ درود او سلام او هغه ته پاملرنه به يې په نبوي

ادا بو او محمدي غوره اخلاقو وروزي، د کمال لوړو درجو او د الهي قرب منزلونو ته به يې ورسوي، د رسول الله ﷺ د نژدېکت ویاړ به تر لاسه کړي.

(مدارج النبوة)

ځينو مشايخو وصيت کړی چي قل هو الله او پر رسول الله ﷺ درود دي ډېر وايي، دوی ويلي: د قل هو الله قرأت د واحد الله معرفت دی او پر رسول الله ﷺ درود د هغه ملګرتيا او محبت پيدا کوي او څوک چي پر رسول الله ﷺ ډېر درود وايي يقينا به يې په خوب او ويښه زيارت وکړي.

(دعوات کبير، جامع ترمذي، مدارج النبوة)

له طلحه رضي الله عنه څخه روايت دی چي ويې ويل: يوه ورځ رسول الله ﷺ په داسي حال کي راغی چي له سترګو يې خوښي معلومېده او څېره يې خوشاله وه، صحابه کرامو رضي الله عنهم وويل: اې د الله رسوله! نن خوښ ښکارې څه کيسه ده؟. ده وويل: جبريل راغی او ويې ويل چي اې محمده! ايا ته په دې نه خوشالېږې چي الله وايي: ستا د امت هر وګړی چي کله پر تا يو ځل درود ووايي نو زه پرې لس ځله درود وايم. (سنن النسايي، مسند دارمي)

په ترمذي کي له ابی بن کعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي ويې ويل: اې د الله رسوله! غواړم پر تا درود ووايم. ده وويل: څومره؟. ما وويل: د خپلو اذکارو څلورمه برخه. ده وويل: څومره چي غواړې، که يې زياته کړې نو ستا لپاره نوره هم ګټه ده. ما وويل: نيمه؟. ده وويل: څومره چي يې غواړې، که يې زياته کړې نو نوره دي ګټه ده. ما وويل: دوه ثلثه. ده وويل: څومره چي غواړې او که يې زياته کړې نو نوره دي ګټه ده. ده وويل: نو بيا به زه د

خپلې ټولې دعا په بدل کې پر رسول الله ﷺ درود وایم. رسول الله وویل: بیا دې نو خپل همت پوره کړ او ګناهونه دې وبخښل.

(جامع ترمذي، مدارج النبوة)

## د درود بر کات:-

د درود تر ټولو خوږ او شیرین خاصیت دا دی چې په وسیله یې نبوي پتنګاه په خوب کې د هغه دیدار تر لاسه کوي، ځینې درودونه خو بزرګانو په خاص ډول ازمویلي دي. شیخ عبد الحق دهلوي په خپل کتاب ترغیب السادات کې لیکلي چې که څوک د جمعې په شپه دوه رکعته نفل وکړي، په هر رکعت کې یوولس ځله ایت الکرسي، یوولس ځله قل هو الله او تر سلام وروسته سل ځله دا درود ووایي نو ان شاء الله جمعه به نه وي تېره شوې چې نبوي زیارت به یې په برخه شي. درود دا دی:

اللهم صل علی محمد ن النبی الامی و اله واصحابه و سلم.

(زاد المعاد، زاد السعید)

همدا راز نوموړي لیکلي: که څوک دوه رکعته لمونځ وکړي او په هر رکعت کې تر الحمد لله وروسته پنځه ویشت ځله قل هو الله او تر سلام وروسته زر ځله دا درود ووایي نو نبوي زیارت به یې په برخه شي.

(زاد السعید)

صلی الله علی النبی الامی.

همدا راز یې ویلي چې د ویده دو پر مهال د دې درود په اویا ځله ویلو به نبوي زیات تر لاسه کړي.

اللهم صل علی سیدنا محمد بحر انوارک و معدن اسرارک ولسان حجتک و عروس مملکتک و امام حضرتک و طراز ملکک و خزائن رحمتک و طریق شریعتک المتلذذ بتوحیدک انسان عین الوجود و السبب فی کل موجود عین اعیان خلقک المتقدم من نور ضیائک صلوة تدوم بدوامک وتبقی ببقائک لا منتهی لها دون علمک صلوة ترضیک و ترضیه و ترضی بها عنا یارب العالمین.

اې الله! زموږ پر سردار محمد ﷺ کامل رحمت نازل کړه چې ستا د نور سیند، ستا د رازونو کان، ستا د وحدانیت ژبه، ستا حجت، ستا د پاچاهي استازی، ستا د دربار پېشوا، ستا د پاچاهي نقش و نګار، ستا د رحمت خزانې، ستا د دین لار، ستا د توحید خوند موندونکی دی، د موجوداتو سترګه ده، د هر موجود سبب دی، ستا په مخلوق کې غوره دی او ستا د نور له رڼا لومړنی څرګند شوی، داسې درود چې ستا په دوام دوام وکړي، ستا په بقا پاتې شي او ستا له علمه پرته پای ونه لري، داسې درود چې تا خوشاله کړي، دی راضي کړي او اې رب العالمینه! په وسیله یې ته را څخه راضي شې.

شیخ لیکلي چې د ویدېدو پر مهال څو ځله د دې درود ویل هم د زیارت لپاره اغېزناک دی.

اللهم رب الحل و الحرم و رب البیت الحرام و رب الرکن و المقام ابلغ لروح سیدنا و مولانا محمد منا السلام. (زاد السعید)

اې د حل او حرم ربه! د بيت الحرام، رکن او مقام ابراهيم ربه! زموږ د سردار او بادار محمد ﷺ روح ته زموږ له خوا سلام ور ورسوه.

په مناهج الحسنات کې د ابن فاکاهاني له کتاب فجر منير څخه نقل شوی چې يوه بزرګ شيخ صالح موسی نابينا وو، ده ما ته خپله کيسه وکړه چې يوه کښتۍ پر ډوبېدو وه زه هم پکښې وم. په دې وخت کې داسې بې هوښي را باندې راغله په همدې حالت کې رسول الله ﷺ دا درود را وښود او وې ويل: د کښتۍ ډوبېدونکي دې زر ځله ووايي: درې سوه ځله لا نه وو پوره شوي چې کښتۍ وژغورل شوه او دې درود ته تجينا هم ويل کېږي:

اللهم صل علی سيدنا و مولانا محمد صلوة تنجينا بها من جميع الاهوال و الافات وتقضی لنا بها جميع الحاجات و تطهرنا بها من جميع السيئات وترفعنا بها عندک اعلی الدرجات وتبلغنا بها اقصی الغايات من جميع الخيرات فی الحيام و بعد الممات انک علی کل شیء قدير.

اې الله! زموږ پر سردار او بادار محمد ﷺ داسې درود نازل کړه چې په وسيله يې موږ له ټولو وېرو او افتونو وساتې، زموږ اړتياوې پوره کړې، له ټولو بديو مو پاک کړې، په خپله خوا کې لوړې درجې راکړې، د نېکيو انتهايي مقصود ته مو ورسوې، هم په ژوند او هم تر مرګ وروسته، بې شکه ته پر هر څه قادر يې.

دا درود بې شمېره برکات لري، له هر ډول وبا او ناروغيو څخه ساتونکی دی. زړه ته عجيب او غريب اطمنان ورکوي او بزرګانو تجربه کړې دی. (زاد السعيد)

بزار او طبراني په صغير او اوسط کي له رويفع څخه مرفوع روايت کړی چي که څوک دا درود ووايي نو رسول الله ﷺ ويلي چي د هغه لپاره زما شفاعت واجب او ضروري دی.

اللهم صل علی محمد و علی آل محمد و انزله المقعد المقرب عندک.

اې الله! پر محمد او آل يې درود نازل کړه او داسي هستوګن ځای ته يې ورسوه چي تا ته نژدې وي.

ابوداود له ابو هريره ﷺ څخه نقل کړی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک غواړي زموږ پر کورنۍ د درود پر مهال د ثواب پوره پيمانه تر لاسه کړي نو دا درود دي ووايي:

اللهم صل علی محمد ن النبی و ازواجه امهات المؤمنين و ذريه و اهل بيته کما صليت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انک حميد مجيد.

اې الله! پر محمد نبي، د هغه پر مېرمنو چي د ټولو مسلمانانو مندې دي، اولاد او اهل بيت درود نازل کړه لکه پر ابراهيم چي دي درود نازل کړی وو بې شکه ته ستايلی او د لوړو صفاتو خاوند يې.

بخاري په القول البديع کي له ابن ابی عاصم ﷺ څخه نقل کړی چي که څوک تر اوو جمعو هره جمعه اووه ځله دا درود ووايي د هغه لپاره زما شفاعت واجب دی. (حاشيه دلايل، زاد السعيد)

اللهم صل علی محمد عبدک و رسولک النبی الامی و علی آل محمد اللهم صل علی محمد و علی آل محمد تکون لک رضی وله جزاء و لحقه اداء و اعطه الوسيلة والفضيلة و المقام المحمود الذی وعدته واجزه عنا ما هو اهله و اجزه

افضل ما جازیت نبیا عن قومه و رسوله عن امته و صل علی جمیع اخوانه من النبیین و الصالحین یا ارحم الراحمین.

اې الله! ستا پر بنده او نبي و امي رسول او د محمد پر کورنۍ رحمت وکړه، اې الله! پر محمد او کورنۍ يې داسي رحمت وکړه چي ستا رضا، د ده جزا او د حق يې ادا وي، ده ته وسيله، فضيلت او هغه محمود مقام ورکړه چي تا يې وعده ورسره کړې ده. زموږ له خوا داسي بدله ورکړه چي دی يې اهل وي، ده ته داسي غوره جزا ورکړه چي تا يو نبي ته د هغوی د قوم او يو رسول ته د هغوی د امت له خوا ورکړې وي. د ده پر ټولو ورونو نبيانو او نېکانو رحمت وکړه، اې ارحم الراحمينه!.

له عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: جبريل زما د لاس پر ګوتو په شمېرلو د درود دا کلمې را وښودلې او ويې ويل: د الله له خوا همداسي نازلې شوې دي:

اللهم صل علی محمد و علی آل محمد کما صلیت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید. اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید. اللهم ترحم علی محمد و علی آل محمد کما ترحمت و علی ابراهیم انک حمید مجید. اللهم تحنن علی محمد و علی آل محمد کما تحننت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید. اللهم سلم علی محمد و علی آل محمد کما سلمت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید.

اې الله! پر محمد او کورنۍ يې درود نازل کړه، لکه تا چې پر ابراهيم او کورنۍ يې درود نازل کړی دی، بې شکه ته ستايلی لوی يې، اې الله! پر محمد او کورنۍ يې داسي برکت نازل کړه لکه تا چې پر ابراهيم او د هغه پر کورنۍ نازل کړی وو، بې شکه ته ستايلی، لوی يې، اې الله! پر محمد او کورنۍ يې داسي مهرباني وکړه لکه پر ابراهيم او کورنۍ چې دې يې کړې وه، اې الله! پر محمد او کورنۍ يې داسي سلامتي نازله کړه لکه تا چې پر ابرهيم او کورنۍ يې نازله کړې وه بې شکه ته ستايلی لوی يې. (معارف الحديث)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: که تاسو کله پر ما درود وایاست نو دا ډول يې وایاست:

اللهم صل علی محمد النبی الامی و علی آل محمد کما صليت علی ابراهيم و بارک علی محمد ن النبی الامی و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهيم و علی آل ابراهيم انک حميد مجيد. (مسند احمد صحيح ابن حبان، معارف الحديث)

له ابو حميد ساعدي ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ ته وويل شول چې موږ څرنګه پر تا درود ووايو؟. ده وويل: داسي:

اللهم صل علی محمد و ازواجه وذريته کما صليت علی ابراهيم و بارک علی محمد وازواجه و ذريته کما بارکت علی ابراهيم انک حميد مجيد.

اې الله! پر محمد، د ده پر پاکو مېرمنو او د ده پر نسل داسي پېرزوينه او مهرباني وکړه لکه د ابراهيم پر کورنۍ چې دې کړې وو، پر محمد، د هغه پر پاکو مېرمنو او نسل يې داسي برکتونه نازل کړه لکه د ابراهيم پر کورنۍ چې

دي نازل کړي وو، اې الله! ته د هرې ستاينې او صفت لايق يې او ټوله لويي او لوړتيا ستا ده. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

له زيد بن خارجه انصاري ﷺ څخه روايت دی چې ما رسول اللهﷺ ته وويل: پر تا بايد درود څه ډول وويل شي؟. ده وويل: پر ما له ښه پاملرنې او زړه له تله دا درود واياست:

اللهم صل على محمد و على آل محمد و بارک على محمد و على آل محمد كما باركت على ابراهيم و على آل ابراهيم انک حميد مجيد.

اې الله! پر محمد او کورنۍ يې خپل خاص رحمت نازل کړه او پر ده داسي برکت وکړه لکه پر ابراهيم او کورنۍ چې دې يې کړی وو، ته د هر حمد او صفت لايق يې، لويي او لوړتيا ستا صفت دی.

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وويل: که څوک پر ما دا درود ووايي:

اللهم صل على محمد و على آل محمد كما صليت على ابراهيم و على آل ابراهيم وبارک على محمد و على آل محمد كما باركت على ابراهيم و على آل ابراهيم و ترحم على محمد و على آل محمد كما ترحمت على ابراهيم و على آل ابراهيم.

اې الله! پر محمد او کورنۍ يې داسي درود نازل کړه لکه تا چې پر ابراهيم او کورنۍ يې نازل کړی وو، پر محمد او کورنۍ يې داسي برکت نازل کړه لکه تا چې پر ابراهيم او کورنۍ يې نازل کړی وو، پر محمد او

کورنۍ یې داسې رحمت نازل کړه لکه تا چې پر ابراهیم او کورنۍ یې نازل کړې وو.

نو زه به د قیامت په ورځ د هغه لپاره شاهدي ورکړم او شفاعت به یې وکړم. (تهذیب الاثار للطبري معارف الحدیث)

## استغفار

ابو هریره ؓ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: قسم په الله! زه په ورځ کې اویا ځله الله ته توبه باسم او استغفار غواړم. (بخاري، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی چې موږ به د رسول الله ﷺ په یوه ناسته کې سل ځله د الله حضور ته دا دعا وړاندې کوله: رب اغفر لی وتب علی انک انت التواب الرحیم. (معارف الحدیث، مسند احمد، جامع ترمذي، سنن ابی داود، ابن ماجه)

انس ؓ وایي: رسول الله ﷺ ویلي چې هر سړی غلطي کوي او غوره غلطي کوونکی هغه دی چې تر خطا وروسته د اخلاص توبه وباسي او الله ته رجوع وکړي. (معارف الحدیث، جامع ترمذي، ابن ماجه، سنن الدارمي)

ابو بکر صدیق ؓ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: څوک چې له ګناه توبه وباسي (په زړه کې په اخلاص سره له الله معافي وغواړي) او بیا په ورځ کې اویا ځله هماغه ګناه وکړي نو د الله په نزد پر ګناه له دوام کوونکو څخه نه دی. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له زید ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: څوک چې په دې الفاظو الله ته توبه وباسي او استغفار وغواړي نو حتما به وبخښل شي که څه هم د جنګ له

ګړه د تېښتي ګناه يې کړې وي، هغه الفاظ دادي: استغفر الله الذی لا اله الا هو الحی القيوم و اتوب اليه. (معارف الحديث، جامع ترمذي، ابوداود)

## د استغفار بركات:-

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: کوم بنده چي تل له الله مغفرت غواړي الله به يې له تنګۍ او مشکلاتو د وتلو لار اسانه کړي، هر غم او اندېښنه به يې لرې کړي، پراختيا او اطمنان به ورکړي، له هغې لارې به روزي ورکړي چي د ده وهم او ګومان به نه وي.

(مسند احمد، سنن ابی داود، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

## بيا - بيا ګناه او بيا - بيا استغفار:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د الله يوه بنده ګناه وکړه بيا يې الله ته وويل: اې زما څښتنه! له ما ګناه شوې ومي بخښه. الله وويل: ايا زما بنده پوهېږي چي دی پر ګناه د سزا ورکولو او معافولو مالک لري؟. ما د خپل بنده ګناه وبخښله او معاف مي کړه، تر دې وروسته چي څومره د الله خوښه وه هغه ګناه نه کوله. يو وخت يې بيا ګناه وکړه نو الله ته يې وويل چي اې زما مالکه! له ما ګناه شوې ومي بخښه او معافي راته وکړه نو الله بيا وويل: ايا زما بنده پوهېږي چي مالک يې ګناه هم بخښي او هم سزا ورکوي؟ د خپل بنده ګناه مي وبخښله، تر دې وروسته چي د الله خوښه وه هغومره موده دې بنده ګناه نه کوله او يو وخت يې بيا ګناه وکړه، بيا يې الله ته زارۍ وکړې چي اې زما مالک او مولا! له ما ګناه شوې ته مي وبخښه او تر ګناه را تېر شه. الله بيا وويل چي زما بنده يقين لري چي د ده

مولا هم گناه بخښلای شي او هم سزا ورکوي، ما خپل بنده بخښلی دی او س چي دی څه غواړي ودي کړي. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## د مړو لپاره تر ټولو غوره تحفه (استغفار): —

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: په قبر کي د پرتو مړيو مثال د هغه چا په څېر دی چي په درياب کي ډوب وي او د مرستي ناري وهي، دوی بې چاره ګان سترګي پر لار دي چي د مورو پلار، ورور، خور او يا دوست و انډيوال له لوري به د رحمت او مغفرت تحفه ور ورسېږي، کله چي د چا له خوا د دعا تحفه ور ورسېږي نو تر دنيا او مافيها ډېره ورته محبوبه وي او په قبر کي پرتو مړو ته د دعاوو له امله دومره لوی ثواب ورکول کېږي چي له غرونو سره تشبيه کېدای شي او د مړيو لپاره د ژونديو خاصه ډالۍ هغوی ته د مغفرت دعا ده.

(شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د الله له خوا په جنت کي يو دم د يوه نېک سړي درجه پورته کېږي نو هغه پوښتي چي اې ربه! زما دا مرتبه او درجه له څه وجې او له کومې وجې پورته شوه؟. نو ځواب ورکول کېږي چي ستا لپاره ستا د فلاني اولاد د مغفرت غوښتلو له وجې.

(مسند احمد، معارف الحديث)

په ابوداود کي روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: کوم بنده چي عامو مومنانو، نارينه وو او ښځو ته پنځه ويشت يا اووه ويشت ځله د عفوې او مغفرت دعا غواړي هغه به د الله مقبول بنده شي، دعاوې به يې قبلېږي او له بر کته يې نړۍ والو ته رزق ورکول کېږي.

اللهم اغفر للمؤمنين والمؤمنات و المسلمين و المسلمات الاحياء منهم و الاموات.

اې الله! ټول مومنان نارينه او ښځې او ټول مسلمانان نارينه او ښځې وبخښه، مړه وي او که ژوندي. (حصن حصين)

**سيد الاستغفار:-**

له شداد بن اوس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: دا دعا سيد الاستغفار ده: اللهم انت ربي لا اله الا انت خلقتني و انا عبدک و انا علی عهدک و وعدک ما استطعت اعوذ بک من شر ما صنعت و ابوأ لک بنعمتک علی و ابوأ بذنبي فاغفر لي فانه لا يغفر الذنوب الا انت. اې الله! ته زما رب يې، له تا پرته هيڅ معبود نه شته، تا پيدا کړی يم، زه ستا بنده يم، تر خپله وسه ستا پر وعده او ژمنه ولاړ يم، ما چې کومه ګناه کړې له شره يې ستا پناه غواړم، ستا نعمتونه منم، د خپلو ګناهونو اقرار کوم، ما وبخښه، ځکه له تا پرته بل د ګناهونو بخښونکی نه شته.

رسول الله ﷺ ويلي: کوم بنده چې په اخلاص او د زړه له تله د ورځې په يوه برخه کې دا دعا ووايي او په هماغه ورځ د شپې تر پيلېدو وړاندې مړ شي نو حتما به جنت ته ځي او همدا راز که چا د شپې په يوه برخه کې دا دعا وويله او تر سهار وړاندې په هماغه شپه کې مړ شو نو ضرور به جنت ته ځي. (بخاري، معارف الحديث)

تشریح:-

د دې استغفار د بې جوړې فضیلت ظاهري راز دا دی چي په هر لفظ کي يې د بندګۍ روح پروت دی.

## د استغفار لمونځ:-

له علي ؓ څخه روایت دی چي ما ته ابو بکر صدیق ؓ وویل: له رسول الله ﷺ مي واورېدل ویل یې: که له چا ګناه وشي او دی پورته شي اودس وکړي او بیا لمونځ وکړي، له الله مغفرت او بخښنه وغواړي الله یې بخښي او بیا یې د قرآن دا ایت تلاوت کړ:

وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ الخ... (معارف الحدیث، جامع ترمذي)

# استعاذه (پناه غوښتل)

## د پناه غوښتلو ځیني دعاوې:-

په دې نړۍ کي د دنیا او اخرت داسي هیڅ شر، فساد، فتنه، بلا او افت نه شته چي رسول الله ﷺ دي له الله پناه نه وي غوښتې او امت ته دي يې سپارښتنه نه وي کړې. لاندي په دې اړه ځیني دعاوې نقلوو او ځیني یې په تېرو مضامینو کي نقل شوې دي.

له شکل بن حمید ؓ څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله! ما ته د پناه غوښتنې یوه دعا را وښیه چي زه یې په وسیله له الله د ساتنې پناه وغواړم، ده زما لاس په لاس کي ونیو او ویې ویل: اللهم انی اعوذبک من شر سمعی و من شر بصري و من شر لساني و من شر قلبي و من

شرمنۍ. اې الله! زه د خپلو غوږونو، سترګو، ژبې، زړه او د شهوت له شره ستا پناه غواړم. (سنن ابی داود، جامع ترمذي، نسايي، معارف الحديث)

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به دا دعا کوله:

اللهم انی اعوذبک من الکسل و الهرم والمغرم و المأثم اللهم انی اعوذبک من عذاب النار و فتنة النار و فتنة القبر و عذاب القبر و من شر فتنة الغنی و من شر فتنة الفقر و من شر فتنة المسيح الدجال اللهم اغسل خطايای بماء الثلج و البرد ونق قلبی کما ينق الثوب الابيض من الدنس و باعد بينی و بين خطايای کما باعدت بين المشرق و المغرب.

اې الله! زه له لټې، بوډاتوب، د قرض له بوج او ګناه څخه ستا پناه غواړم، اې الله! زه اور له عذابه، د اور له فتنې، د قبر له فتنې، د قبر له عذابه، د غنا د فتنې له شره، د فقر د فتنې له شره او د مسيح دجال د فتنې له شره ستا پناه غواړم. اې الله! زما تېروتنې د واورې او ږلۍ په اوبو ومينځه، زړه مي داسي پاک کړه لکه سپينه جامه چي له خيرو پاکېږي او ما و تېرتنې دومره سره لرې کړه لکه ختيځ او لوېديځ چي دي سره لرې کړي دي.

(بخاري و مسلم، معارف الحديث)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په دعا وو کي دا دعا هم وه:

اللهم انی اعوذبک من زوال نعمتک و تحول عافيتک و فجئة نقمتک و جميع سخطک. (مسلم، معارف الحديث)

# جمعه

له طارق بن شهاب ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په جماعت د جمعې لمونځ پر هر مسلمان واجب دی. له دې څخه څلور کسان مستثنا دي:

۱) مریض. ۲) ښځه. ۳) نابالغ هلک. ۴) ناروغ

(سنن ابی داود، معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ ویلي: خلګو ته په کار ده چي هیڅکله د جمعې لمونځ پرې نه ږدي که نه الله به یې د دې ګناه په سزا کي پر زړونو ټاپه ولګوي او بیا به له غافلانو څخه شي. (مسلم)

## د جمعې د لمانځه ارزښت او اداب:-

له سلمان فارسي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي د جمعې په ورځ غسل وکړي او تر خپله وسه صفایي او پاکوالي ته پام وکړي، په کور کي چي یې کومه خوشبویي او تېل وي هغه ولګوي (په یوه حدیث کي دي چي د مسواک وهل اړین دي) (ابن ماجه) د لمانځه لپاره له کوره ووزي او مسجد ته په رسېدو دا احتیاط وکړي چي کوم کسان له وړاندي ناست وي د هغو تر منځ تېر نه شي، ده ته چي په تقدیر کي څومره سنن او نوافل لیکل شوي وي هغه وکړي، امام خطبهووایي، دی یې په توجو او خاموشي واوري نو الله به یې د دې او راتلونکې جمعې تر منځ ټول ګناهونه ور وبخښي. (ابن ماجه، معارف الحدیث، بخاري)

له ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي د جمعې په ورځ سورت الکهف ووایي، د هغه لپاره به د دوو جمعو تر منځ ځلانده نور وي. (نسایي)

رسول الله ﷺ ویلي: د جمعې په ورځ کي یوه داسي شېبه شته چي که کوم مسلمان پکي له الله دعا وغواړي نو ضرور قبلېږي. په یوه روایت کي دي چي هغه شېبه د خطبې ویلو له وخته د لمانځه تر ختمېدو پوري دی. په یوه بل روایت کي دي چي دا ساعت د ورځې په اخیر کي له مازیګره تر ماښامه دی. (بخاري، بهشتي ګوهر)

رسول الله ﷺ ویلي: د جمعې په ورځ پر ما ډېر درود وایاست ځکه په دې ورځ فرشتې حاضرېږي او هغه درود ما ته رسوي. (ابن ماجه)

## د جمعې په ورځ مرګ:-

د جمعې په ورځ او شپه د مرګ په فضیلت کي ګڼ احادیث او روایات راغلي چي مړی به د قبر له عذاب څخه خوندي وي. رسول الله ﷺ ویلي دي: ما من مسلم یموت یوم الجمعة او لیلة الجمعة الا وقاه الله فتنة القبر. (مدارج النبوة)

یعنی هر مسلمان چي د جمعې په ورځ یا شپه مړ شي نو الله به یې د قبر له عذابه وساتي.

## د جمعې لپاره ښې جامې اغوستل:-

له عبدالله بن سلام ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که په تاسو کي څوک وس لري نو په دې کي هیڅ بدي نه شته چي د ورځني کار

لپاره پر اغوستل کېدونکو جامو برسېره د جمعې لپاره يوه ځانګړې جوړه چمتو کړي. (سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

## د جمعې په ورځ بريتونه جوړول او نوکان غوڅول:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به د جمعې لمانځه ته ترتلو وړاندې خپل نوکان غوڅول او بريتونه يې جوړول.

(مسند بزار، معجم اوسط، معارف الحديث)

## د جمعې په ورځ نبوي جامه:-

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د جمعې ځانګړې جامه درلوده کله چې به د جمعې له لمانځه خلاص شو موږ به ورته ساتله او په راتلونکې جمعه به يې اغوستله (دا حديث ضعيف دی.)

(طبراني، معجم صغير و اوسط)

د سفر السعادة ليکوال ليکي چې د رسول الله ﷺ عادي جامې څادر، دسمال او تورتو کړوو، مګر په مشکوة کې د مسلم په حواله له عمر بن حرس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ په داسې حال کې خطبه وويله چې پر سر يې توره لنګوټه وه او شمله يې د دواړو اوږو تر منځ را ځړېدله.

(مدارج النبوة)

## د جمعې په ورځ لومړی مسجد ته د تلو فضيلت:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: کله چې د جمعې ورځ را ورسېږي نو فرښتې د مسجد پر دروازه ولاړې وي او په پيل کې د راتلونکو کسانو نومونه يو په بل پسې ليکي، د غرمې په لومړي وخت

کي د راتلونکي مثال د هغه چا په څېر دی چي د الله حضور ته د اوښ قرباني وړاندي کړي، د دويم راتلونکي مثال د هغه چا په څېر دی چي غويی قرباني کړي، وروسته د راتلونکي مثال د هغه چا په څېر دی چي پسه قرباني کړي، کله چي امام د خطبې لپاره منبر ته ځي نو فرښتې خپل کتاب تړلوي او د خطبې په اورېدو کي ونډه اخلي.
(صحيح البخاري، صحيح مسلم، معارف الحديث)

## د جمعې تر لمانځه وروسته سنت:-

له علي او عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي دوی تر جمعې وروسته شپږ رکعتونه کول. (جامع ترمذي)

## د جمعې د لمانځه او خطبې په اړه د رسول الله ﷺ عمل:-

له جابر بن سمره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به دوې خطبې ويلې او د دواړو تر منځ به يې لنډه ناسته کوله. (بخاري، مسلم)

خو په دې منځ کي يې خبرې نه کولې. (ابوداود)

رسول الله ﷺ په خپلو خطبو کي قرآني اياتونه هم ويل او خلکو ته يې نصيحت هم کاوه، لمونځ او خطبه به يې يو ډول وو (يعني ډېرې نه اوږدول.) (معارف الحديث)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د جمعې په ورځ د سهار د لمانځه په لومړي رکعت کي الم تنزيل او په دويم رکعت کي هل اتی علی الانسان سورتونه ويل.
(بخاري، مسلم، معارف الحديث، بهشتي ګوهر)

رسول الله ﷺ د جمعې په لمانځه کي سورت الجمعه، سورت المنافقون، سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حدیث الغاشیه ویل. (بهشتي ګوهر)

یو صحابي وایي چي ډېر وختونه به یې په خطبه کي سورت ق وایه او ځیني وختونه به یې سورت العصر، لا یستوی اصحاب النار و اصحاب الجنة هم الفائزون او کله - کله نادوا یا مالک لیقضی علینا ربک قال انکم ما کثون ویل، د رسول الله ﷺ خطبه به لنډه او لمونځ به یې اوږد وو. الله به یې ډېر یاداوه، هر اړخیزې خبرې یې کولې او ویل یې: د یو چا اوږد لمونځ او لنډه خطبه د هغه د پوهي علامه ده. (مسلم، مشکوة)

او په خپلو خطبو کي به یې تر ډېره صحابه کرامو ته د اسلام اصول او شریعت ور ښودل. (زاد المعاد)

په خطبه کي به یې د الهي ذکر پر مهال د شهادت په ګوته اشاره کوله او که به وچکالي وه نو د باران لپاره به یې دعا غوښته. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به د جمعې خطبه تر هغو ځنډوله چي خلک به را غونډېدل، وروسته به یې له څه شان او شوکت پرته راغی، نه به یې مخ ته اوازونه وو او نه به له شا څوک ورپسې وو. یو ډول شین څادر به یې اغوستی وو، مسجد ته په راتلو به یې لومړی صحابه وو ته سلام کاوه، کله چي به منبر ته پورته شو مخ به یې خلګو ته کړ، کښیناست به او بلال به اذان پیلاوه. کله چي به هغه له اذانه خلاص شو نو رسول الله ﷺ به ودرېد، د اذان او خطبې تر منځ له څه ځنډ او کوم کار کولو پرته به یې خطبه پیلوله. تر لږ خطبې وروسته به یو څو شیبې کښېناست، بیا به ولاړ شو او دریمه خطبه به یې ورکړه. له خطبې تر خلاصېدو وروسته به بلال اذان کاوه او د خطبې پر مهال به یې خلګو ته د

را نژدې کېدو او خاموش کېدو امر کاوه ویل به یې چې که چا خپل ملګري ته وویل چې چوپ شه نو هم یې بې ځایه حرکت وکړ. رسول اللهﷺ پر ځمکه درېدلی او خطبه یې ورکړې ده، تر کومه وخته چې منبر نه وو جوړ نو پر لکړه یا کمان یې تکیه کوله او کله - کله به یې د لرګي پر هغه ستن تکیه کوله چې له منبر سره وه. په کوم ځای کې چې رسول اللهﷺ خطبه ورکوله او تکیه یې کوله د منبر تر جوړېدو وروسته ترې په یوه شي تکیه نه ده نقل شوې. (زاد المعاد)

د خطبې پر وخت به یې سترګې سرې شوې، اواز به یې لوړ او جلال به یې زیات شو داسي لکه خلګ چې به یې سهار یا ماښام له راتلونکي لښکره وېرول او ویل یې چې زه او قیامت د دې دوو ګوتو په څېر یو او ویل به یې: اما بعد، تر ټولو غوره کلام د الله کتاب دی او غوره تحفه د محمد سنت دی، تر ټولو بد کار په دین کې د نوي شي (بدعت) پیدا کول دي او هر بدعت ګمراهي ده. رسول اللهﷺ به هره خطبه د الله په حمد پیلوله.

**د جمعې خطبه:-**

په پیل کې به یې د الله تر حمد او ثنا وروسته وویل:

اما بعد فان خیر الحدیث کتاب الله و خیر الهدی هدی محمدﷺ و شر الامور محدثاتها و کل بدعة ضلالة، انا اولی بکل مؤمن من نفسه من ترک مالا فلاهله و من ترک دینا او ضیاعا فعلی.

تر حمد او صلوة وروسته تر ټولو کلامونو غوره کلام د الله دی او تر ټولو طریقو غوره طریقه د محمد ده، تر ټولو بد شی بدعت دی او هر بدعت

گمراهي ده. زه هر مومن ته د هغه تر ځان هم نژدې يم، که څوک مال پرېږدي نو د ده د قريبانو دی او که قرض يا اهل و عيال پرېږدي نو ذمه يې پر ما ده.

کله به يې دا خطبه ويله:

يا ايها الناس توبوا قبل ان تموتوا و بادروا باعمال الصالحات قبل ان تشغلوا و صلوا الذی بينکم و بين ربکم بکثرة ذکرکم له و کثرة الصدقة بالسر و العلانية توجروا و تحمدوا و ترزقوا و اعلموا ان الله قد فرض عليکم الجمعة مکتوبة. فی مقامی هذا فی شهری هذا فی عامی هذا الی يوم القيامة من وجد اليه سبيلا فمن ترکها في حياتي او بعدی حجودا بها واستخفافا بها و له امام جائر او عادل فلا جمع الله شمله و لا بارک له فی امره الا و لا صلوة له الا و لا صوم له. الا و لا زکوة له. الا و لا حج له. الا و لا بر له. حتی يتوب فان تاب الله عليه الا و لا تؤمن امرأة رجلا الا و لا يؤمن اعرابی مهاجر. الا و لا يؤمن فاجر مومنا الا ان يقهره سلطان يخاف سيفه و سوطه. (ابن ماجه)

اې خلکو! د مرګ تر راتلو وړاندې توبه وباسئ، په نېکی کې بيړه وکړئ او ستاسو و رب تر منځ وعده د هغه په ډېر ذکر او صدقه پوره کړئ چې په ظاهر و باطن کې به يې ثواب ومومئ، د الله په نزد به مو ستاينه وشي او رزق به پيدا کړئ، پوه شئ چې الله د جمعې لمونځ درباندې فرض کړی، زما په دې ځای، دې ښار او په دې کال کې يې چې تر قيامته د امکان په شرط يو څوک پرېږدي زما په ژوند او يا زما تر مرګ وروسته يې له فضيلت څخه انکار وکړي او يا متساهل شي په دې شرط چې ظالم يا عادل پاچا ولري نو

الله دي يې نه غمونه لرې کوي او نه دي په کار کې برکت اچوي، خبردار! نه دي يې لمونځ قبلېږي، نه روژه، نه زکات، نه حج او نه کوم نېک کار تر هغو چې توبه باسي، نو الله به يې توبه قبلوي. خبردار! نه دي ښځه د نارينه وو امامت کوي، نه کوچي يعني جاهل د کوم مهاجر يعني د عالم او نه کوم فاسق د صالح، مګر که پاچا په زور داسي په وکړي او د هغه له توري و درو وېرېږي.

او ځيني وختونه به يې دا خطبه ويله:

الحمد لله نحمده و نستغفره و نعوذ بالله من شرور انفسنا و من سيئات اعمالنا من يهده الله فلا مضل له و من يضلله فلا هادي له و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله. ارسله بالحق بشيرا و نذيرا بين يدی الساعة من يطع الله و رسوله. فقد رشد وهتدی و من يعصهما فانه لا يضر الا نفسه و لا يضر الله شيئا.

د الله شکر دی چي موږ يې ستاينه کوو، له ده د ګناهونو بخښنه غواړو او د خپلو ځانونو د شر و بدو اعمالو پناه تري غواړو، چا ته چي الله هدايت وکړ هيڅوک يې ګمراه کولای نه شي او څوک چي ګمراه کړي هيڅوک يې هدايت کولای نه شي. زه شاهدي ورکوم چي له الله پرته هيڅ معبود نه شته، دی يو دي، هيڅ شريک نه لري او شاهدي ورکوم چي محمد د ده بنده او رسول دی. الله قيامت ته نژدې له حق سره زېری ورکوونکی او ډاروونکی رالېږلی دی، که څوک د رسول تابعداري وکړي هدايت به ومومي او څوک چي نافرماني وکړي ځان به تاواني کړي، الله ته هيڅ زيان نه شي رسولای. (ابوداود، بهشتي ګوهر)

## د جمعې د خطبې مسایل: –

په خطبه کې دوولس شیان سنت دي:

۱) د خطبې پر مهال باید خطیب ولاړ وي.

۲) دوې خطبې ویل.

۳) د دوو خطبو تر منځ دومره څنډ کښېنستل چې درې ځله سبحان الله
پکې وویل شي.

۴) له هر ډول ناپاکۍ ځان پاکول.

۵) د خطبې پر مهال خلګو ته مخ کول.

۶) د خطبې تر پیل وړاندې په خپل زړه کې اعوذ بالله من الشیطان
الرجیم ویل.

۷) په داسې اواز خطبه ویل چې خلک یې واوري.

۸) په خطبه کې د اته قسمه مضامینو بیانول:

۱) د الله شکر او د هغه ستاینه. ۲) الهي توحید. ۳) د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي. ۴) پر رسول الله ﷺ درود. ۵) وعظ او نصیحت. ۶) د قرآن کریم د ایاتونو او یا یوه سورت ویل. ۷) په دویمه خطبه کې بیا د همدې شیانو تکرار. ۸) په دویمه خطبه کې د وعظ او نصیحت پر ځای د مسلمانانو لپاره دعا.

۹) تر لمانځه د خطبې نه اوږدول. ۱۰) پر منبر خطبه ویل او که منبر نه وي نو د لکړې او یا بل شي په مرسته دریدل (که منبر موجود وي نو پر لکړه یا بل شي تکیه کول او لاس پر لاس ایښودل لکه زموږ د زمانې ځیني خلګ چې یې کوي ثبوت نه لري.)

۱۱) په عربي ژبه د دواړو خطبو ویل او په بله ژبه خطبه یا ورسره د بلې ژبې اشعار یو ځای کول لکه زموږ د زمانې ځینې عوام چې یې کوي د سنت خلاف او مکروه تحریمي دي۔

۱۲) په دویمه خطبه کې د رسول اللهﷺ د آل، اصحابو، مېرمنو، په ځانګړې ډول د خلفاء راشدینو، حمزه او عباس رضي الله عنهما لپاره دعا مستحب ده.

(بهشتي ګوهر)

## مسجد او له هغه سره تړلي شیان

### سنن هدی :-

له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چې ویې ویل: اې مسلمانانو! الله ستاسو د نبي لپاره سنن هدی ټاکلي دي (د داسې اعمالو حکم یې ورکړی چې د الهي قرب مقام او رضا ته رسوونکي دي)، پنځه وخته په مسجد کې د جماعت لمونځ له هماغو څخه دی او که تاسو په خپلو کورونو کې لمونځ پیل کړئ لکه دغه یو چې له جماعت څخه جلا په خپل کور کې لمونځ کوي (دا په هغه وخت کې یوه خاص شخص ته اشاره وه) نو د رسول اللهﷺ طریقه به پرېږدي او کله چې د خپل رسول طریقه خوشې کړئ نو یوه شئ چې د هدایت له لارې به واوړئ او د ګمراهۍ کندې ته به ننوزئ.

(مسلم، معارف الحدیث)

### د مسجد فضیلت :-

له ابو امامه رضي الله عنه څخه روایت دی چې یوه یهودي عالم له رسول اللهﷺ څخه وپوښتل: ووایه چې تر ټولو غوره ځای کوم دی؟. دی په دې وینا چوپ

شو چي زه د جبریل تر راتلو خاموش پاتې یم، وروسته هغه راغی ده ترې پوښتنه وکړه. هغه وویل: د کوم څه په اړه چي پوښتنه کوې زه یې هم په اړه تر تا ډېر معلومات نه لرم خو ته ودرېږه زه خپل رب ته ورځم او پوښتنه کوم. وروسته یې وویل: اې محمده! نن الله ته دومره ور لنډ شوم چي هیڅکله نه وم ور لنډ شوی، ده پوښتنه وکړه: اې جبریله! څومره ور نږدې شوې؟. ده وویل: زما او د هغه تر منځ د نور اویا زره حجابونه وو (له همدې حجابونو ها خوا یې وویل) تر ټولو بد ځایونه بازارونه او تر ټولو غوره ځای مسجدونه دي. (ابن حبان، ترجمان السنة)

**ښکلي مسجد:-**

عبدالله بن عباس رضي الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ وویل: ما ته الله د لوړو او ښکلو مسجدونو امر نه دی کړی، د دې حدیث تر بیانولو وروسته عبدالله بن عباس رضي الله عنه (د وړاندوینې په توګه) وویل: بې شکه تاسو به مسجدونه داسې ښکلي او ښایسته کوئ لکه یهودو او نصاراوو چي خپل عبادت ځایونه ښکلي کړي دي. (سنن ابی داود)

په سنن ابن ماجه کي له عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اراکم ستشوفون مساجد کم بعدی کما شوفت الیهود کنایسهم وکما شوفت النصاری بِیعها. (کنزل العمال، ابن ماجه، معارف الحدیث)

یعني زه وینم چي تاسو به یو وخت خپل مسجدونه داسې ښکلي کوئ لکه یهود چي خپلې کنیسې او نصارا خپلې کلیساوې ښکلې کوي.

# د مسجد اداب

## مسجد جوړول:-

له عثمان ﷜ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د الله د رضا لپاره مسجد جوړ کړي، الله به په جنت کې د هغه لپاره همداسې کور جوړ کړي. (بخاري، مسلم)

فایده:-

په دې حدیث کې د نیت پر سموالي ټینګار شوی دی او که د نوي مسجد پر ځای زوړ مسجد ورغوي نو د هغه ثواب هم ترې ښکاري ځکه عثمان ﷜ د نبوي مسجد رغولو پر مهال دا حدیث بیان کړ او په نورو احادیثو کې یې هم ثبوت موندل کېږي. (حیات المسلمین)

## د مسجد صفایي:-

له ابو سعید خدري ﷜ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک له مسجد څخه د تکلیف شی لرې کړي نو د هغه لپاره به الله په جنت کې یو کور جوړ کړي. (ابن ماجه، حیات المسلمین)

## مسجد ته د تلو ثواب:-

له عبدالله بن عمر ﷜ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د جماعت لپاره مسجد ته روان شي نو پر هر قدم یې یوه ګناه له منځه ځي، پر هر قدم یوه نېکي ورته لیکل کېږي هم په تګ او هم په راتګ کې.

(احمد، طبراني، ابن حبان، حیات المسلمین)

له انس بن مالک ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په خپل کور کي د یوه سړي لمونځ له یوه لمانځه سره برابر دی، د قبیلي یا محلي په مسجد کي له پنځه ویشتو لمنځونو او په هغه ځای کي چي د جمعې لمونځ کېږي له سلو لمنځونو سره برابر دی، زما په مسجد کي له زرو لمنځونو سره او په مسجد حرام کي له یو لک لمنځونو سره برابر دی. (ابن ماجه، مشکوة)

**مسجد ته د وړو ماشومانو له راوستلو او شور وځوږ څخه منعه:-**

له واثله بن الاسقع ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ماشومان او لېونیان له مسجدونو لرې ساتئ، په مسجد کي سوداوې مه کوئ او په مسجدونو کي له خپل منځي شخړو، کیسو، شور او ځوږ، د حدودو له قیام او د تورو له ایستلو ځانونه وساتئ، دا هر څه د مسجد د تقدس او احترام خلاف دي. (سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

**مسجد ته د ورننوتلو ادب:-**

کله چي مسجد ته داخلېږي نو دباندي دي اول چپه پښه له پایزار څخه وباسي بیا راسته پښه، مسجد ته دي اول راسته قدم دننه کړي او بیا چپه او له مسجد څخه د راوتلو پر مهال دي لومړی چپ قدم راوباسي او بیا راسته، د پایزار په پښو کولو پر مهال دي اول راسته پایزار په پښو کړي او بیا چپه.

(بهشتي گوهر)

## د سهار لمانځه ته د تلو پر وخت دعا:-

له عبدالله بن عباس ؓ څخه روایت دی چي د سهار لمانځه ته د تلو پر مهال یې رسول الله ﷺ ولید دا دعا یې ویله:

اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِيْ قَلْبِيْ نُوْر، وَفِيْ لِسَانِيْ نُوْراً، وَفِيْ سَمْعِيْ نُوْراً، وَفِيْ بَصَرِيْ نُوْراً، وَمِنْ فَوْقِيْ نُوْراً، وَمِنْ تَحْتِيْ نُوْراً، وَعَنْ يَمِيْنِيْ نُوْراً وَعَنْ شِمَالِيْ نُوْراً، وَمِنْ أَمَامِيْ نُوْراً، وَمِنْ خَلْفِيْ نُوْراً، وَاجْعَلْ فِيْ نَفْسِيْ نُوْراً، وَأَعْظِمْ لِيْ نُوْراً، وَعَظِّمْ لِيْ نُوْراً، واجْعَلْ لِي نُوراً، وَاجْعَلْنِيْ نُوْراً، اللَّهُمَّ أَعْطِنِيْ نُوْراً، وَاجْعَلْ فِيْ عَصَبِيْ نُوْراً، وَفِيْ لَحْمِيْ نُوْراً، وَفِيْ دَمِيْ نُوْراً، وَفِيْ شَعْرِيْ نُوْراً وَفِيْ بَشَرِيْ نُوْراً.

اې الله! زما په زړه، سترګو، غوږونو، ښي اړخ، چپ لور، شا ته، مخته نور پیدا کړه. زما لپاره نور وټاکه، په اعصابو، غوښه، وینه، وېښتانو، پوست، ژبه او ځان کي مي نور پیدا کړه، زما نور لوی کړه، ما نور وګرزوه، اې الله! تر ما پورته او کښته نور پیدا کړه او اې الله! ما ته خاص نور را کړه.

مسجد ته د ننوتلو او را وتلو دعا:-

له ابو اسید ساعدي ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که کله په تاسو کي څوک مسجد ته ننوزي نو باید دا دعا ووایي: اللهم افتح لی ابواب رحمتک. یعني اې الله! ما ته د خپل رحمت دروازې خلاصي کړه.

په ځینو روایاتو کي دا زیاتونه هم ده چي اللهم اغفرلی ذنوبي.

(ابن ماجه)

مسجد ته تر ننوتلو وروسته دي دا دعا ووايي: اعوذ بالله العظيم و بوجه الكريم و سلطانه القديم من الشيطان الرجيم. (الترغيب)

او چي له مسجد څخه راوزي نو دا دعا دي وايي: اللهم انی اسئلک من فضلک. يعني اې الله! زه ستا فضل غواړم. (مسلم، معارف الحديث)

## د تحية الوضوء لمونځ :-

په حديث کي دي چي که څوک تر بشپړ اوداسه وروسته دوه رکعته نفل په داسي ډول وکړي چي ځان له ټولو خيالاتو خلاص کړي نو ټول (صغيره) ګناهونه يې بخښل کيږي. (ترمذي)

تر اوداسه وروسته دې دوو رکعتونو نفلو ته تحية الوضوء ويل کيږي، له مکروه وختونو پرته چي هر وخت اودس وکړي نو کوي دي.

## د تحية المسجد لمونځ :-

دا لمونځ د هغه چا لپاره سنت دی چي مسجد ته داخل شي، هدف يې د مسجد درناوی دی. دوه رکعته لمونځ دي وکړي خو په دې شرط چي مکروه وخت نه وي يعني ماپښين، مازيګر او ماخوستن دي وکړي.

(بخاري، موطا امام مالک، در مختار، بهشتي ګوهر)

رسول الله ﷺ ويلي چي کله په تاسو کي څوک مسجد ته داخل شي نو تر ناستې وړاندي دي دوه رکعته نفل وکړي.

(بخاري، مسلم، معارف الحديث)

او که مکروه وخت وي نو صرف څلور ځله دي دا کلمې ووايي: سبحان

الله، الحمد لله، لا الـه الا الله، الله اکبر. او بیا دي درود شریف ووایي. (بهشتي گوهر)

## په مسجد کي د تسبیحاتو ویل:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د جنت باغونو ته د ورتلو پر مهال یې مېوه خورئ، له ده پوښتنه وشوه چي اې د الله سوله! د جنت باغونه څه دي؟. ده وویل: مسجدونه. بیا پوښتنه وشوه چي اې د الله رسوله! مېوه یې څه ده؟. ده وویـل: سبحان الله، الحمد لله، لا الـه الا الله الله اکبر. (ترمذي، مشکوة)

عبدالله بن عمر ﷺ وایي چي کله به رسول الله ﷺ مسجد تـه ننووت نو دا دعـا یې ویلـه: اعـوذ بـالله العظیم و بوجهـه الکـریم و سـلطانه القـدیم مـن الشیطان الرجیم. زه په ستر الله، د هغه په مهربان ذات او لرغوني پاچاهي لـه مردود شیطان څخه پناه غواړم. (ابو داود، مشکوة)

## بې عذره له مسجد څخه وتل:-

له عثمان بن عفان ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویـل: کله چي یو څـوک په مسجد کي وي او اذان وشي، دی بیا هم له څه اړتیا پرته مسجد پرېږدي او په لمانځه کي د بیرته ګډون اراده هم نه لري نو هغه منافق دی. (ابن ماجه، معارف الحدیث)

## د بدبویه شي په خوړلو مسجد ته له راتګ څخه منعه:-

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک بد بویه شی وخـوري نو زموږ مسجد ته دي نه راځي ځکه دا هم انسانانـو ته تکلیف

دی او هم فرشتو ته. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## اذان او اقامت

### د اذان طریقه:-

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ خپل موذن بلال ته وویل چي کله اذان کوې نو ورو - ورو او کراریې کوه (پر هره کلمه ساه اخله او وقفه کوه) او کله چي اقامت کوې نو چټک یې کوه، د خپل اذان او اقامت تر منځ دومره جلا والی پرېږده چي څوک په خوراک څښاک مشغول وي هغه فارغ شي، څوک څاراګښت ته ضرورت ولري ځان فارغ کړي او تر هغو مه دریږئ چي ما ونه وینئ. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

په قبا مسجد کي د رسول الله ﷺ له تاکل شوي موذن سعد قرظ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ بلال ته وویل: د اذان پر مهال خپلې دواړې ګوتې په غوږو کي اچوه، په دې سره به دي اواز ډېر لوړ شي.
(معارف الحدیث، سنن ابن ماجه)

له ابو موسی اشعري ﷺ څخه روایت دی چي ما بلال ولید د ابطح له خوا را ووت اذان یې وکړ، کله چي حی علی الصلاح او حی علی الفلاح ته ورسېد نو خپله غاړه یې راسته او چپه لور ته وېچله او سینه یې نه ده ګرزولې. (بخاري، معارف الحدیث)

### د اذان او اقامت حق:-

له زیاد بن الحارث ﷺ څخه روایت دی چي یو ځل ما ته رسول الله ﷺ د سهار د لمانځه پر وخت د اذان امر وکړ، ما اذان وکړ کله چي د اقامت وخت را

ورسېد نو بلال غوښتل اقامت ووايي: رسول الله ﷺ ورته وويل چي چا اذان کړی هغه دي اقامت وکړي.

(جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

## د اذان ځواب او دعا:-

له عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وويل: کله چي موذن الله اکبر ووايي تاسو الله اکبر وایاست، بیا چي موذن اشهد ان لا اله الا الله ووايي ځواب ورکوونکی دي هم اشهد ان لا اله الا الله ووايي، کله چي موذن اشهد ان محمدا رسول الله ووايي نو ځواب ورکوونکی دي هم اشهد ان محمدا رسول الله ووايي. کله چي موذن حی علی الصلاة ووايي نو ځواب ورکوونکی دي لا حول و لا قوة الا بالله ووايي، کله چي موذن حی علی الفلاح ووايي نو ځواب ورکوونکی دي هم لا حول و لا قوة الا بالله ووايي، بیا چي موذن الله اکبر، الله اکبر ووايي ځواب ورکوونکی دي هم ووايي او کله چي موذن لا اله الا الله ووايي نو ځواب ورکوونکی دي هم ووايي. که یې دا وینا له زړه وي نو جنت ته به داخل شي. (مسلم)

یعني د موذن الفاظ باید تکرار شي، خو صرف د حی علی الصلاة او حی علی الفلاح په ځواب کي دي لا حول و لا قوة الا بالله وویل شي او د سهار په اذان کي دي د الصلاة خیر من النوم په ځواب کي صدقت و بررت وویل شي. په دې ځایونو کي دي د موذن الفاظ نه تکراروي بلکي یاد شوي الفاظ دي ووايي، د دواړو د یو ځای کولو نه روایت شته او نه صرف د حی علی الصلاة او حی علی الفلاح ویل منقول دي بلکي سنت داده چي پر دې مهال صرف لا حول و لا قوة الا بالله وویل شي. (زاد المعاد)

اقامت دي په پورتنيو الفاظو تکرار شي او د قد قامت الصلاة په ځواب کي دي اقامها الله و ادامها ووايي، د اذان په پای کي دي درود او بيا مسنوني دعاوې ووايي، وروسته دي ځان ته دعا وکړي او د الله فضل دي وغواړي دعا به يې قبوله شي. (زاد المعاد)

**تر اذان وروسته دعا:-**

له جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم څوک تر اذان وروسته دا دعا ووايي:

اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ، وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ، آتِ محمدا اَلْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَاماً مَحْمُوْداً الَّذِيْ وَعَدْتَهُ، [إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ].

اې الله! د دې کامل دعوت او د دې قايم لمانځه ربه! يعني اې الله چي د دې لپاره او د ده په حکم دا اذان او دا لمونځ را منځ ته شوي خپل رسول محمد ته وسيله او د فضيلت خاصه درجه ورکړه، هغه مقام محمود ورکړه چي تا يې ورسره وعده کړې ده، بې شکه ته د خپلې وعدې مخالفت نه کوې.

نو هغه بنده به د قيامت په ورځ زما د شفاعت حقدار وي.

(صحيح البخاري، معارف الحديث)

او ويې ويل: له الله څخه د دين او دنيا برې وغواړئ.

اللهم انی اسئلک رضواک و العفو و العافية في الدنيا والاخرة و في اهلی و مالی. (زاد المعاد)

اې الله! زه ستا رضا او بخښنه غواړم او په دنيا و اخرت، مال او کورنۍ کي سلامتي غواړم.

له سعد بن ابی وقاص ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د موذن تر اذان وروسته ووایي: اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله رضیت بالله ربا و بمحمد رسولا و بالاسلام دینا. (مسلم، معارف الحدیث)

یعني شاهدي ورکوم چي له الله پرته هیڅ معبود نه شته، دی یو دی، هیڅ شریک نه لري او شاهدي ورکوم چي محمد د ده بنده او رسول دی، زه د الله په ربوبیت، د محمد ﷺ په رسالت او د اسلام په دین راضي یم.

نو ګناهونه به يې وبخښل شي.

## په سفر کي اذان او اقامت:-

له مالک بن الحویرث ﷺ څخه روایت دی چي زه د خپل اکا له زوی سره رسول الله ﷺ ته ورغلم نو ده وویل: په سفر کي د لمانځه لپاره اذان او اقامت کوئ او په تاسو کي چي څوک مشر وي هغه دي امامت او لمونځ ورکړي.
(بخاري، معارف الحدیث)

## د اذان مسایل:-

۱) موذن باید په لوړ اواز اذان وکړي.
۲) اذان باید له مسجد څخه د باندي پر یوه لوړ ځای وي.
۳) اقامت باید په مسجد کي دننه وي.
مسجد کي دننه اذان مکروه تنزیهي دی (البته د جمعې دویم
په مسجد کي دننه منبر ته مخامخ روا دی.)
۵) د اذان پر مهال په ګوتو د غوږونو سوري بندول مستحب دي.

۶) د اذان الفاظ باید په ارامه وویل شي او اقامت ورو - ورو ویل سنت دی.

۷) د اذان او اقامت پر مهال قبلې ته مخ کول سنت دي.

۸) په اذان کي د حي علی الصلاة او حی علی الفلاح پر مهال راسته او چپه لور ته مخ اړول سنت دي، د لمانځه اذان وي او که د بل شي (مثلاً د ماشوم په غوږ کي اذان کول) خو سینه او پښې دي د قبلې له لوري نه پېچي.

۹) په ترتیب سره د اذان د الفاظو ویل ضروري دي.

۱۰) که له چا د اذان ځواب هېر شي او یا یې قصدا ورنه کړي او د اذان تر ختمېدو وروسته فکر ورسره پیدا شي او یا یې د ځواب اراده وکړي نو په داسي صورت کي که ډېر وخت نه وي شوی ځواب دي ورکړي که نه خوشي دي کړي.

۱۱) څوک چي اذان وکړي اقامت هم د هغه حق دی. (بهشتي ګوهر)

## جماعت

### کفارات او درجات: -

رسول الله ﷺ وویل: ما خپل رب په ډېر ښه شکل په خوب ولید، الله پوښتنه وکړه چي دا مقربې فرښتې د څه شي په اړه شخړه کوي؟. ما ورته وویل چي ته ښه پوهېږې او خپل لاس یې زما د دواړو اوږو تر منځ کېښود ما یې سړوالی په خپله سینه کي احساس کړ نو (له برکته یې) ما ته د ځمکې او اسمان ټول شیان معلوم شول. بیا یې وویل: اې محمده! اوس خو پوه شوې چي مقربې فرښتې پر څه شي بحث کوي؟. ما وویل: هو! د کفاراتو په اړه او

کفارات دادي: تر لمانځه وروسته په مسجد کي پاتېدل، د جماعت لمانځه ته تلل او په سختو وختونو (يخنۍ کي) پوره او دس کول نو چا چي داسي وکړل د هغه به ژوند هم ښه وي او مرګ هم، له ګناهونو به داسي پاک شي لکه د زېږېدو پر مهال چي بې ګناه وو. الله وويل: اې محمده! کله چي ته لمونځ وکړې نو دا دعا وايه: اللهم انی اسئلک فعل الخيرات و ترک المنکرات و حب المساکين فاذا اردت بعبادک فتنة فاقبضنی اليک غير مفتون. اې الله! زه له تا د ښو کارونو د کولو او ناوړه چارو د پرېښودو او له مسکينانو سره د مينې غوښتنه کوم کله چي خپلو بندګانو ته د فتنې اراده وکړې نو ما له فتنې پرته درواخله.

او وېې ويل: درجې د دې شيانو په سبب لوړېږي: يو بل ته سلام اچول، خوراک ورکول او د شپې په هغه وخت کي لمونځ کول چي خلک بيده وي.
(مشکوة)

**د جماعت ارزښت:-**

له عبدالله بن عباس ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک د جماعت د لمانځه لپاره د موذن اذان واوري، د اتباع په لار کي يې واقعي عذر خنډ نه وي او له دې سره - سره جماعت ته را نه شي نو الله به يې لمونځ قبول نه کړي، ځينو صحابه کرامو وويل: اې د الله رسوله! واقعي عذر څه شی کېدای شي؟. ده وويل: د ځان او مال وېره يا ناروغي.
(سنن ابی داود، سنن دار قطني، معارف الحديث)

## د جماعت پر نیت ثواب :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل : که څوک ښه سم اودس وکړي او بیا د جماعت په اراده مسجد ته روان شي ٔخو هلته په رسېدو وويني چي خلکو لمونځ کړی او جماعت تیر شوی دی نو الله به دې بنده ته هم په جماعت کي د ګډون کوونکو په څېر ثواب ورکړي مګر د هغوی اجر به کم نه شي. (سنن ابی داود، نسايي، معارف الحدیث)

## اول صف :-

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل : اې خلکو ! اول صف پوره کوئ او بیا هغه ته نژدې، د دې لپاره چي کمبوت صرف په اخیري صف کي پاتي شي. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

## د جماعت د لمانځه فضیلت او بر کت :-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل : د جماعت لمونځ تر یوازي لمانځه اووه ویشت درجې فضیلت لري.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ ویلي : تر یوازي لمانځه له بل سړي سره لمونځ غوره دی، له دوو کسانو سره لا ښه دی او څومره چي جماعت ډېر وي هغومره د الله خوښ دی. (ابوداود، نسايي، بهشتي ګوهر)

رسول الله ﷺ ویلي : د وس تر اندازې نفل کوئ او کله چي ستړي شئ نو کښېنئ. (مشکوة)

## لومړی تکبیر :-

له انس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک تر څلوېښتو ورځو هر لمونځ داسې په جماعت سره وکړي چې اول تکبیر هم ترې تېر نه شي نو د هغه لپاره دوه نجاته لیکل کېږي یو د دوزخ له اور څخه او بل له نفاق څخه. (جامع ترمذي)

## د جماعت عذر :-

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی چې ده یوه شپه د ډېرې یخنۍ او سختې هوا په حالت کې اذان وکړ، بیا یې په خپله تر اذان وروسته وویل: اې خلکو! په خپلو کورونو کې لمونځ وکړئ، وروسته یې وویل: د رسول الله ﷺ طریقه دا وه چې کله به د یخنۍ او باران شپه وه نو موذن ته به یې امر کاوه چې اعلان وکړي: اې خلکو! په خپلو کورونو کې لمونځ وکړئ.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

# امامت

## د امامت حق او فرض :-

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: په تاسو کې چې څوک ښه او غوره وي هغه امام کړئ ځکه هغه مو د خپل مالک او رب په حضور کې نماینده وي. (دار قطني، بیهقي، معارف الحدیث)

ابو مسعود انصاري ؓ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: هغه څوک دې امامت وکړي چې د قرآن ډېر ویونکی وي (هغه څوک چې د کتاب الله علم ولري، له هغه سره یې تعلق زیات وي) که په دې کې برابر وي نو بیا دې هغه

څوک امامت وکړي چې په شریعت او سنت ښه خبر وي، که په دې کې هم برابر وي نو هغه څوک دې امامت وکړي چې تر ټولو اول یې هجرت کړی وي او که په دې کې هم برابر وي نو هغه کس دې امامت وکړي چې مشر وي او هیڅوک دې د هغه د واک په ساحه کې امامت نه کوي (د هغې حلقې د امام تر شا دې لمونځ وکړي خو که هغه په خپله ټینګار وکړ نو جلا خبره ده.)
(مسلم، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د جماعت امامت کوي نو هغه ته په کار ده چې له الله و وېرېږي او پر دې باور ولري چې د مقتدیانو د لمانځه ضامن هم دی یعني مسئولیت یې لري او د دې مسئولیت په اړه به ترې پوښتنه کېږي. که یې ښه لمونځ ورکړ نو د ده تر شا د ټولو لمونځ کوونکو مقتدیانو د مجموعې برابر ثواب به ورکړل شي خو پرته له دې چې د هغوی ثواب کم شي او په لمانځه کې چې کومه نیمګړتیا او کمی وي ټول بوج یې پر امام دی.

(معجم اوسط للطبراني، معارف الحدیث)

**د مقتدیانو خیال ساتل:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که په تاسو کې څوک د لمانځه امامت کوي نو په کار ده چې لنډ لمونځ وکړي ځکه په مقتدیانو کې ناروغان هم وي، کمزوري هم وي او بوډاګان هم او کله چې یوازې لمونځ کوئ نو څومره چې مو زړه غواړي اوږد یې کړئ.
(معارف الحدیث، بخاري، مسلم)

## په ټیټ اواز دعا:-

ځیني علماء وایي چې د ذکر او دعا په ټولو اقسامو کې ټیټ اواز غوره دی، امام وي او که منفرد او له رسول الله ﷺ څخه په جهر ثبوت یې د تعلیم لپاره وو. که په کوم ځای کې امام په لوړ اواز وینا غوره وګڼي او هدف یې تعلیم وي نو صحیح بلکې ښه کار دی.

## مقتدي ته لارښوونه:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: کله چې تاسو لمانځه ته راشئ او موږ پر سجده یو نو په سجده کې شریک شئ او هغه هیڅ مه شمیرئ او چا چې امام په رکوع کې وموند هغه لمونځ یعني هغه رکعت وموند. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: امام د دې لپاره دی چې خلک یې اتباع وکړي، له همدې کبله که دی تکبیر ووایي تاسو هم تکبیر ووایاست او کله چې قرأت وایي نو په چوپتیا ورته غوږ شئ.

(سنن ابی داود، سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: اې خلکو! تر امام مخته مه ځئ کله چې هغه تکبیر ووایي نو تاسو هم تکبیر ووایاست، کله چې قرأت وایي نو تاسو خاموش شئ او کله چې ولا الضالین ووایي نو تاسو امین وایاست، کله چې رکوع وکړي رکوع وکړئ او کله چې سمع الله لمن حمده ووایي نو اللهم ربنا و لک الحمد ووایاست.

(صحیحین، معارف الحدیث)

## په جماعت کي ګډون:-

له ابو قتاده ﷜ څخه روایت دی چي موږ له رسول الله ﷺ سره لمونځ کاوه نو ناڅاپه یې د خلګو د منډې اواز واورېد، کله چي یې لمونځ وکړ څه خبره وه؟. هغوی وویل: موږ لمانځه ته په منډه راغلو، ده وویل: داسي مه کوئ، کله چي لمانځه ته راځئ نو کرار راځئ، څه چي مو وموندل ویې کړئ او څه چي تېر شوي را ویې ګرزوئ. (بخاري)

## په لمانځه کي بې اودسي:-

عائشه ﷺ وایي چي که په تاسو کي د لمانځه پر مهال د چا اودس مات شي نو هغه دي خپله پزه ونیسي او اوداسه ته دي ولاړ شي. (مشکوة)

## تر امام وړاندي له سجدې سر پورته کول:-

ابو هريره ﷜ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: ايا په تاسو کي هغه څوک چي تر امام وړاندي سر پورته کوي له دې څخه په وېره کي نه دی چي الله به يې سر د خره کړي؟. (مشکوة، بخاري، مسلم)

## خارا ګښت ته اړتیا:-

عبدالله بن ارقم ﷜ وايي چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ويل يې: کله چي جماعت ودرېږي او په تاسو کي يو څوک خارا ګښت ته اړتيا لري نو لومړی دي خپل ضرورت پوره کړي.

(جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحديث)

# د صفونو سمول

## د صفونو برابرولو ته پاملرنه:-

له نعمان بن بشیر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زموږ صفونه داسي سیده او برابرول چي ګواکي په غشي یې برابروي، تر دې چي هغه فکر وکړ موږ د صفونو برابرول زده کړي. یوه ورځ رسول الله ﷺ له دباندي راغی او د لمانځه ورکولو لپاره پر خپل ځای هم ودرېد، نژدې وه چي د تکبیر په ویلو لمونځ پیل کړي خو یوه داسي چا ته یې پام شول چي سینه یې له صفه دباندي راوتلې وه نو ویې ویل: د الله بندګانو! خپل صفونه سیده او بېخي برابر کړئ که نه الله به ستاسو زړونه د یوه بل مخالف کړي.
(مسلم، معارف الحدیث)

له ابو مسعود انصاري ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به په لمانځه کي زموږ د برابرولو لپاره زموږ پر اوږو لاسونه تېرول، ویل به یې سم شئ او سره کږېږئ مه که نه الله به یې په سزا کي ستاسو زړونه مخالف کړي، په تاسو کي چي څوک هوښیاران او د عقل څښتنان دي هغه دي ما ته نژدې شي، ورپسې دي دوی ته نژدې کسان ودرېږي او بیا هغه چي دې نورو ته نژدې دي. (مسلم، معارف الحدیث)

## د صف ترتیب:-

له ابو مالک اشعري ﷛ څخه روایت دی چي خلګو ته یې وویل: تاسو ته د رسول الله ﷺ د لمانځه حال بیان کړم؟، بیا یې د هغه لمونځ تشریح کړ چي ده لومړی د نارینه وو صف برابر کړ، شا ته یې د ماشومانو صف ودراوه او

بیا یې لمونځ ورکړ. وروسته یې وویل: همدا زما د امت لپاره د لمانځه طریقه ده. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

**په منځ کې د امام درېدل:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: اې خلکو! امام په منځ کې ودروئ او د صفونو خلاء ډکه کړئ. (سنن ابی داود معارف الحدیث)

**د یوه یادوو مقتدیانو ځای:-**

له جابر ﷺ څخه روایت دی چې یو ځل رسول الله ﷺ پر لمانځه ودرېد په همدې وخت کې زه راغلم او د ده چپه اړخ ته ودرېدم نو ده مې لاس ونیو د شا له خوا یې راسته لور ته را وګرځولم، په همدې وخت کې جبار بن صخر ﷺ راغی، نیت یې وکړ او د ده چپ لور ته ودرېد نو ده زموږ دواړو لاس ونیو شا ته یې ټېله او ودرولو. (مسلم، معارف الحدیث)

**د مسجد احکام:-**

مسجد ته د تلو پر مهال باید پنځه وخته لاندې سنتونو ته پام وشي:

۱) د هر لمانځه پر وخت له کوره په اوداسه تلل. (بخاري)

۲) له کوره د روانېدو پر مهال د لمانځه نیت کول یعني اول او اصل نیت باید د لمانځه وشي. (بخاري)

۳) د اذان په اورېدو د لمانځه لپاره دنیوي چارې داسې پرېښودل چې ګواکې له هغو سره مو هیڅ تړاو نه شته. (نشر الطیب، ترمذي)

۴) له کوره د وتلو پر مهال د دې دعا ویل: بسم الله توکلت علی الله لا حول و لا قوة الا بالله. (ترمذي)

۵) پر لار د تلو په وخت کي دا دعا هم احادیثو نقل کړې چي ویونکي ته یې اویا زره ملایکې دعا کوي:

اللهم انی اسئلک بحق السائلین علیک و بحث ممشای هذا فانی لم اخرج اشرا و لا بطرا و لا ریاء و لا سمعة و خرجت اتقاء سخطک وابتغاء مرضاتک و اسئلک ان تعیذنی من النار و ان تغفرلی ذنوبی فانه لا یغفر الذنوب الا انت.

اې الله! د هغه حق په وسیله چي سوال کوونکي یې ستا له خوا لري او هغه حق په وسیله چي عبادت کوونکي یې ستا له خوا لري غوښتنه کوم چي ما له تکبر او لویي د احساس یا د ریا په غرض د باندي ګام نه دی ایښی بلکي ستا د خپګان له وېرې او رضا په لټه روان یم، له تا غوښتنه کوم چي ما ته د اور له عذابه پناه راکړه، ګناه مي وبخښه او له تا پرته هیڅوک ګناه نه شي بخښلای. (ابن ماجه)

۶) لمانځه ته دي په اطمنان ولاړ شي او یو څه ورو ګامونه دي اخلي چي د قدم نښې یې لیکل کېږي او پر هر ګام ثواب ورکوي. (الترغیب)

۷) مسجد ته د ننوتلو پر مهال دي لومړی چپ پایزار وباسي او پښه دي پر هغه پایزار کښېږدي، بیا دي راسته پښه له پایزار څخه وباسي مسجد ته دي لومړی راسته پښه ور دننه کړي.

۸) له سختې اړتیا پرته دي د دنیا خبرې نه کوي، که خلک په لمانځه بوخت وي نو تلاوت او ذکر دي په ورو اواز کوي، د قبلې لور ته دي نه

ناوړې توکي او نه دي پېښې غزوي، نه دي سندرې وايي، نه دي بهر ورک شوی شوی په مسجد کي غواړي، نه دي د هغه اعلان کوي او نه دي په جامو یا بل شي لوبېږي او ګوتې دي نه سره بندوي. لنډه دا چي د مسجد د احترام مخالف کار دي نه کوي. (طبراني، مسند امام احمد)

۹) له لومړي تکبیر سره دي د لمانځه کولو هڅه کوي او تل دي په جماعت دِ لمانځه کولو ته متوجې اوسي.

۱۰) کله چي جماعت درېږي نو تر تکبیر وړاندي دي لومړی صفونه برابر کړي وروسته دي تکبیر وویل شي.

۱۱) هر وخت چي څومره ممکنه وي په لومړي صف کي دي کښېني، د امام تر شا راسته او یا چپ طرف ته، که په اول صف کي ځای نه وي نو په همدې ترتیب دي په دویم او بیا درېیم صف کي کښېني لنډه دا چي تر څو په مخکیني صف کي ځای وي نو شا ته دي نه کښېني. (مسلم، ابوداود)

۱۲) صفونه دي ښخي برابر کړي یو بل ته دي نژدې ودرېږي په منځ کي دي خالی ځای نه پرېږدي، اوږې او بجلکې دي یوه بل ته نژدي وي.
(صحاح)

۱۳) هر لمونځ دي په داسي تواضع او عاجزي کوي چي ګواکي دا مې د ژوند اخیري لمونځ دی. (الترغیب)

۱۴) په لمانځه کي باید زړه هم الله ته تسلیم وي او د بدن اعضا هم ارام وي. (ابوداود، نسایي)

۱۵) په لمانځه کي دي سترګې خلاصې ساتي، د سترګو پټول د سنت خلاف دي. (مدارج النبوة)

۱۶) د سهار تر فرضو وروسته دي لنډه شېبه په الهي ذکر اخته شي. (الترغيب)

۱۷) له پنځو لمنځونو څخه په خلاصېدو چي تر کومه وخته لمونځ کوونکی پر هغه ځای ناست وي نو فرشتې ورته پر له پسې د رحمت او مغفرت دعا کوي. (الترغيب)

۱۸) د سهار له لمانځه څخه په خلاصېدو د اشراق تر وخته الهي ذکر کول. (ترمذي)

۱۹) تر څو چي لمونځ کوونکی د جماعت لمانځه ته انتظار وي نو د لمانځه کولو ثواب ورکول کېږي. (بخاري)

۲۰) د سنتو او فرضو تر منځ چي تسبيحات، درود او نوري دعاوې وايي زيات ثواب به ورکړل شي. د سهار د سنتو او فرضو تر منځ چي سبحان الله و بحمده، سبحان الله و الحمد لله و لا اله الا الله و الله اکبر ووايي نو ډېر ثواب لري.

## د روژې مياشت ... د روژې مبارکې خطبه

### د روژې فضيلت:-

له سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دی چي د شعبان پر اخيري نېټه رسول اللهﷺ موږ ته وينا وکړه، ويې ويل: اې خلګو! پر تاسو يوه لويه او د برکت مياشت راتلونکې ده، د دې مياشتې يوه شپه تر زرو مياشتو غوره ده، الله يې روژې فرض کړې او د دې مياشتې په شپو کي يې الهي دربار ته د درېدلو نفل عبادت (تراويح) تاکلې دي، څوک چي په دې مياشت کي د الله د رضا

او نژدېکت تر لاسه کولو لپاره غير فرضي عبادت وکړي نو د نورو وختونو د فرضو په اندازه ثواب به ورکړل شي. په دې مياشت کي د فرضو د کولو ثواب د نورو وختونو له اويا فرضونو سره برابر دی، دا د صبر مياشت ده، د صبر بدله جنت دی او دا د خواخوږۍ و همدردۍ مياشت ده. په دې مياشت کي د مومنانو روزي زياتېږي، چا چي په دې مياشت کي روژتي ته د الله د ثواب او رضا لپاره روژه ماتی ورکړ نو د ده لپاره به د ګناهونو د بخښني او د دوزخ له اوره د خلاصون وسېله شي، ده ته به د روژتي په اندازه ثواب ورکړل شي خو د هغه ثواب نه کمېږي. ده ته وويل شول چي اې د الله رسوله! په موږ کي هر يو د روژه ماتي ورکولو امکانات نه لري. ده وويل: الله به دا ثواب هغه چا ته هم ورکړي چي لږ شيدې، شلومبې او يا د اوبو دوه غوړپه روژتي ته د روژه ماتي لپاره ورکړي. څوک چي روژتي ته پوره خوراک ورکړي الله به يې زما له حوض څخه داسي اوبه کړي چي تر هغه وروسته به جنت ته د تلو تر مهاله تږی نه شي. ورپسې يې وويل: د دې مياشتې لومړۍ برخه رحمت، منځنۍ يې مغفرت او وروستۍ يې له دوزخ څخه ازادي ده. بيا يې وويل: څوک چي په دې مياشت کي د خپل غلام او خادم مسئوليتونه لږ کړي الله به يې وبخښي او له دوزخ څخه به خلاصون و ازادي ورکړي.

(شعب الايمان للبيهقي، معارف الحديث)

## په روژه کي احتساب:-

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک د رمضان روژه په ايمان او احتساب سره ونيسي، د هغو ټول ګناهونه به معاف شي او همدارنګه چي کوم کسان په ايمان او احتساب سره د روژې په شپو

کي نوافل (تراویح و تهجد) وکړي د هغوی ټول مخکیني ګناهونه به وبخښل شي، همدا راز چي څوک د قدر په شپه له ایمان او احتساب سره نوافل وکړي د هغوی مخکیني ګناهونه به هم وبخښل شي.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د روژې برکت:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي روژې نیسئ روغ به یاست. (طبراني)
لکه څرنګه چي په روژه ظاهري او باطني تاوانونه له منځه ځي، همدا راز ظاهري او باطني خوبني راوړي.

## د روژې اهمیت:-

عائشه ﷺ وايي چي کله به د روژې وروستی لسیزه پیل شوه نو رسول الله ﷺ به ملا ټینګه وتړله او د شپې به ویښ وو (ټوله شپه به په عبادت، ذکر او دعاوو اخته وو) او د خپل کور غړي (مېرمنې او نور) به یې هم پورته کول (څو دوی هم د دې شپو له برکتونو او نېکمرغیو برخه تر لاسه کړي.)
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د روژې نه نیولو زیان:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د سفر او نورو له شرعي رخصت او ناروغیو په څېر عذر پرته د رمضان یوه روژه پرېږدي او د هغې پر ځای ټول عمر روژه ونیسي نو څه چي یې له لاسه ورکړي دي پوره به یې نه کړای شي. (مسند احمد، معارف الحدیث)

# د میاشتې لیدل

## د میاشتې لیدلو تحقیق او شاهدي :-

د رسول الله ﷺ سنت دا وو چې څو به میاشت نه وه لیدل شوې او یا به یې عیني شاهدي نه وه ورکړل شوې روژه یې نه نیوله. یو ځل رسول الله ﷺ د ابن عمر شاهدي ومنله او روژه یې ونیوله. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ د وریځي په ورځ نه روژه نیوله او نه یې امر ورکاوه بلکي ویل به یې: کله چې وریځ وي نو د شعبان د برش ورځې دې پوره شي.

(زاد المعاد)

ابو هریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: د میاشتې په لیدلو روژه ونیسئ او د میاشتې په لیدلو یې پرېږدئ او که په نهه ویشتم تاریخ میاشت ونه لیدل شي نو د شعبان د برش ورځې پوره کړئ.

(صحیحین، معارف الحدیث)

## پېشلمی :-

د رسول الله ﷺ وینا ده چې پېشلمی برکت لري هیڅکله یې مه پرېږدئ، که هیڅ شی نه وي نو په دې وخت کې یو غوړپ اوبه وڅښئ ځکه د پېشلمي پر مهال پر خوراک او څښاک کوونکو الله رحمت کوي او فرښتې ورته د خیر دعا غواړي. (مسند احمد، معارف الحدیث)

**روژه ماتی:—**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله ویلي چي پر ما هغه بنده ډېر ګران دی چي په روژه ماتي کي بیړه کوي یعني تر لمر لوېدو وروسته هیڅ ځنډ نه کوي. (معارف الحدیث، جامع ترمذي)

له سلمان بن عامر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که په تاسو کي د چا روژه وي نو په خورما دي ماته کړي او که خورما نه وي نو په اوبو دي ماته کړي، ځکه اوبه الله پاکي پیدا کړې دي.
(مسند احمد، ابوداود، جامع ترمذي، ابن ماجه، معارف الحدیث)

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د ماښام تر لمانځه وړاندي په څو لندو خورماوو روژه ماتوله، که به لندي خورماوې نه وې نو په وچو خورماوو یې ماتوله او که به وچې خورماوې هم نه وي نو څو غوړپه اوبه به یې څښلې. (جامع ترمذي)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د روژه ماتي پر مهال ویل: ذهب الظمأ و ابتلت العروق و ثبت الاجر ان شاء الله.
(سنن ابی داود، معارف الحدیث)

معاذ بن ظهیره وایي: ما ته دا خبره رسېدلې چي رسول الله ﷺ به د روژه ماتي پر مهال ویل: اللهم لک اصمت و علی رزقک افطرت.
(سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د روژه ماتي پر مهال د روژتي هیڅ دعا نه ردېږي. (ابن ماجه، معارف الحدیث)

## تراويح

ډېرى علماء پر دې متفق دي چې اهل سنت والجماعة د تراويحو پر سنت والي اجماع کړې ده. د ځلورو امامانو د فقهي په کتابونو کې تصريح ده چې د تراويحو شل رکعته سنت موکد دي. (خصايل نبوي)

### د قرآن تلاوت:-

د روژې پر مهال په تراويحو کې يو ځل په ترتيب سره د قرآن ويل موکد سنت دي، که د عذر له کبله وېره وي چې مقتديان به يې ونه کړای شي نو بيا دې له (الم ترکيف) څخه تر اخيره لس سورتونه وويل شي په هر رکعت کې دې يو سورت وايي او د لسو رکعتونو په پوره کېدو دې بيا هماغه سورتونه تکرار کړي، بيا چې يې کوم سورتونه خوښ وي هغه دې ووايي.

(بهشتي گوهر)

### بشپړه مياشت تراويح کول:-

د روژې په ټوله مياشت کې د تراويحو کول سنت دي که څه هم قرآن کريم د مياشتې تر ختمېدو وړاندې پای ته ورسېږي. مثلاً که قرآن په پنځلس ورځې کې ختم شي نو پاتې ورځې هم د تراويحو کول سنت موکد دي.

### د تراويحو جماعت:-

په تراويحو کې جماعت سنت کفايي دی، که څه هم په جماعت سره يو ځل قرآن ختم شوی وي.

## د تراویحو دوه - دوه رکعتونه: -

تراویح باید په دوو - دوو رکعتونو و شي، تر څلورو رکعتونو وروسته باید دومره وخت دمه وشي لکه لمونځ چي شوی، مګر د مقتدیانو د رعایت له امله کمېدای هم شي. (بهشتي ګوهر)

## د تراویحو اهمیت: -

په روژه کي د تراویحو لمونځ سنت موکد دی، د هغه نه کول او پرېښودل ګناه ده. ښځې د پر وخت تراویح نه کوي باید داسي ونه شي د ماخوستن تر فرضو او سنتو وروسته دي شل رکعته تراویح وکړي او تر شلو رکعتونو وروسته دي وتر وکړي. (بهشتي ګوهر)

## د شلو رکعتونو تراویحو حدیث: -

عن ابن عباس ﷺ انه قال ان النبی ﷺ یصلی في رمضان عشرين ركعة والوتر.

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي ویې ویل: رسول الله ﷺ په روژه کي شل رکعته او وُتر کول. (جمع الزواید ۳ / ۱۷۲)

(که څه هم د دې حدیث په سند کي یو راوي ضعیف دی مګر څرنګه چي د صحابه کرامو او تابعینو پر له پسې تعامل همداسي پاتي شوی له همدې امله د محدثینو او فقهاوو د اصولو له مخې دا حدیث مقبول دی.)

له سائب بن یزید او یزید بن رومان ﷺ څخه روایت دی چي د عمر ﷺ په وخت کي صحابه کرامو ﷺ شل رکعته تراویح کولې.

(اثار السنن ص: ۲۰۴، د موطا امام مالک او بیهقي په حواله)

## د تراویحو په منځ کي ذکر:-

د تراویحو تر منځ چي له هرو څلورو رکعتونو وروسته کوم ذکر مشهور دی په هیڅ حدیث کي یې یادونه نه شته البته شامي د قحستاني او منهج العباد په حواله نقل کړی چي تر هرو تراویحو وروسته دي دا ذکر وشي؛

سبحان ذی الملک والملکوت سبحان ذی العزة و العظمة و القدرة و الکبریاء و الجبروت سبحان الملک الحی الذی لا ینام و لا یموت، سبوح قدوس ربنا و رب الملائکة و الروح لا اله الا الله نستغفر الله نسألک الجنة الفردوس و نعوذبک من النار. (شامي ۱/ ۶۶۱)

زه د عالم اجسام او عالم ارواح پاکي بیانوم، د عزت، عظمت، قدرت، لويي او غلبې څښتن پاک دی، هغه پاچا لره پاکي ده چي ژوندی دی، نه ویده کېږي او نه مري، ډېر پاک دی، زموږ د فرشتو او روح رب، له الله پرته هیڅ معبود نه شته، موږ له الله مغفرت غواړو او اې الله! له تا د فردوس جنت سوال کوو او له دوزخ څخه پناه غواړو.

## د روژې په شپو کي قیام:-

رسول اللهﷺ ویلي: الله د رمضان روژې فرض کړې او ما د رمضان په شپو کي ویښتیا (په تراویحو کي د قرآن اورېدو لپاره) تاسو ته (د الله په حکم) سنت ګرزولې چي د موکدیت له امله ضروري ده، څوک چي له امام سره او د ثواب په نیت د رمضان روژه ونیسي او د شپې یې ویښ کړي هغه به له خپلو ګناهونو د هغې ورځې په څېر راووزي په کومه ورځ چي مور زېږولی وي. (نسايي، حیات المسلمین)

**اعتکاف:-**

په صحیحو احادیثو کې نقل شوي چې کله به د روژې وروستی لسیزه راورسېده نو د رسول الله ﷺ لپاره به په مسجد کې یو ځای ځانګړی شو، هلته به یې یوه پرده، پرزه او یو بل شی واچول، یا به یې وړوکې خېمه ودروله، د روژې پر شلم تاریخ به رسول الله ﷺ د سهار د لمانځه لپاره مسجد ته ورغی او د اختر د میاشتې په لیدو به له هغه ځایه راووت.
(معارف الحدیث)

چا چې هر روژې په وروستی لسیزه کې لس ورځې اعتکاف وکړ نو هغه اعتکاف د دوو حجونو او دوو عمرو په څېر دی (همدومره ثواب به یې ورکړل شي.) (بیهقي، معارف الحدیث)

د اعتکاف مستحبات:-

- نېکي او غوره خبرې کول.
- د قرآن تلاوت.
- درود شریف ویل.
- د دیني علومو زده کړه او ښوونه.
- وعظ او نصیحت.
- او په هغه مسجد کې اعتکاف چې پنځه لمنځونه پکې کېږي. (بهشتي زیور)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې د معتکف لپاره شرعي قانون دا دی چې نه به د مریض پوښتنې ته ورځي، نه به د جنازې په لمانځه کې د ګډون

لپاره بهر وزي، نه به له ښځې سره جنسي اړيکې نيسي او نه به د خپلو اړتياوو لپاره مسجد پرېږدي، مګر پرته له هغو اړتياوو چې ضروري دي (لکه ډاراکښت، بولو او نورو ته تلل) اعتکاف (باید له روژې سره وي) نه بې روژې. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

## مسنون اعتکاف:-

له رسول الله ﷺ څخه د روژې په اخيري لسيزه کې په حتمي ډول د اعتکاف کول په صحيحو احاديثو ثابت دی او دا کار کفايي سنت دی چې د ځينو له خوا د اعتکاف کول کفايت کوي.

## د اعتکاف او معتکف سنت اعمال:-

لس ورځې اعتکاف سنت او تر دې کم نفل دی، د ښځو لپاره په خپل کور کې اعتکاف سنت دی. د اعتکاف په حالت کې د قرآن تلاوت او ياد نورو ديني کتابونو مطالعه هم ښه کار دی. (بهشتي زيور)

## د قدر شپه

له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د قدر شپه د روژې د اخيري لسيزې په طاقو شپو کې ولټوئ. (بخاري، معارف الحدیث)

## د قدر په شپه دعا:-

له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې ما رسول الله ﷺ ته وويل: که پوه شوم چې دا د قدر شپه ده نو له الله څه وغواړم او کومه دعا وکړم؟. ده وويل: دا دعا وکړه: اللهم انک عفو کریم تحب العفو فاعف عنی. اې الله! ته عفوه کوونکی او کريم يې، عفوه خوښوې نو ځکه ما وبخښه. (معارف الحدیث)

**د روژې وروستۍ شپه:-**

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د روژې په وروستۍ شپه کې د ده د امت لپاره د مغفرت او بخښنې پرېکړه کېږي. له ده پوښتنه وشوه چې ايا دا د قدر شپه وي؟. هغه وويل: د قدر شپه خو نه وي مگر خبره داده چې کله عمل کوونکی خپل عمل پوره کړي نو پوره اجريې ورکول کېږي. (مسند احمد، معارف الحديث)

**سرسايه:-**

له عبدالله بن عمرو بن العاص ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د مکې کوڅو ته يو سړی ورولېږه چې اعلان وکړي: سرسايه پر هر مسلمان واجب ده، نارينه وي او که ښځه، ازاد وي او که مريي، کشر وي او که مشر چې مقدار يې دوه مده (نژدې دوه سيره) غنم او يا له دې پرته يوه کاسه غله (تر درې نيم سيره يو څه زيات) او سرسايه بايد د اختر لمانځه ته تر تلو وړاندې ورکړل شي. (ترمذي)

**خوښي لمانځل:-**

رسول الله ﷺ وويل چې تاسو په کال کې دوه ځله خوښي لمانځله او س الله تر هغو دوې غوره ورځې درکړې دي کوچنی او لوی اختر، همدا رازيې وويل: دا د خوراک او څښاک، خپل منځي اړيکو او الهي ياد ورځې دي. (شرح معاني الاثار)

## له رمضان پرته د نورو ورځو روژې: -

رسول الله ﷺ به ډېري روژې نيولې، کله - کله به يې پر له پسې څو ورځې روژه وه. د رسول الله ﷺ عادت وو چې د وخت له مصالحو سره سم به يې د ځانګړو ورځو روژه نيوله او ډېر وخت به بې روژې هم وو.

(شرح شمايل ترمذي)

عبدالله بن شقيق وايي چې ما له عائشې رضي الله عنها څخه د نبوي روژو په اړه پوښتنه وکړه نو هغې وويل: رسول الله ﷺ به ځيني وختونه پر له پسې روژه نيوله او موږ به په دې فکر شوو چې تول له مياشت به يې ونيسي او ځيني وختونه به يې پر له پسې روژه نه نيوله موږ به په دې فکر شوو چې په دې مياشت کې به يې ونه نيسي، خو مديني منورې ته تر راتلو وروسته يې د رمضان له روژې پرته هيڅ مياشت پوره روژه نه ده نيولې او نه يې پوره مياشت خوړلې ده. (ابوداود، شمايل ترمذي)

## هره مياشت درې روژې: -

معاذه وايي چې ما له عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې رسول الله ﷺ هره مياشت درې ورځې روژه نيوله؟. دې وويل: نيوله يې، ما پوښتنه وکړه چې په کومو ورځو يې روژه نيوله؟. دې وويل: معلومه نه وه، هر وخت چې به ورته اسانه وه. (شمايل ترمذي)

## د دوشنبې او پنج شنبې روژه:-

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د دوشنبې او پنج شنبې په ورځ د الله حضور ته اعمال وړاندې کېږي. زه غواړم چې اعمال مې د روژې په حالت کې ورته وړاندې شي. (شمايل ترمذي)

## د پر له پسې روژو له نيولو منعه:-

عبدالله بن عمر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ (زما د ډېرو عباداتو، لمانځه او روژو په اړه تر خبرتيا وروسته) راته وويل: داسې مه کوه بلکې کله روژه نيسه او کله يې ماتوه، د شپې هم ويده کېږه او هم لمونځ کوه، ستا بدن پر تا حق لري، سا سترګې پر تا حق لري، ستا مېرمن، اولادونه او له تا سره ليدونکي پر تا حق لري. (شمايل ترمذي)

## د شوال شپږ روژې:-

له ابو ايوب انصاري ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: که چا د رمضان روژه ونيوله او تر دې وروسته يې د شوال د مياشتې شپږ روژې ونيولې نو دا عمل به يې له همېشنۍ روژې سره برابر شي.
(مسلم، معارف الحديث)

## ځانګړې روژې:-

له حفصې ﷞ څخه روايت دی چې څلور شيان رسول الله ﷺ هيڅکله نه پرېښودل: ۱) د عاشورا روژه. ۲) د ذی الحجې لس ورځې يعنې د ذي الحجې له لومړۍ نېټې د عرفات تر ورځې يا نهم ذو الحجې پورې روژې. ۳

) د هرې میاشتې درې روژې. ۴) تر سهار وړاندي دوه رکعته. (سنن النسایي، معارف الحدیث)

## د سپینو ورځو روژې:-

له قتاده بن ملحان ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته ویل: د سپینو ورځو یعني میاشتې د دیارلسمې، څورلسمې او پنځلسمې روژې نیسئ او ویل به یې: د هرې میاشتې د دې درو ورځو روژې نیولو اجر او ثواب له تل روژې نیولو سره برابر دی.

(سنن ابی داود، نسایي، معارف الحدیث)

## د ذی الحجې لس روژې:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په هیڅ ورځو کي الله ته د بنده عبادت دومره محبوب نه دی لکه د ذی الحجې په لسو ورځو کي، په دې لسو کي د هرې ورځې روژه د یوه کال له روژې سره برابره ده او د هرې شپې نفل یې د شب قدر له شپې سره برابر دي.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## د شعبان د پنځلسمې روژه:-

له علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د شعبان په پنځلسمه نوافل وکړئ او په دې ورځ روژه ونیسئ ځکه د دې شپې د لمر په لوېدو ځانګړي الهي تجلا او رحمت لومړي اسمان ته راځي او وایي: ایا کوم بنده شته چي له ما مغفرت او بخښنه وغواړي او زه یې د بخښنې پرېکړه وکړم؟، ایا کوم بنده شته چي روزي وغواړي زه یې د روزي پرېکړه وکړم؟،

ایا کوم غم ځپلی شته چي له ما د روغتیا او صحت غوښتنه وکړي زه یې ورکړم؟ او په دې توګه الله بېلا بېلو اړتیا درلودونکو ته اواز کوي چي په دې وخت کي دي له ما غوښتنه وکړي زه به یې ورکړم. له لمر لوېدو تر سپېده چاوده الهي رحمت همداسي خپل بندګان ته وله شپه وربولي.

(سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

## د سې شنبې او پنج شنبې روژه:-

له عائشي ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د سې شنبې او پنج شنبې روژې نیولې. (جامع ترمذي، نسايي، معارف الحدیث)

## د عاشورا روژه:-

له عبدالله بن عباس ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د عاشورا روژه نیوله او مسلمانانو ته یې امر کړی وو، ځینو صحابه کرامو وویل چي اې د الله رسوله! یهود او نصارا دا ورځ په ډېر بښه ډول لمانځي (او په دې ورځ روژه نیول له هغوی سره مشابهت دی) نو رسول الله ﷺ وویل: کله چ راتلونکی کال راشي نو موږ به نهمه هم نیسو.

عبدالله بن عباس ؓ وايي چي مګر راتلونکی کال د محرم د میاشتې تر راتلو وړاندي رسول الله ﷺ وفات شو. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

# پر له پسې روژه

## رسول الله ﷺ پر له پسې روژه نیوله خو صحابه یې منعه کول:-

رسول الله ﷺ د روژې په میاشت کې ګڼ بېلابېل عبادتونه کول، په همدې میاشت کې به جبریل د قرآن منزلونه ورته تکرارول، له هغه سره د لیدنې پر مهال به تر تېز توپان هم ډېر سخي وو. د ده سخا تر هر چا زیاته وه خو په روژه کې به یې خیراتونه، احسان، د قرآن تلاوت، لمونځ، ذکر او اعتکاف تر حد زیاتېدل او د نورو میاشتو په پرتله یې روژه د عبادت لپاره ځانګړې کوله، ان ځیني وختونه به یې پر له پسې روژه نیوله څو تل د خپل رب په عبادت بوخت وي خو صحابه کرام یې له پر له پسې روژې (چې روژه ماتی پکې نه وي) منعه کړل. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به د روژې په ځینو شپو کې له خوراک، څښاک او روژه ماتي پرته پر له پسې روژه نیوله خو صحابه کرام یې د شفقت او مهربانۍ له مخې منعه کول او دا کار یې نه خوښاوه. د عائشې ﷺ په حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ له دې روژې منعه وکړه، ده ویلي: لا تواصلوا یعني پر له پسې روژه مه نیسئ. (مدارج النبوة)

صحابه کرامو ﷺ وویل: ته خو یې نیسې موږ ولې منعه کوې؟ حال دا چې ستا د پیروي غوښتونکي یو. نو ده وویل: لست کاحد کم یعني زه ستاسو په څېر نه یم او په یوه روایت کې دي چې ویې ویل: ایکم مثلی؟ یعني په تاسو کې څوک زما په څېر دی، انی ابیت عند ربی معنا زه د خپل رب په

حضور کي شپه تېروم ځکه هغه مي پالونکی او روزونکی دی، یعطمني و بسقيني هغه ما ته خوراک او څښاک راکوي او په یوه روایت کي دي چي هغه د خوراک او څښاک ورکوونکی دی، ما ته خوراک او څښاک راکوي (د محققینو په نزد یې هدف روحاني غذا ده.) (مدارج النبوة)

**په اختر کي مسنون اعمال:-**

۱) له رسول الله ﷺ څخه په دواړو اخترونو کي غسل ثابت دی، له خالد بن سعد ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د کوچني اختر، لوی اختر او عرفات په ورځ غسل کاوه.

۲) رسول الله ﷺ د اختر په ورځ غوره او ښکلې جامې اغوستې، ځیني وختونه به یې شین او سور حاشیه درلودونکی څادر پر اوږه کاوه، دا یمني څادرونه دي چي برد یماني یې بولي. د اختر لپاره ځان سینګارول ښه کار دی خو باید شرعي جامه وي. (مدارج النبوة)

۳) رسول الله ﷺ به د کوچني اختر په ورځ عیدګاه ته تر تلو وړاندي څو طاق خورماوې خوړلې. (بخاري، طبراني)

۴) د لوی اختر په ورځ به یې له لمانځه څخه تر راتلو وړاندي څه نه خوړل، په روایت کي دي چي د کوچني اختر لمانځه ته به د یو شي له خوړلو پرته نه تلی او د لوی اختر لمانځه ته تلی. څو چي به یې لمونځ او قرباني نه وه کړې شی یې نه خوړل او بیا به یې د قربانۍ غوښه خوړله.

(جامع ترمذي، ابن ماجه، مدارج النبوة)

**عید ګاه:-**

۵) رسول الله ﷺ به د اختر لمونځ په عید ګاه (میداني) کي کاوه.
(مسلم، بخاري)

له دې معلومېږي چي د لمانځه لپاره میداني ته تګ په مسجد کي تر لمانځه غوره دي ځکه چي رسول الله ﷺ د خپل لمانځه له فضیلت سره - سره د اختر د لمانځه لپاره میداني ته تللی خو که عذر وي نو پروا نه لري.

(ابوداود، مدارج النبوة)

۶) په اخترونو کي د ډېرو تکبیرونو ویل سنت دي. (طبراني)
له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي خپل اخترونه په ډېرو تکبیرونو ښکلي کړئ. (طبراني)

۷) رسول الله ﷺ عید ګاه ته پلی تلی. (سنن ابن ماجه)
او په دې عمل سنت یا د ځینو علماوو په اند مستحب دی.

۸) رسول الله ﷺ د کوچني اختر لمونځ ځنډاوه او د لوی اختر لمونځ یې ژر کاوه. (مدارج النبوة، مسند شافعي)

۹) رسول الله ﷺ چي به کله عید ګاه ته ورسېد سمدستي به یې لمونځ پیل کړ، نه اذان وو، نه اقامت او نه د الصلاة جامعة اواز.

۱۰) په اختر کي د تکبیرونو په اړه د رسول الله ﷺ په عمل کي اختلاف دی او د احنافو په نزد غوره داده چي په اول رکعت کي تر قرأت وړاندي او په دویم کي تر رکعت وروسته درې - درې تکبیرونه وویل شي.

۱۲) رسول الله ﷺ چي به پر کومه مسجد ته تللی پر هغه لار بیرته نه را ستنېده، پر بله لاره به تلی. (ابوداود، مدارج النبوة)

۱۳) ابن عمر ﷺ د نبوي سنتو د سختې اتباع له کبله تر لمر را ختلو وړاندې له کوره نه ووت او له کوره په وتلو به يې تر عيدګاه تکبيرونه ويل. (ابوداود، مدارج النبوة)

۱۴) رسول الله ﷺ او صحابه کرام چې به عيدګاه ته ولاړل نو د اختر تر لمانځه وړاندې او وروسته يې نفل نه کول، دوه رکعته لمونځ يې تر خطبې مخته کاوه. (زاد المعاد)

په لومړي رکعت کې چې به يې تکبيرونه ختم کړل نو قرأت يې پيلاوه، اول يې سورت الفاتحه او وروسته يې سورت ق و القرآن المجيد ويل او په دويم رکعت کې يې اقتربت الساعة و انشق القمر ويل او ډېر ځله به يې په دواړو رکعتونو کې سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حديث الغاشيه ويل خو دا سورتونه تاکل شوي نه دي نور هم ويل کېدای شي. (زاد المعاد)

**وعظ او نصيحت:-**

۱۵) رسول الله ﷺ چې به کله له لمانځه خلاص شو نو خلګو ته به مخامخ ودرېد، وعظ او نصيحت به يې پيل کړ، په ځينو شيانو به يې امر کول او له ځينو به يې منعه کول که به د لښکر لېږلو ته اړتيا وه په همدې وخت کې به يې لېږه او که به د يوه حکم فرمان صادرېده همدلته يې صادراوه. په عيدګاه کې د خطبې لپاره نه منبر وو او نه د مدينې منبر راوړل کېده بلکې پر ځمکه په ولاړه به يې خطبه ورکوله. (زاد المعاد)

۱۶) همدارنګه روايت شوی چې رسول الله ﷺ به د عرفات له ورځې يعنې نهم تاريخ د سهار له لمانځه څخه د ايام تشريق د وروستۍ ورځې

دیارلسم تاریخ تر مازیګره دا تکبیرونه ویل: اللّٰه اکبر، اللّٰه اکبر، لا اله الا اللّٰه و اللّٰه اکبر، اللّٰه اکبر وللّٰه الحمد. (زاد المعاد)

**د اختر د لمانځه طریقه:-**

۱۷) امام دي قبلې ته په مخ کولو لمونځ داسي پیل کړي چي د اللّٰه اکبر په ویلو لاسونه پورته او وتړي، په لومړي رکعت کي دي د سبحانک اللهم تر ویلو وروسته تر قرأت وړاندي لاسونه غوږو ته پورته کړي، اللّٰه اکبر دي ووایي او خوش دي کړي. دویم ځل دي بیا لاسونه غوږو ته پورته کړي، تکبیر دي ووایي او خوشي دي کړي او دریم ځل دي بیا همداسي د تکبیر په ویلو لاسونه پورته کړي بیا دي وتړي او قرأت دي پیل کړي، پاتي رکعت د نورو لمنځونو په څېر کېږي. په دویم رکعت کي دي تر فاتحې او قرأت وروسته د امام په اقتدا له درو تکبیرونو سره رفع الیدین وکړی او لاسونه دي پرېږدي، کله چي امام اللّٰه اکبر ووایي نو له تکبیر سره دي رکوع ته ولاړ شي، تر دې وروسته پاتي لمونځ د عامو لمنځونو په څېر دی.

(بهشتي ګوهر)

۱۸) د اختر په دوه رکعته لمانځه کي نه اذان شته او نه اقامت.

(مسلم)

۱۹) په عیدګاه کي تر لمانځه وړاندي او وروسته نفل منع دي.

۲۰) له چا چي د جماعت لمونځ تېر شي یوازي یې نه شي کولای، د اختر د لمانځه لپاره جماعت شرط دی البته که څو کسان وي نو د دویم جماعت کول واجب دي. (بهشتي ګوهر)

**د اختر خطبه:-**

۲۱) تر لمانځه وروسته دي دوې خطبې ووايي او د دوو خطبو تر منځ دي دومره کښېني لکه د جمعې په خطبه کي.

**په خطبه کي تکبير:-**

۲۲) د اخترانو خطبه دي لومړی په تکبير پيل کړي او په اوله خطبه کي دي نهه ځله تکبير ووايي او په دويمه کي اووه ځله. (بهشتي گوهر)

۲۳) په کوچني اختر کي پر لار د تلو پر مهال ورو تکبير ويل سنت دي او په لوی اختر کي بايد په لوړ اواز وويل شي. (بهشتي گوهر)

**د سرسايې وجوب:-**

۲۴) پر هر عاقل ازا د مسلمان نارينه وي او که ښځه لازمه ده چي کله د نصاب څښتن وي او يا د نصاب په اندازه شی ولري، نغد وي او که تر اړتيا زيات وسايل، يا د تجارت مال او يا د اوسېدو له ځای پرته بل ځای وي، د ځان او هغو نابالغو ماشومانو له لوري دي چي د ده تر سرپرستۍ لاندي دي نيمه کاسه (پاو کم دوه سيره غنم) يا د هغو قيمت ورکړي، د کوچني اختر تر لمانځه وړاندي د سرسايې ورکول سنت دي. (بهشتي گوهر)

## د لوی اختر سنت اعمال

۱) د لوی اختر په شپه د ثواب غوښتلو ويښ پاتېدل او په عبادت بوختيا سنت دي.

۲) د ذو الحجې د نهم تاريخ له سهاره د ديارلسم تاريخ تر مازيګره له هر فرض لمانځه وروسته چي د جماعت او مقيم والي په حالت کي وشي يو

ځل د تشريق تکبير په لوړ اواز ويل واجب دي. ځيني علماء يې پر ښځه او منفرد هم لازمي ګڼي، له همدې کبله يې ويل غوره دي خو ښځه دي يې ورو وايي.

۳) د کوچني اختر لمانځه ته تر لمانځه وړاندي دي څو خورماوې وخوري او که په لوی اختر کي قرباني کوي نو تر لمانځه وړاندي دي څه نه خوري بلکي وروسته دي د خپلې قربانۍ غوښه وخوري.

۴) که څوک د قرباني اراده لري نو د اختر د مياشتې تر ليدلو وروسته دي د قربانۍ د کولو تر وخته د ويښتو نه سمول او د نوکانو نه غوڅول مستحب دي. (بهشتي ګوهر)

## د قربانۍ ثواب:-

له زيد بن ارقم ﷺ څخه روايت دی چي صحابه کرامو ﷺ پوښتنه وکړه ويې ويل: اې د الله رسوله! قرباني څه شی ده؟. ده وويل: ستاسو د پلار ابراهيم طريقه ده. هغوی وويل: اې د الله رسوله! موږ ته څه را کول کېږي؟. ده وويل: د هر وېښته په بدل کي يوه نېکي. دوی وويل: که د اوزغنو حيوان وي؟. رسول الله ﷺ وويل چي د هرې اوزغنې په مقابل کي هم يوه نېکي ده. (حاکم)

## د امت له لوري قرباني:-

له ابو طلحه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو پسه د ځان لپاره قرباني کړ او د دويم پسه د حلالولو پر مهال يې وويل: دا قرباني د هغه چا له

خو داده چي زما په امت کي یې پر ما ایمان راوړی او زما تصدیق یې کړی دی. (طبراني)

فایده:-

د رسول الله ﷺ هدف په ثواب کي د امت شاملول وو نه دا چي د ټولو له خوا د قرباني په کولو هغوی خلاص شول. د غور خبره خو داده چي رسول الله ﷺ په خپله قرباني کي امت یاد کړ مګر افسوس چي امت هغه نه یادوي او هغه ته هیڅ حصه نه ورکوي. (حیات المسلمین)

په حدیث کي دي چي د رسول الله ﷺ له لوري هم قرباني کوئ، په دې سره مو مینه ډېرېږي. (زاد المعاد)

له ام سلمې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: کله چي د ذو الحجې لومړی لسیزه پیل شي او په تاسو کي څوک د قربانۍ اراده لري نو د قربانۍ تر کولو دي خپل وېښتان او نوکان نه غوڅوي، دا کار مستحب دی نه ضروري. (معارف الحدیث، صحیح مسلم)

**د قربانۍ طریقه:-**

کله چي به رسول الله ﷺ د قربانۍ حیوان حلالاوه نو خپله پښه به یې د هغه پر مخ اېښوده بیا به یې د بسم الله او الله اکبر په ویلو ذبح کاوه، ده خلګو ته امر وکړ چي قرباني دي په سم ډول حلالوي یعني چاړه دي تېزه وي او ژر دي حلالوي. (زاد المعاد)

په ابوداود کي له جابر ﷺ څخه روایت دی چي دی د لوی اختر په ورځ له رسول الله ﷺ سره عیدګاه ته ولاړ، کله چي یې خطبه پوره کړه نو یو پسه راوستل شو. رسول الله ﷺ په خپل لاس حلال کړ، بسم الله او الله اکبر یې

وويل او زياته يې کړه چې دا زما او زما د امت د هر هغه کس له خوا دی چې ذبح يې نه ده کړې.

په صحيحينو کې دي چې رسول الله ﷺ قرباني او ذبح په عيدګاه کې کوله. (زاد المعاد)

له جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د لوی اختر په ورځ برګ، ښکرور او خسي پسه حلال کړ. کله چې يې د هغه مخ سم لور يعني قبلې ته کړ نو دا دعا يې وويله:

انی وجهت وجهی للذی فطر السموات و الارض علی ملة ابراهيم حنيفا و ما انا من المشرکين. ان صلوتی و نسکی و محيای و مماتی لله رب العالمين. لا شريک له و بذالک امرت و انا من المسلمين. اللهم منک و لک عن محمد و امته. بسم الله الله اکبر.

ما هغه ذات ته خپل مخ اړولی چې اسمانونه او ځمکه يې پيدا کړي، په داسې حال کې چې د ابراهيم پر حنيف دين يم نه له مشرکانو، بې شکه زما لمونځ، عبادت، مرګ او ژوند ټول د نړۍ والو رب الله لره دي، دی هيڅ شريک نه لري او ما ته همدا امر شوی دی او زه له مسلمانانو څخه يم، اې الله! دا قرباني ستا په توفيق او ستا لپاره ده، د محمد او امت له لوري د الله په نوم شروع کوم، الله تر ټولو لوی دی. (احمد، ابوداود، ابن ماجه، دارمي)

تر ذبحې وروسته دا دعا ويل کېږي: اللهم تقبله منی کما تقبلت من حبيبک محمد و خليلک ابراهيم عليه السلام.

اې الله! زما له لوري يې داسي ومنه لکه له خپل حبيب محمد او خپل خليل ابراهيم څخه چي دي منلې وه. که دا دعا د نورو له خوا ويل کېږي نو د مني پر ځای منه ووايي او د هغه نوم دي ياد کړي.

## حج او عمره

### د حج فرضيت:-

له علي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک د حج د سفر لپاره ضروري وسايل او تر بيت الله د رسېدو سپرلی لري خو بيا هم حج ونه کړي نو هيڅ توپير نه کوي، يهودي مري او که نصراني. الهي وينا ده چي د الله لپاره د بيت الله حج پر هغو کسانو فرض دی چي توان يې لري.

(جامع ترمذي، معارف الحديث)

### د عمرې حقيقت:-

عمره هم د حج په څېر يو بل سنت مؤکد عبادت دی چي حقيقت يې د حج ځيني عاشقانه افعال دي له همدې کبله حج اصغر بلل کېږي.

(حيات المسلمين)

### د حج او عمرې برکت:-

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: حج او عمره دواړه يو ځای وکړئ، دا کارونه فقر، احتياج او ګناهونه داسي له منځه وړي لکه د پښ بټۍ چي د سرو او سپينو زرو زنګ ختموي، د حج مبرور بدله او ثواب خو صرف جنت دی.

(جامع ترمذي، سنن النسايی، معارف الحديث)

نبوي وينا ده چي د حج او عمرې مسافر د الله ځانګړي مېلمانه دي، که له الله دعا وغواړي قبلوي يې او که مغفرت وغواړي بخښي يې.
(طبراني، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ ويلي: الله هره ورځ پر حاجيانو (۱۲۰) رحمتونه نازلوي په دې کې شپېته رحمتونه د هغو کسانو لپاره دي چې پر بيت الله طواف کوي، څلوېښت د هغو لپاره چې هلته لمونځ کوي او شل د هغو کسانو لپاره چې يوازې کعبې ته ګوري. (بيهقي)

رسول الله ﷺ دا هم ويلي چې که څوک پنځوس ځله پر بيت الله طواف وکړي نو له خپلو ګناهونو به داسې پاک شي لکه مور چې نن زېږولی وي.
(ترمذي)

## عرفات ته ورتګ عين حج دی:-

له عبدالرحمن بن يعمر دئلي څخه روايت دی چې له رسول الله ﷺ مې واورېدل ويې ويل: د حج (يو ځانګړی رکن چې حج ورباندې موقوف دی) پر عرفات درېدل دي، هر حاجي چې د مزدلفې په شپه (د نهم او لسم ذي الحجې په منځنۍ شپه کې) تر سپېده چاود وړاندې عرفات ته ورسېږي نو حج يې وموند او ادا شو. تر يوم النحر (د ذی الحجې تر لسمې) وروسته په منا کې درې ورځې دي چې پکې درې شيطانان ويشتل کېږي يوولسم، دوولسم او ديارلسم. که کوم څوک يوازې دوې ورځې يعني يوولسم او دوولسم شيطان وولي له هغه ځايه ولاړ شي نو هم ملامت او ګناهګار نه دی، دواړه کارونه جايز دي. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، سنن النسايي، سنن ابن ماجه، سنن دارمي، معارف الحديث)

**د عرفات درجه:-**

له جابر ﷺ څخه په یوه اوږده حدیث کي روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: د عرفات په ورځ الله په ویاړ سره فرشتو ته وایي چي زما بندګانو ته وګورئ له څومره لرې ځایونو څخه په داسي حال کي راغلي چي حالت یې پرېشانوونکی دی، په دوړو لړلي دي او په ګرمۍ سوځي، زه تاسو شاهدان ګرزوم چي هغوی مي وبخښل. (بیهقي، ابن خزیمه، حیات المسلمین)

ابن ابی حاتم دا روایت له ابن عباس ﷺ څخه نقل کړی دی.

(کذا فی الروح و بیان القرآن)

**د عرفات دعا:-**

له عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: د عرفې په ورځ چي زما او مخکینیو انبیاوو تر خولې کومه غوره او بهترینه کلمه وتلې هغه داده: لا اله الا الله وحده لا شریک له، له الملک و له الحمد وهو علی کل شیء قدیر. له الله پرته هیڅ معبود نه شته، دی یو دی، هیڅ شریک نه لري، پاچاهي د ده ده، حمد ده لره دی او دی پر هر څه قادر دی. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

اللهم اجعل فی قلبی نورا و فی صدری نورا و فی سمعی نورا و فی بصری نورا اللهم اشرح لی صدری و یسر لی امری و اعوذبک من وسواس الصدر و شتات الامر و فتنة القبر اللهم انی اعوذبک من شر ما یلج فی اللیل و شر ما یلج فی النهار و شر ما تهب به الریاح و شر بوائق الدهر.

اي الله! زما په زړه، سينه، اوږدو او ليدو کي نور پيدا کړه، اي الله! سينه مي خلاصه او کار مي اسانه کړه، زه په تا د سينې له وسوسو، د چارو له پاشل کېدو او د قبر له فتنې پنا غواړم، اې الله! زه په تا له هغه څه چي په شپه او ورځ کي داخلېږي او هغه څه چي باد يې راوړي او د زمانې د مصيبتونو له شره پناه غواړم.

د دعا پر مهال رسول الله ﷺ دواړه لاسونه تر سينې پورته کړي وو، د لاس پورته کولو پر مهال يې وويل چي د عرفې د ورځې دعا تر ټولو دعاوو غوره ده. (زاد المعاد)

**ميقات:-**

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ذو الحليفه د مدينې ميقات کړ، جحفه د شاميانو، قرن المنازل د نجديانو او يلملم د يمنيانو. دا څلور ځايونه د دې اوسېدونکو او هغو ټولو کسانو لپاره ميقات دي چي له نورو سيمو د حج او عمرې په اراده راځي نو څوک چي د دې سيمې اوسېدونکي وي، له دې ځايه مکې ته راځي له خپله کوره دي احرام وتړي او دا قانون به همداسي روان وي، د مکې اوسېدونکي دي په مکه کي احرام تړي.(صحيحين، معارف الحديث)

**د احرام جامه:-**

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دی چي يو چا له رسول الله ﷺ څخه وپوښتل: محرم کومې جامې اغوستلای شي؟. ده وويل: د احرام په حالت کي مه کميس اغوندئ، مه پر سر لنګوټه تړئ، مه پرتوګ اغوندئ، نه دي

چینه اغوندي او نه دي موزې په پښو کوي، که له چا سره چپلې او چوټې نه وي نو موزې دي تر پوندیو کښته غوڅې کړي او داسي جامه دي هم نه اغوندي چي په زعفرانو او یا ورس لړلې وي.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي له رسول الله ﷺ یې واورېدل ښځي یې د احرام په حالت کي له دستکښو، نقاب او هغو جامو له استعماله منعه کړې چي په زعفران یا ورس لړلې وي، له دې پرته نوري رنګینې جامې اغوستلای شي. ورېښمي جامې وي او که نوري، دوی که وغواړي سینګار هم کارولای شي او پرتوګ، کمیس او موزې هم. (معارف الحدیث)

په احرام کي د نارینه وو لپاره صرف دوه څادرونه دي چي له یوه لنګ جوړېږي او بل پر بدن اچوي، سر و پښې یې لوڅ وي او داسي چوټې باید په پښه کړي چي د پښو پورتنۍ حصه یې تر پنجو ښکاره وي، ښځو ته د مخ ښکارولو امر شوی دی مګر د دې معنا دا نه ده چي د پردو نارینه وو په مخ کي هم خپله څېره بالکل خلاصه وساتي بلکي کله چي له پردو نارینه وو سره مخ کېږي نو خپل څادر یا بل شی دي حجاب کړي. په سنن ابی داود کي له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي کله به موږ له رسول الله ﷺ سره د احرام په حالت کي وو (نو د احرام له امله مو پر مخ نقاب نه شوای اچولای) خو کله چي به نارینه په مخه راغلل نو څادرونه به مو پر سر اچول او پرده به مو کوله، کله چي به هغوی ولاړل نو مخونه به مو ښکاره کړل. (معارف الحدیث)

## تر احرام وړاندي غسل: -

له زید بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یې ولید، جامې یې وایستلې او د احرام تړلو لپاره یې غسل وکړ. (جامع ترمذي، مسند دارمي)

د همدې حدیث پر بنسټ تر احرام وړاندي غسل سنت بلل شوی دی. (معارف الحدیث)

## تر احرام وړاندي خوشبو: -

له رسول الله ﷺ څخه په صحیح حدیث ثابته ده چي تر احرام وړاندي یې خوشبویي لګوله، د ده پر سر او ږیره به یې اثرات معلومېدل او په یوه روایت کي دي چي کله به رسول الله ﷺ د احرام تړلو اراده وکړه نو تر ټولو غوره موندل کېدونکې خوشبو به یې لګوله. عائشه رضی الله عنها وایي چي دې به رسول الله ﷺ ته تر احرام وړاندي او احرام خلاصولو وروسته خوشبویي ور لګوله چي مشک به ور ګډ شوي ول. په داسي حال کي به مي د ده پر سر د خوشبویي ځلا لیدله چي په احرام کي به وه. (متفق علیه، مشکوة)

خو کله چي احرام وتړي نو د خوشبویي استعمال ممنوع دی، د ابو یوسف په جوامع الفقه کي د احرام پر مهال د خوشبویي بویولو په اړه ویل شوي چي پروا نه لري، خو هغه خوشبویي دي بوی کړي چي تر احرام وړاندي یې لګولې وي. (زاد المعاد)

## تلبیه: -

خلد بن سائب له خپل پلار سائب بن خلاد انصاري رضی الله عنه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وویل: ما ته جبریل راغی او د الله له خوا یې دا امر راته وکړ

چي خپلو ملګرو ته په لوړ اواز د تلبيې امر وکړم. (موطا امام مالک، جامع ترمذي، سنن ابی داود، نسايي، ابن ماجه، معارف الحديث)

د تلبيې الفاظ دادي: لبيک اللهم لبيک لبيک لا شريک لک لبيک ان الحمد والنعمة لک والملک لا شريک لک.

زه حاضر يم اې الله! حاضر يم ستا هيڅ شريک نه شته بې شکه ټولې ستاينې او نعمتونه ستا دي، پاچاهي تا لره دي، تا لره هيڅ شريک نه شته.

همدا الفاظ رسول الله ﷺ په تلبيه کي ويل او نور څه يې پرې نه زياتول. (بخاري، مسلم)

## تر تلبيې وروسته دعا:-

عماره بن خزيمه بن ثابت انصاري ﷺ له خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ به کله له تلبيې فارغ شو نو له الله څخه به يې د هغه د رضا او جنت غوښتنه کوله، د هغه په رحمت به يې له دوزخ څخه خلاصون او پناه غوښتله. (روه الشافعي، معارف الحديث)

## د طواف ذکر او دعا:-

له عبد الله بن سائب ﷺ څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليد د طواف په حالت کي يې د رکن يماني او حجر اسود تر منځ په مسافه کي دا دعا ويله: ربنا آتنا فی الدنيا حسنة و فی الاخرة حسنة و قنا عذاب النار.

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: پر رکن يماني اويا فرښتې ګومارل شوې دي، هلته د هر هغه بنده پر دعا آمين وايي چي دا

دعا کوي: اللهم انی اسئلک العفو و العافیة فی الدنیا و الاخرة ربنا اتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة و قنا عذابن النار. (معارف الحدیث، سنن ابن ماجه)

اې الله! زه له تا بخښنه او په دنیا و اخرت کې سلامتي غواړم، اې زموږ ربه! په دنیا او اخرت ښېګڼه راکړه او د اور له عذاب څخه مو وساته.

**استلام:-**

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ په حجة الوداع کې پر اوښ سپور د بیت الله طواف وکړ، د ده په لاس کې یوه کږه چاړه وه او په هغه سره یې حجر اسود لمساوه. (بخاري، مسلم)

له عابس بن ربیعه څخه روایت دی چې عمر فاروق ﷺ مې ولید حجر اسود یې مچاوه او ویل یې: زه په یقین پوهېږم چې یوه ډبره یې، نه چا ته ګټه رسولای شې او نه تاوان او که مې رسول الله ﷺ ستا پر مچولو نه وای لیدلی نو ما به نه مچولې. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

**ملتزم:-**

په سنن ابی داود کې روایت دی چې عبدالله بن عمر ﷺ له ملتزم سره داسې جوخت شو چې خپله سینه او مخ یې ورسره ولګول او لاسونه یې وغوړول، پرې کښېښودل یې او ویې ویل: ما رسول الله ﷺ پر همداسې کولو لیدلی دی. (معارف الحدیث)

**رمی:-**

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د ذی الحجې پر لسمه جمره عقبه د څاښت پر مهال وویشتله او تر دې وروسته یې د تشریق په ورځو کي شیطانان د لمر تر زوال وروسته وویشتل.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

سالم بن عبدالله د خپل پلار عبدالله بن عمر ﷺ په اړه وایي چي د شیطانانو د ویشتلو په اړه د هغه طریقه دا وه چي اول شیطان به یې په اوو ډبرو ویشت او پر هره ډبره به یې الله اکبر وایه، تر دې وروسته به مخکینی شیلې ته کښته شو، قبلې ته به ودرېد او د لاس په پورته کولو به یې تر ډېره دعا کوله، بیا به یې پر منځني شیطان هم اووه ډبرې وار کړې، پر هره ډبره به یې تکبیر وایه، وروسته به د چپه اړخ شیلې ته کښته شو، قبلې ته مخامخ به تر ډېرو ولاړ وو او د لاس په پورته کولو به یې دعا کوله، بیا به یې د شیلې له منځه پر لوی شیطان یا جمرة العقبه اووه ډبرې وار کړې او له هرې ډبرې سره به یې الله اکبر وایه، هلته به درېدی نه او را ستون به شو او ویل به یې چي رسول الله ﷺ مي پر همداسي کولو لیدلی وو. (بخاري، معارف الحدیث)

**د سر خرییونکو لپاره دعا:-**

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي وویل: پر سر خرییونکو دي د الله نعمت وي، له حاضرینو څخه ځینو وویل: دا دعا د سر لنډوونکو لپاره هم وکړه. ده بیا وویل: پر سر خرییونکو

دي د الله نعمت وي. هغوی يبا هماغه غوښتنه وکړه نو دريم ځل يې وويل: پر سر لنډوونکو دي هم د الله رحمت وي. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## د قربانۍ ورځې:-

له عبدالله بن قرط ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د الله په نزد تر ټولو لويه ورځ يوم النحر ده، تر دې وروسته راتلونکې د يوم القر (د ذی الحجې يوولسمه) درجه ده نو ځکه چي تر کومه ځايه ممکنه وي قرباني دي د ذی الحجې پر لسمه وشي، که له يوې وجې ممکنه نه وي نو د ذی الحجې پر يوولسمه دي وکړي، که څه هم د ذی الحجې په دوولسمه هم روا ده خو غوره داده چي قرباني د ذی الحجې پر لسمه وشي. (سنن ابی داود، معارف الحديث)

## طواف زيارت:-

له عائشې او ابن عباس څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ طواف زيارت د ذی الحجې د دوولسمې تر لمر لوېدو ځنډاوه (د دې ځنډ اجازه يې ورکړه.) (جامع ترمذي، سنن ابی داود، ابن ماجه، معارف الحديث)

## پر سپرلۍ طواف:-

له ام سلمې ﷺ څخه روايت دی چي ما په حجة الوداع کي رسول الله ﷺ ته وويل چي زه ناروغه يم طواف څرنګه وکړم؟. ده وويل: سپره شه د خلکو تر شا طواف کوه. ما همداسي وکړل، په همدې وخت کي رسول الله ﷺ د بيت الله په يوه اړخ کي لمونځ کاوه او سورت الطور يې تلاوت کاوه.

(صحيحين، معارف الحديث)

**د ښځو شرعي عذر:-**

عائشه ﷺ وايي چي موږ د رسول الله ﷺ په ملتيا له مديني روان شوو، پر ژبه مو صرف د حج يادونه وه کله چي د مکې نژدې ځای سرف ته ورسېدو نو زما مياشتنی ناروغي پيل شوه. رسول الله ﷺ د ننه راغی ويې ويل: ممکن حيض درته راغلی وي؟. ما وويل چي هو همداسي ده. ده وويل: (د ژړا خبره نه ده) دا يو داسي شی دی چي الله د ادم پر لوڼو لازم کړی، ته هغه ټول کارونه وکړه چي حاجيان يې کوي مګر پر بيت الله تر هغو طواف مه کوه چي له دې ناروغی پاکه شوې نه يې. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

**طواف وداع:-**

له حارث ثقفي څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک حج او عمره وکړي نو په کار ده چي وروستی عمل يې د بيت الله حاضري او طواف وي. (مسند احمد، معارف الحديث)

**د نبوي روضې زيارت:-**

که ممکنه وي نو تر حج وروسته يا وړاندي دي مدينې منورې ته په تلو د نبوي روضې او نبوي مسجد د زيارت وياړ او برکت هم تر لاسه کړي، په دې هکله رسول الله ﷺ ويلي: من وجد سعة و لم يزرني فقد جفاني. يعني څوک چي وس لري او زما زيارت ته را نه شي نو له ما سره يې جفا وکړه. من زار قبري وجبت له شفاعتي يعني څوک چي زما د قبر زيارت وکړي شفاعت مي ورته واجب شو. ومن زارني بعد مماتي فكانما زارني في حياتي يعني

څوک چي زما تر مرګ وروسته زما زيارت وکړي هماغه برکت به ومومي لکه په ژوند کي چي مي زيارت وکړي.

(مراقی الفلاح، بيهقي فی شعب الايمان، طبرانی فی الکبير)

همدا رنګه رسول الله ﷺ ويلي: و صلوة فی مسجدی بخمسين الف صلوة. زما په مسجد کي يو لمونځ په پنځوسو زرو لمنځو دی.

(احمد، ابن حبان)

## د حاجي دعا:-

په حديث کي دي چي کله له حاجيانو سره مخ شئ نو هغوی ته سلام وکړئ، له دوی سره مصافحه وکړئ او له هغوئ وغواړئ چي تاسو ته د مغفرت دعا وکړي، وړاندي تر دې چي خپل کور ته ننوزي ځکه د هغه ګناه بخښل شوې ده (دوی په الهي دربار کي منل شوي دي) د هغوی د دعا د قبلېدو ځانګړې هيله شته، بايد هر ډول دعا ترې وغوښتل شي، د دين وي او که د دنيا خو خپل کور ته تر رسېدو وړاندي. (بهشتي زيور)

## د رسول الله ﷺ د حج او عمرو شمېر:-

له رواياتو سره سم رسول الله ﷺ تر هجرت وړاندي دوه حجونه کړي دي، ځيني وايي چي درې دي او د عمرو شمېر يې څلور ښودل کېږي.

(بخاري، مدارج النبوة)

## په حجة الوداع کي وروستی اعلان:-

رسول الله ﷺ تر هجرت وروسته په لسم کال يو حج وکړ چي حجة الوداع او حجة الاسلام بلل کېږي. په دې کي يې خلکو ته احکام او مسايل ور

وښودل او ویې ویل چي ممکن په راتلونکي کال ما پیدا نه کړئ، بیا یې له ټولو څخه د اخرت پر لور د سفر له وجې رخصت واخیست او وینا یې وکړه.
(مدارج النبوة)

## د حجة الوداع تفصیل

(د جابر ﷺ له یوه اوږده حدیث څخه په اقتباس)

### د حج د فریضې ادا کولو په موخه له مدینې څخه د رسول الله ﷺ حرکت:-

کله چي رسول الله ﷺ حج ته د تلو اراده وکړه نو خلک خبر شول او له ټولو خوا او ګوټ کسان راغل، د هر چا غوښتنه او هیله دا وه چي په دې سفر کي د رسول الله ﷺ ملګری شي. په بشپړ ډول د هغه پیروي وکړي او پر لاره یې ولاړ شي. د لسم هجري ذوالقعدې پر څلورویشتمه د جمعې ورځ وه، په دې ورځ یې په خپله خطبه کي د حج او د هغه د سفر په اړه ځانګړې لارښوونې وکړې او په را روانه ورځ د لسم هجري ذوالقعدې پر پنځه ویشتمه شنبه د ماپښین تر لمانځه وروسته د یوه ستر کاروان په ملتیا له مدینې وخوځېد. د مازیګر لمونځ یې د ذوالحلیفې په لومړي پړاو کي وکړ او له هغه ځایه یې احرام وتاړه، شپه یې همالته تېره کړه، را روانه ورځ یعني یکشنبه یې د ماپښین تر لمانځه وروسته ده او صحابه کرامو احرامونه وتړل داسي چي له لمانځه څخه تر خلاصون وروسته یې غسل وکړ، سر یې غوړ کړ، جامې یې وایستلې او څادر یې واغوست. له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د ذوالحلیفه په مسجد کي د احرام لپاره تر دوه رکعتیز لمونځ

وروسته سمدستي تلبيه وويله، ورپسې پر اوښه سپور شو او تلبيه يې ويله. تر دې وروسته چې کله د بيداء سيمې ته ورسېد نو بيا يې په لوړ اواز دا تلبيه پيل کړه:

لبيک اللهم لبيک لبيک لا شريک لک لبيک ان الحمد و النعمة لک و الملک لا شريک لک.

تر دې وروسته د مکې پر لور د ذو الحجې پر څلورمه مکې ته داخل شو، په دې سفر کې له ده سره د ملګرو کسانو شمېر د بېلابېلو روايتونو له مخې له څلوېښتو زرو تر يو لک او دېرشو زرو بيان شوی دی.

(معارف الحديث)

**بيت الله ته ورتګ:۔**

طبراني ويلي چې رسول الله ﷺ د بني عبد مناف له دروازې چې د بني شيبه په نوم پېژندل شوې ور ننووت، طبراني ويلي چې کله يې سترګې پر کعبه ولګېدې نو ويې ويل: اللهم زد بيتک هذا تشريفا و تعظيما و تکريما و مهابة يعني اې الله! د خپل کور عظمت، حرمت او عزت نور ډېر کړه، په يوه بل روايت کې دي چې لاس يې پورته کړل د تکبير په ويلو يې زياته کړه:

اللهم انت السلام و منک السلام. حينا ربنا بالسلام اللهم زد هذا البيت تشريفاً و تعظيماً و تکريما و مهابة و زد من حجه او اعتمره تکريماً و تشريفاً و تعظيماً و برا.

اې الله! ته سلام يې، سلامتي ستا له خوا ده، اې الله! موږ په سلامتي ژوندي وساته، اې الله! د خپل کور عزت، حرمت، عظمت او لويي نوره ډېره

کړه. اې الله! څوک چې ستا د کور حج یا عمره وکړي د هغه لویي، عزت، لوړوالی او عظمت نور هم ډېر کړه.

کله چې رسول الله ﷺ مسجد ته ننووت نو د کعبې لور ته وړاندي ورغی، مخ یې لږ د حجر اسود پر لور کړ او له راسته اړخه یې طواف پیل کړ چې کعبه یې چپ اړخ ته وه.

## د رسول الله ﷺ طواف:-

بیت الله ته په رسېدو یې تر ټولو وړاندي حجر اسود لمس کړ او ورپسې یې طواف پیل کړ چې په درو ګردشونو کي یې رمل وکړ (په هغه ځانګړي ډول روان شو چې قوت او شجاعت یې تري څرګندېده) او په پاتي څلورو ګردشونو کي عادي روان وو. (زاد المعاد)

د طواف پر مهال یې څادر اغوستی وو چې یو سر یې تر بغل لاندي ایستلی او پر اوږه یې اچولی وو، کله چې به حجر اسود ته مخامخ را ورسېد نو د خپل لاس په لکړه به یې ورته اشاره وکړه. هغه به یې پرې ولګوله او د لکړې په مچولو به وړاندي تلی، د لکړې سر کوږ وو. طبراني په کره سند روایت کړی چې کله به یې یماني رکن لمساوه نو ویل به یې: بسم الله الله اکبر او حجر اسود ته د رسېدو پر مهال به یې الله اکبر وایه. د طواف تر پوره کولو وروسته مقام ابراهیم ته ولاړ او دا ایت یې تلاوت کړ: واتخذوا من مقام ابراهیم مصلی او له مقام ابراهیم سره لمونځ وکړئ.

بیا داسي ودرېد چې مقام ابراهیم او بیت الله یې تر منځ وو او دوه رکعته د طواف لمونځ یې وکړ. د حدیث راوي جعفر صادق وایي چې زما پلار وویل: په دې دوو رکعتونو کي یې قل یا ایها الکافرون او قل هو الله وویل.


Scanned with CamScanner

## د رسول الله ﷺ سعيې :-

تر دې وروسته بيا حجر اسود ته راغى او لمس يې کړ (دا المسونه سعيې لپاره وه لکه څرنګه چې د بيت الله طواف د حجر اسود له لمس څخه پيلېږي همدا ډول تر سعيې وړاندې يې لمسول سنت دي.) بيا له يوې دروازې څخه د صفا پر لور روان شو او هغې ته په نژدې کېدو يې دا ايت تلاوت کړ: ان الصفا و المروة من شعائر الله بې شکه صفا او مروا د الله شعائر دي. د دوى تر منځ د سعيې امر شوى دى، بيا يې وويل: زه له هغې صفا سعيې کوم چې الله يې په دې ايت کې له وړاندې يادونه کړې ده. دى لومړى صفا ته ولاړ او دومره لوړ وخوت چې بيت الله ښکارېده، پر همدې مهال قبلې ته مخامخ ودرېد، د الله په تکبير او تحميد بوخت شو. ويې ويل: لا اله الا الله وحده لا شريک له. له الملک و له الحمد وهو علی کل شیء قدير. لا اله الا الله وحده انجز وعده و نصر عبده و هزم الاحزاب وحده. له الله پرته هيڅ د عبادت لايق نه شته، دى يو دى، هيڅ شريک نه لري، پاچاهي د ده او حمد ده لره دى، دى پر هر څه قدرت لري، له الله پرته هيڅ معبود نه شته دى يو دى، ده خپله وعده پوره کړه، له خپل بنده سره يې مرسته وکړه او لښکرې يې يوازې ماتې کړې،

رسول الله ﷺ درې ځله دا الفاظ وويل او د هغو تر منځ يې دعا وکړه، تر دې وروسته را کښته شو د مروا پر لور وخوځېد د شيلې منځ ته ولاړ، لږ منډه يې وکړه. کله چې د شيلې له تله يو څه را پورته شو نو له عادي تګ سره روان

ور، د مروا غونډۍ ته وخوت او هماغه څه يې وکړل چې په صفا کې يې کړي وو او د اخيري يا اووم تګ په پوره کولو بيرته مروا ته راغی.

## په منا کې قيام:-

رسول الله ﷺ د ترويې يعني ذو الحجې په اتمه پر خپله اوښه سپور شو، منا ته ورسېد، هلته ده او صحابه کرامو (په مسجد خيف کې) د ماپښين، مازيګر، ماښام، ماخوستن او سهار پنځه لمنځونه (پر خپل وخت) وکړل. د سهار تر لمانځه وروسته يو څه وخت په منا کې تم شو او د لمر په راختلو د عرفات پر لور وخوځېد.

## په عرفات کې د رسول الله ﷺ وينا او درېدنه

### د حجة الوداع خطبه:-

جابر ﷺ په يوه اوږده حديث کې د حجة الوداع تفصيل بيان کړی او د ذی الحجې د نهمې حالات يې بيان کړي وېلي يې دي: کله چې لمر زوال وکړ نو رسول الله ﷺ پر قصوی اوښه د کجاوې ايښودلو امر وکړ، نو کجاوه کېښودل شوه دی پرې سپور شو، د عرفات د ناوې منځ ته راغی او د اوښې پر شا يې خلګو ته وينا وکړه ويې ويل: اې خلګو! ستاسو وينې او مالونه پر يو بل حرام دي، بالکل هغه ډول لکه نن چې د عرفات په ورځ د ذو الحجې په دې سپېڅلې مياشت او سپېڅلي ښار مکه کې حرام دي. خبردار! د جاهليت هر څه زما تر دوو پښو لاندې ښخ دي، د جاهليت د هيڅ وينې بدل به نه اخيستل کېږي، تر ټولو وړاندې زه د خپلې کورنۍ د وينې بدله ربيع بن الحارث بن عبد المطلب قصاص ختموم او د معافي اعلان کوم چې د بني

سعد په کورنۍ کې د شيدو څښلو لپاره اوسېده او د هذيل قبيلې کسانو وژلی وو. له هذيل څخه د هغه د وينې بدل اخيستل پاتې وو خو زه نن د خپلې کورنۍ له لوري اعلان کوم چې نوره دا کيسه پای ته رسېدلې، بدله يې نه شته، د جاهليت د زمانې ټولې سودې غوښتنې ختمې او له منځه تللې دي او په دې کې هم لومړی زه د خپلې کورنۍ سودې غوښتنې د خپل اکا عباس بن عبد المطلب د سود ختمولو او له منځه تلو اعلان کوم، نور هغه له هيچا څخه سود نه شي اخيستلای او هر ډول سودې غوښتنې يې سر له نن څخه ختمې دي. اې خلکو! د ښځو د حقوقو او چلند په اړه له الله وويرېږئ، ځکه دا تاسو ته الله د امانت په توګه درکړې، د الله د امر او د هغه د قانون له مخې له دوی څخه ګټه اخيستنه درته روا شوې، پر دوی مو ځانګړی حق دادی چې تاسو خپل کور ته د يو چا راتګ او ستاسو پر ځای و بستره ناسته نه خوښوئ دوی هم فرصت ورنه کړي، خو که هغوی تېروتنه وکړي نو تاسو خبرداری ورکولای شئ او که په راتلونکي کې د دا ډول کار د مخنيوي لپاره کومه سپکه سزا مناسبه وګڼئ اختيار لرئ. پر تاسو يې خاص حق دادی چې له خپل وس سره سم يې د خوراک، څښاک او اغوستلو بندوبست وکړئ، زه تاسو ته د هدايت هغه وسايل پرېږدم که مو ټينګ کړل او پيروي مو وکړه نو هيڅکله به ګمراه نه شئ دا د الله کتاب دی، د قيامت په ورځ به الله زما په اړه له تاسو پوښتنه وکړي نو وواياست چې تاسو به څه ځواب ورکوئ؟. ټولو حاضرينو وويل: موږ شاهدان يو او د قيامت په ورځ به هم شاهدي ورکړو چې تا د الله احکام او د هغه پيغام را ته ورساوه، زموږ د لارښوونې او دعوت حق دې ادا کړ او د خير په غوښتنه کې دې هيڅ لټي ونه کړه. په دې سره رسول

الله ﷺ د شهادت ګوته اسمان ته پورته کړه او د خلګو غونډې ته په اشاره يې
درې ځله وويل: اللهم اشهد، اللهم اشهد، اللهم اشهد. يعني اې الله! شاهد
اوسه چې ما ستا احکام او پيغام ستا بندګانو ته ورسول او دوی يې مني.
(مسلم، معارف الحديث)

تر دې وروسته بلال اذان او اقامت وکړ او رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ
ورکړ، ورپسې بلال ﷺ بيا اقامت ووايه او رسول الله ﷺ د مازيګر لمونځ
وکړ.

## پر عرفات درېدل:-

(کله چې رسول الله ﷺ د مازيګر او ماپښين لمونځ يو ځای وکړل) نو پر
خپله اوښه سپور د عرفات په ميدان کې په درېدو خاص ځای ته راغی، د
خپلې اوښې قصوا مخه يې هغې خوا ته کړه چې هلته د ډبرو لوی-لوی
کمرونه دي، د پياده کسانو ډله يې خپل مخ ته کړه او مخ يې قبلې ته واړاوه،
تر لمر لوېدو همالته وو، کله چې زېړوالی ختم او لمر پرېوتي ولوېد نو له
عرفات څخه مزدلفې ته روان شو.

## په مزدلفه کې پاتېدل:-

هلته په رسېدو يې د ماښام او ماخوستن لمونځونه يو ځای وکړل او د
دواړو لمنځونو تر منځ يې نفل يا سنت نه دي کړي، له دې بعد تر سپېده
چاوده ويده شو، د سهار په را رسېدو يې له اذان او اقامت سره د سهار لمونځ
وکړ، وروسته مشعر الحرام ته ولاړ. هلته په رسېدو يې مخ قبلې ته کړ په
دعا، تکبير، تهليل، تحميد او تمجيد بوخت شو، د رڼا تر غوړېدو هلته وو،

په لار کي يې ابن عباس ﷺ ته امر وکړ چي د ده لپاره د شيطانانو د ويشتلو اووه ډبرې راټولي کړي. هغه اووه شګې را واخيستلې ده په خپل لاس کي ونيولې او ويې ويل چي ويشتل داسي کوئ، په دين کي له غلو ځان ساتئ ځکه تر تاسو وړانديني د همدې غلو له وجې هلاک شول. (زاد المعاد)

## د شيطانانو ويشتل:-

رسول الله ﷺ تر لمر راختلو لږ وړاندي منى ته وخوځېد او ځان يې جمره عقبه ته ورساوه. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ سپور وو، د ناوې په کښته برخه کي تم شو، جمره يا شيطان يې په اوو شګو وويشت او له هرې يوې سره يې تکبير وايه، دا شګې د خزف د شګو په څېر وې (دومره وړې وې چي په ګوتو کي په تکيه کولو ويشتل کېږي او د نخودو له دانو سره برابرې وي) رسول الله ﷺ پر شيطان ډبرې له کښتې برخې وار کړې.

## د منى خطبه:-

د شيطان له ويشتلو په خلاصېدو منى ته راغى او يوه فصيحه و بليغه وينا يې وکړه په دې کي يې خلګ د قربانۍ د ورځې په حرمت، عظمت او د الله په نزد د هغې په فضيلت خبر کړل، پر ټولو سيمو يې د مکې فضيلت بيان کړ او د الله له کتاب سره سم د واکمني کوونکو د اطاعت لارښوونه يې وکړه. بيا يې وويل: خلګ دې له ده څخه د حج مناسک زده کړي او زياته يې کړه چي ممکن زه تر دې کال وروسته حج ونه کړاى شم، خلګو ته يې وويل چي تر ما وروسته کفر مه کوئ، د يوه بل غاړې مه وهئ. ورپسې يې د ده له خواد

دعوت امر وکړ او ويې ويل چې د هر خلک داسې وي چې مسئله د بل چا په وسيله ور ورسېږي خو تر او رېدونکي د ډېرې پوهې څښتن وي. په خپله خطبه کې يې وويل: خلک دې پر خپلو ځانونو ظلم نه کوي (الله د ده د خطبې په خاطر) د خلګو د اورېدو قوه غښتلې کړه ان د مدينې اوسېدونکو په خپلو کورونو کې د ده خطبه واورېده.

## د رسول الله ﷺ قرباني:-

ور پسې رسول الله ﷺ د قربانۍ لپاره راغی او د قربانۍ په ځای کې يې (۶۳) اوښان په خپل لاس حلال کړل او پاتې يې علي ﷺ ته وسپارل، نور د هغه له خوا حلال شول او رسول الله ﷺ پکې شريک وو. ور پسې يې وويل چې د قربانۍ له هر اوښ څخه دې يوه ټوټه واخيستل شي، ټولې يې په يوه دېګ کې پخې کړې. رسول الله ﷺ او علي ﷺ دواړو ترې غوښه وخوړله او شوروا يې وڅښله.

## د سر خرېيل:-

له انس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د ذی الحجې په لسمه له مزدلفې څخه منا ته راغی، لومړی يې جمرة العقبه وويشتله، بيا خپلې خېمې ته ولاړ او د قربانۍ حيوانات يې حلال کړل. وروسته يې حجام کوونکی را وغوښت د خپل سر راسته اړخ يې د هغه مخ ته کړ، ده يې د هغه اړخ وېښتان وخرېيل، رسول الله ﷺ ابو طلحه انصاري را وغوښت او وېښتان يې هغه ته ورکړل. ور پسې يې د خپل سر چپ اړخ حجامت کوونکي ته وروګرزاوه او ورته ويې ويل: دا خوا وخرېيه. ده هغه اړخ هم ور وخرېيه،

رسول الله ﷺ دا وېښتان هم ابو طلحه ته وسپارل او ويې ويل: دا وېښتان د خلکو تر منځ تقسيم کړه. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## طواف زيارت او زمزم:-

تر دې وروسته رسول الله ﷺ پر خپله اوښه بيت الله ته ولاړ او د ماپښين لمونځ يې په مکه کې وکړ، تر طواف وروسته بنو عبد المطلب ته ورغی چې خلکو ته يې د زمزم اوبه ورکولې، ده ورته وويل: که وېره نه وای چې نور خلک به پر تاسو غالب شي او دا خدمت به در څخه واخلي نو ما به هم اوبه درسره راکښلې وای. دوی رسول الله ﷺ ته د زمزم د اوبو ډکه سلواغه ورکړه او ده ترې وڅښلې. (مسلم، معارف الحديث)

## د رسول الله ﷺ وروستۍ خطبه او مدينې ته ستنېدل:-

رسول الله ﷺ په منی کې يوه خطبه تر نحر وړاندې ورکړې وه او دويمه خطبه يې د تشريق د ورځو په منځ کې وويله، په هغې کې يې زياته کړه چې نن د تشريق منځنۍ ورځ ده او دا ځای مشعر حرام دی. بيا يې وويل: ممکن له تاسو سره دويم ځل ونه شم ليدلای، په ياد ولرئ چې ستاسو وينې، ستاسو مالونه او ستاسو عزت پر يو بل داسې حرام دی لکه په دې ښار کې د نن ورځې حرمت، تر هغه وخته چې له خپل رب سره يو ځای کېږئ، بيا به هغه در څخه د خپلو اعمالو په اړه پوښتنه وکړي، خبردار! شاهد دې دا خبره غايب ته ورسوي. او ايا ما دعوت ورساوه؟.

### د رخصت طواف:-

رسول الله ﷺ د منی په دوو ورځو کي د ژر ستنېدو بیړه ونه کړه بلکي دريمه ورځ پاتي شو او د تشريق درې ورځې یې پوره کړې یعني د ذی الحجې پر دیارلسمه دوشنبه یې د ماپښين لمونځ وکړ او د محصب سیمې پر لور وخوځېد (دا یوه رېګستاني سیمه ده چي اوس د مکې د ښار یوه برخه ده) رسول الله ﷺ همدلته د ماپښين، مازیګر، ماښام او ماخوستن لمنځونه وکړل او یو څه ویده شو، ورپسي مکې ته راغی او په شپه کي یې د پیشلمي پر مهال د رخصت طواف ورکړ. په دې طواف کي یې رمل نه دی کړی او بیا د مدینې پر لور روان شو. (زاد المعاد)

## زکات او صدقه

### د زکات خوږوالی:-

له عبدالله بن معاویه ؓ څخه روایت دی چي ر سول الله ﷺ وویل: درې کارونه داسي دي چي که یې څوک وکړي د ایمان خوند به وڅکي یوازې د الله عبادت وکړي او په دې باور وي چي له الله پرته هیڅ د عبادت لایق نه شته، هر کال د خپل مال زکات په داسي توګه ورکړي چي نفس یې خوشاله وي او ورته هڅوي یې، د زکات مرتبه خو له دې څرګنده شوه چي له توحیٔد سره یې ذکر کړی دی او اثر یې له دې معلوم شو چي په دې سره د ایمان خوند ډېرېږي. (حیات المسلمین)

## د زکات پر نه ورکړه وعید:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که چا ته الله مال ورکړی وي او دی یې زکات و نه باسي د قیامت په ورځ به هغه مال ته د یوه ګنجي مار شکل ورکړل شي، پر دواړو سترګو به یې دوې نقطې وي دا د ول مار سخت زهرلري، هغه مار به د زکات نه ورکوونکي بخیل په غاړه کي واچول شي، د هغه دواړې شونډې به ونیسي، و به یې چیچي او ورته و به وایي چي زه ستا مال او را غونډ کړی دولت یم، د دې په تصدیق کي یې د آل عمران دا ایت ووایه:

ولا یحسبن الذین یبخلون ... یوم القیامة.

په دې ایت کي د مال د طوق یادونه ده چي ژباړه یې داسي ده: او بخیلان دي ګومان نه کوي چي الله په خپل فضل او کرم کوم مال ورکړی هغه ورته غوره دی بلکي د انجام له پلوه ورته شر او تاوان دی، د قیامت په ورځ به یې د غاړې طوق وي. (بخاري، نسایي، حیات المسلمین)

## صدقې ته هڅونه:-

له اسماء بنت ابی بکر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: پر الله په باور د هغه په لار کي له شمار لو پرته لګښت کوه، که حساب وکړې نو له تا سره به هم حساب وشي او که یې بې حسابه ورکړې نو دی به هم درباندي بې حسابه پیرزوینه وکړي، دنیا جوړه- جوړه او بنده مه ساته، که نه الله به هم درسره دا معامله وکړي. له همدې کبله چي څه کولای شې او وس یې لرې د الله په لار کي یې په خلاص لاس ورکړه. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د صدقې برکات: -

له انس ﷺ څخه روایت دی چې صدقه د الله غوسه سړوي او د بد مرګ مخه نیسي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

علي ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: تر وسه په خیرات کې بیړه کوئ ځکه بلا تر خیرات نه وړاندې کېږي. (رزین، حیات المسلمین)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: په صدقه مال نه کمېږي او په بخښنه انسان نه بې عزته کېږي بلکې الله یې لوړوي او عزت یې ډېرېږي، څوک چې د الله لپاره تواضع او خاکساري کوي الله به یې لوړ او پورته کړي. (مسلم، معارف الحدیث)

له انس بن مالک ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: انسان ته د اوو شیانو ثواب تر مرګ وروسته هم ورکول کېږي، سره له دې چې دی په قبر کې وي، چا چې بل ته علم ورښود، ویاله یې وایستله، څاه یې وکنبه، ونه یې کښېنوده، مسجد یې جوړ کړ، قرآن یې په میراث پرېښود او داسې اولاد یې تر شا پاتې شو چې تر مرګ وروسته یې ورته د مغفرت دعا کوله. (ترغیب)

ابن ماجه د ونې ایښودو او څاه کیندنې پر ځای د صدقې او مسافر خانې یادونه کړې ده. (حیات المسلمین)

## د صدقې مستحق: -

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: اصل مسکین هغه نه دی چې د غوښتلو لپاره خلکو ته ورځي، د سوال لپاره ګرزي، کله چې

یوه ګوله ډوډۍ یا دوې خورماوې په لاس کې ورکړل شي نو بیرته را ګرځي بلکې اصل مسکین هغه بنده دی چې د اړتیا لپاره هیڅ شی نه لري او څرنګه چې خپل حال له خلکو پټ ساتي نو دوی یې په اړتیا هم نه دي خبر چې په صدقه سره یې مرسته وکړي، دی هم له خلکو سوال نه کوي.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د خپلو اړتیاوو پټ ساتل:-

له عبدالله بن مسعود ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که انسان سخت اړ شي او نورو بندګانو ته ووايي، له هغو مرسته وغواړي نو له هغه مصیبت څخه به نجات ونه مومي او څوک چې یې الله ته وړاندې کړي او له هغه دعا وغواړي نو پوره امید شته چې الله به یې ژر دا اړتیا ختمه کړي، یا که یې د مرګ وخت راغلی وو مړ به یې کړي او یا به یو څه وخت وروسته خوشالي ورکړي. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

له عمر بن الخطاب ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به کله ما ته یو څه راکول نو ورته ویل به مې چې داسي چا ته یې ورکړه چې تر ما سخت اړ وي، رسول الله ﷺ به ویل چې دا واخله او خپل ملکیت یې وګرزوه، که دي خوښه وي بیا یې یو اړ کس ته ورکړه (او دا اصول خپل کړه چې) کله مال تر لاسه کوې نو داسي یې تر لاسه کړه چې نه دي یې سوال کړی وي او نه دي په زړه کې د هغه تمه او غوښتنه وي (د الله د ورکړې په ګڼلو یې) واخله او کوم مال چې په دا ډول درته را نه شي د هغه لور ته توجو هم مه کوه.

(صحیحین، معارف الحدیث)

## د صدقې حقیقت:-

له ابو ذر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د خپل ورور د خوشالۍ په خاطر لږ موسکا او ښه خبره هم صدقه ده، یو څوک له بدۍ را ګرزول هم صدقه ده، لار ورکي ته لار ښودل هم صدقه ده، د چا چي سترګې کمزورې وي له هغه سره مرسته هم صدقه ده، له لارې څخه د ډبرې، ازغي او هډوکو لرې کول هم ستاسو لپاره صدقه ده او له خپلې سلواغې څخه د ورور په سلواغه کي اوبه اچول هم صدقه ده. (ترمذي، ترجمان السنة)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: لوړ لاس تر ټیټ لاس غوره دی، ته له خپلې کورنۍ شروع کوه، کورنۍ څوک دي ستا مور، پلار، خور او ورونه، بیا چي تر هغو در نژدې وي او بیا تر هغو. (مسلم، بخاري، معارف الحدیث، طبراني)

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي پر ځان، اولاد، کورنۍ او خپلوانو لګښت وکړي نو دا صدقه ده.
(طبراني، معارف الحدیث)

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي درې نجونې ولري، علم ور زده کړي، رحم پرې وکړي، ویې پالي نو هغه ته جنت واجب شو. یو چا وویل: اې د الله رسوله! که دوې وي؟. ده وویل: که څه هم دوې وي. ځینو خلګو ویلي چي که د یوې پوښتنه شوې وای نو هم به ده مثبت ځواب ورکړی وو. طبراني یې د نکاح یادونه هم وکړه.
(احمد، بزار، طبراني)

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که کوم مسلمان ونه کښېږدي او یا کښت وکړي نو له هغه کښت او میوې څخه چي انسان، مرغه او یا حیوان خوراک وکړي نو د ده لپاره به اجر او صدقه وي.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي ده رسول الله ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله! کومه صدقه غوره ده؟. ده وویل: هغه صدقه غوره ده چي غریب سړی یې په خپله وګټي او بیا یې پر هغه چا ولګوي چي دی یې مسئول دی.
(سنن ابی داود، معارف الحدیث)

## د بدن پر هر بند صدقه:-

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د هر انسان په بدن کي درې سوه اته بندونه دي، نو چا چي الله اکبر، یا الحمدلله، یا لا اله الا الله، یا سبحان الله او یا استغفر الله وویل، هره یوه یې صدقه بلل کېږي او دا هم صدقه ده چي څوک له لارې ضرري شی لرې کړي.

(ترجمان السنة، ادب المفرد)

له رسول الله ﷺ څخه روایت دی چي که تاسو نور څه نه شئ کولای نو له بې وزلو سره مرسته وکړئ. (بخاري)

همدا راز یې ویلي: بې لارې او ړانده ته لار ښودل هم صدقه ده.

(ترمذي)

دا یې هم ویلي چي که څوک پر لار د تلو پر مهال د لارې ازغی لرې کړي نو الله یې د دې کار درناوی کوي او ګناه یې بخښي. (ترمذي، سیرت النبي)

## د ثواب بخښل صدقه ده:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ ته یو سړی راغی او ویې ویل: زما پلار وفات شوی او په میراث کي یې مال پرېښی دی، د صدقې او نورو وصیت یې نه دی کړی نو که زه د هغه له خوا صدقه وکړم نو ایا زما صدقه به د هغه لپاره د ګناهونو کفاره او د مغفرت و نجات وسیله شي؟. ده وویل: له الله څخه یې هیله شته. (تهذیب الاثار لابن جریر، معارف الحدیث)

# هجرت، جهاد او شهادت

## هجرت:-

له عمر بن الخطاب ﷺ څخه روایت دی چي له رسول اللهﷺ مي واورېدل ویل یې: هر عمل په نیت پوري تړلی دی او انسان ته به له نیت سره سم اجر ورکول کېږي، نو چا چي د الله او رسول لپاره هجرت وکړ نو د هماغوی لپاره دی. څوک چي د دنیوي غرض او یا ښځې د نکاح په خاطر هجرت وکړي نو د څه لپاره چي یې هجرت کړی په هماغه مو څه دی.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل چي الله وایي: څوک چي زما په لار کي د جهاد صرف پر ما د ایمان او زما د رسول د تصدیق له کبله کور پرېږدي نو الله یې ضامن دی، یا به یې جنت ته داخل کړي او یا به یې خپل کور ته له ثواب او غنیمت سره بریالی راولي، په هغه ذات قسم چي د محمد ځان یې په ولکه کي دی هغه به د الله په لار کي هیڅ زخم تر لاسه نه

کړي مگر د قیامت په ورځ به داسي راشي چي زخم به یې تازه او سور وي، د مشکو په څېر بوی به یې ځي او قسم په هغه ذات چي زما ځان یې په لاس کي دی که پر مسلمانانو سخته نه وای نو زه به د جهاد له هیڅ لښکر څخه شا ته نه وای پاتي شوی، نه زه دومره وس لرم چي هر چا ته سپرلی ورکړم، نه مسلمانان دومره وس لري او دا ورته سخته ده چي زه ولاړ شم او دوی شا ته پاتي شي. قسم په هغه ذات چي زما ځان یې په ولکه کي دی بې شکه زما هیله داده چي د الله په لار کي جهاد وکړم، شهید شم، بیا جهاد وکړم او بیا شهید شم. (معارف الحدیث، مسلم)

له ابو هریره ﷛ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: که څوک په داسي حال کي مړ شي چي نه یې جهاد کړی وي او نه یې په زړه کي هیله لري نو د نفاق له یوه صفت سره مړ شو. (مسلم)

تشریح:-

معنا داسي ژوند چي پکي د ایمان له دعوې سره - سره هیڅکله نه جهاد ته اړتیا پیښه شي او نه یې په زړه کي هیله لري، دا د منافق ژوند دی او څوک چي په دې حال کي له دنیا ځي هغه به العیاذ بالله د نفاق له یوه صفت سره ځي. (معارف الحدیث اول جلد)

**شهادت:-**

له انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: که څوک د زړه له اخلاصه شهادت وغواړي نو که شهید نه شي هم د شهادت درجه ورکول کېږي. (مسلم)

له جابر بن عتيقؓ څخه په يوه اوږده حديث کي روايت دی چي رسول اللهﷺ وويل: خلک څه شي ته شهادت وايي؟. وويل شول چي د الله په لار کي وژل کېدو ته. ده وويل: د الله په لار کي له وژل کېدو پرته او وه نور شهادتونه دي: ۱) د هيضې له ناروغۍ مړ کېدونکی ۲) په اوبو کي غرق شوی. ۳) د ذات الجم له ناروغۍ مړ کېدونکی. ۴) له طاعون څخه مړ شوی. ۵) سوځېدلی. ۶) له ودانۍ څخه په را غورځېدو مړ شوی. ۷) هغه ښځه چي ماشوم يې په نس وي او د نه پاتي کېدو له وجې ومري. دا ټول شهيدان دي. (ابو داود، نسايي، ابن ماجه، معارف الحديث)

# معاملات

## حقوق

### د ځان حقوق:-

له عبدالله بن عمرو بن العاصؓ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ د شپې له پر له پسې ويښتيا او نفلي روژو منعه کړې ده. ويلي يې دي چي ستا بدن او سترګې پر تا حق لري. (بخاري، مسلم، حيات المسلمين)

فايده:-

مطلب يې دا دی چي د ډېر تکليف او ويښېدو له امله صحت خرابېږي او سترګې ديد له لاسه ورکوي. له عمرو بن ميمونؓ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ يوه سړي ته په نصيحت کي وويل: پنځه شيان تر پنځو شيانو وړاندي غنيمت وبوله او د دين د کارو وسيله يې کړه: ۱) ځواني تر بوډاتوب

وړاندي. ۲) روغتیا تر ناروغۍ وړاندي. ۳) شتمني تر بې وزلي وړاندي. ۴) خوشالي تر خپګان وړاندي. ۵) ژوند تر مرګ وړاندي.

(ترمذي، حیات المسلمین)

له ابو الدرداء ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله ناروغي او دوا دواړه نازل کړي دي او د هرې ناروغۍ لپاره یې دوا را منځ ته کړې ده نو تاسو علاج کوئ او له حرامو شیانو ځان وساتئ. (ابوداود)

په دې کي د روغتیا تر لاسه کولو ښکاره لارښوونه ده.

(حیات المسلمین)

فایده:-

رسول الله ﷺ ویلي چي لاندي شیان د سالم فطرت تقاضا ده: سنتي، تر نامه لاندي وېښتان صفا کول، د بریتونو کمول، د بغلونو وېښتان اخیستل او تر څلوېښتو ورځو یې د زیات پرېښودلو اجازه نه شته. (مسلم، الادب المفرد)

**د مور و پلار حقوق:-**

۱) له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! له خپل مور و پلار سره ښه کوئ نو ستاسو اولادونه به هم در سره ښه کوي. (ابو الشیخ فی التوبیخ، الادب المفرد)

۲) له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته وویل: د الله تر ټولو خوښ عمل کوم دی؟. ده وویل: پر خپل وخت لمونځ کول. ما وویل: تر دې وروسته؟. ده وویل: له مور او پلار سره ښه چلند کول. ما وویل: بیا؟. ده وویل چي د الله په لار کي جهاد کول. (بخاري، مسلم)

۳) په حدیث کي دي چي که څوک پراخه روزي او اوږد عمر غواړي نو په کار ده چي خپلوي وپالي او له مورو پلار سره ښه چلند وکړي. (مسند احمد، الادب المفرد)

۴) په حدیث کي دي چي د الله رضا د مورو پلار په رضا او غوسه یې د مورو پلار په غوسه کي ده. (الادب المفرد)

۵) له الله سره شرک او د مور و پلار نافرماني لوی ګناهونه دي.

۶) الله پر درو کسانو جنت حرام کړی دی چي یو پکي د مور و پلار ازاري هم دی. (الادب المفرد، احمد)

۷) د هري ګناه په بدل کي عذاب او د هر جرم سزا وروسته کېدای شي خو د مورو پلار د نافرمانی سزا دومره سخته ده چي تر مرګ وړاندي ورکول کېږي. (الادب المفرد، حاکم)

۸) د پلار له دوستانو سره ښه کول په خپله له هغه سره ښه کول دي. (الادب المفرد)

۹) څوک چي د خپل مور و پلار تر مرګ وروسته د هغوی پور ادا کوي او د دی ور ښودل شوي خبري مني نو که څه هم په ژوند کي یې د هغوی نافرماني کړې وي نو د الله په نزد یې امر منونکی بلل کېږي او څوک چي د خپل مور و پلار تر مرګ وروسته نه د هغوی پور ادا کوي او نه یې منل شوی نذر، نو دی که څه هم په ژوند کي د هغوی فرمانبردار وي نو بیا هم د الله په نزد نافرمان بلل کېږي. (الادب المفرد)

**له مور سره ښه چلند:-**

۱۰) بهز بن حاکم له خپل پلار او هغه له خپل نیکه څخه روایت کوي چي ما له رسول اللهﷺ پوښتنه وکړه: زه له چا سره ښه وکړم؟. ده وویل: له خپلې مور سره. ما بیا وپوښتل: له چا سره ښکي وکړم؟. ده وویل: له خپلې مور سره. ما دریم ځل بیا خپله پوښتنه تکرار کړه نو ده بیا وویل چي له مور سره. څلورم ځل مي وپوښتل چي له چا سره ښه وکړم؟. نو ده وویل: له خپل پلار سره او بیا چي دي څوک ډېر خپل وي له هغه سره. (الادب المفرد، مشکوة)

۱۱) ابن عباس رضي الله عنه وایي: د چا چي مور و پلار مسلمانان وي او سهار و ماښام یې د ثواب په نیت خدمت او پوښتنه کوي نو الله ورته د جنت دوې دروازې خلاصوي او که په مور و پلار کي یو وي نو د جنت یوه دروازه خلاصوي. که یې په دواړو کي یې یو خپه او یا غوسه کړ نو څو چي ترې راضي شوی او خوشاله شوی نه وي الله ترې نه خوشاله کېږي. په حاضرینو کي یو چا وویل: و ان ظلماه؟ قال و ان ظلماه. یعني که څه هم مور و پلار پرې ظلم کړی وي نو رسول اللهﷺ وویل: که څه هم هغوی پرې ظلم کړی وي.

فایده:-

له دې معلومه شوه چي مور و پلار ډېر حق لري، ان که دوی د خپل اولاد په هکله داسي کار وکړي چي د انصاف خلاف وي نو هم یې باید له اطاعت څخه سرغړونه ونه شي ځکه د الله رضا د مور و پلار له رضا او خوښې سره تړلې ده. (الادب المفرد)

۱۲) رسول اللهﷺ ویلي: هغه دي خوار وي، هغه دي خوار وی، هغه دي خوار وي. خلکو وپوښتل: اې د الله رسوله! څوک؟. ده وویل: هغه څوک

چې خپل مور و پلار دواړه یا یو یې بوډاتوب ته ورسېږي او دی یې په خدمت جنت ته ولاړ نه شي. (مسلم، الادب المفرد)

۱۳) له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وایي: هر اولاد چې خپل مور و پلار ته په مینه ګوري نو په بدن کې یې الله د مقبول حج ثواب ورکوي. خلګو پوښتنه وکړه چې اې د الله رسوله! که په ورځ کې سل ځله په مینه ورته وګوري نو ده وویل: که سل ځله ورته وګوري نو هم الله ډېر لوی او ښخي پاک دی. (مسلم، معارف الحدیث)

۱۴) یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی او ویې ویل: اې د الله رسوله! زه مال لرم او پلار مي ورته اړ دی. رسول الله ﷺ وویل: ته او مال دواړه دي د مور و پلار ریاست، بې شکه ستاسو اولاد ستاسو پاکه ګټه ده ځکه نو د خپل اولاد له ګټې بې تکلفه خوراک کوئ. (ابن ماجه، ابوداود)

## تر مرګ وروسته د مورو پلار حق:-

۱۵) یو چا وویل چې اې د الله رسوله! تر مرګ وروسته له مورو پلار سره د ښه چلند کوم سورت شته، ده وویل: هغوی ته دعا کول، د دوی لپاره مغفرت غوښتل او وصیت یې پوره کول، له خپلوانو سره صرف د دوی لپاره صله رحمي کول او د هغوی د دوستانو درناوی کول.

(مشکوة، ابوداود، الادب المفرد)

۱۶) له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک په ژوند د مور و پلار تابع نه وي او په مور و پلار کې یې یو یا دواړه په همدې حالت کې مړه شول نو ده ته په کار ده چې پر له پسې مور و پلار ته دعا وکړي

او له الله ورته مغفرت وغواړي تر دې چې الله يې د خپل رحمت له مخې په ښکانو کي وليکي. (بيهقي)

۱۷) دا هم بايد د مور و پلار د خدمت پوره کول وبلل شي چې تر مرګ وروسته يې له ملګرو او دوستانو سره ښه چلند وشي.

(بخاري، الادب المفرد)

## د مور و پلار د دوستانو حق:-

۱۸) رسول الله ﷺ ويلي چي د خپل پلار د دوستانو خيال ساتئ او اړيکې ورسره مه غوڅوئ چي په دې سره به مو نور له منځه ولاړ شي.

(الادب المفرد)

## پر مور و پلار لعنت ويل:-

۱۹) رسول الله ﷺ په يوه حديث کي ويلي چي پر خپل مور و پلار لعنت ويل تر ټولو لويه ګناه ده. يو چا وويل چي اې د الله رسوله! يو څوک څرنګه پر خپل مور و پلار لعنت ويلای شي؟. ده وويل: داسي چي دی د بل مور و پلار و ښکنځي نو هغه به هم د ده مور او پلار ته بد وايي.

(بخاري، سيرت النبي)

## د ښځې او مېړه حقوق:-

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خپلو مېرمنو تر منځ حقوق مساوي وېشل او ويل به يې چي اې الله! دا په هغه څه کي زما وېش دی چي وس يې لرم نو پر هغه څه مي مه ملامتوه چي ستا په قبضه کي دي نه زما (يعني مينه.) (ترمذي)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ته وويل شول: کومه ښځه تر ټولو ښه ده؟. ده وويل: هغه چي کله مېړه ورته وګوري خوشاله شي، کله چي حکم ورته وکړي ويې مني او د خپل شخصيت او مال په اړه د ناسمې خبرې له وجې يې مخالفت ونه کړي. (نسايي، حيات المسلمين)

فايده:-

خوښي، اطاعت او موافقه څومره لويې ګټې لري؟. (حيات المسلمين)

په يوه حديث کي دي چي کله مېړه دباندي ولاړ شي نو په نه شتون کي يې کور او امانت وساتي. (سنن ابی داود)

له حاکم بن معاويه ﷺ څخه روايت دی چي ما وويل: اې د الله رسوله! مېرمنې پر موږ څه حقوق لري؟. ده وويل: تاسو چي څرنګه خوراک کوئ دوی ته يې هم ورکړئ، څه ډول جامې چي اغوندئ دوی ته يې هم ور واغوندئ او پر مخ يې مه وهئ، مه يې زوروئ او مه ورسره ناسته-پاسته پرېږدئ خو په کور کي دننه. (ابوداود، حيات المسلمين)

ام سلمه ﷺ وايي چي که کومه مېرمن په داسي حال کي وفات شي چي مېړه ترې راضي او خوشاله وي نو جنت ته به ځي. (ترمذي)

ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: څلور شيان داسي دي چي که يې څوک ترلاسه کړي نو د دين او دنيا خير به يې په نصيب شي: ۱) شاکر زړه، ۲) په هر حال کي د الله يادوونکې ژبه، ۳) پر ستونزو صبر کوونکی بدن، ۴) هغه ښځه چي په خپل ځان او د مېړه په مال کي خيانت ونه کړي. (بيهقي، مشکوة)

عائشه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: پر ښځه تر ټولو لوی حق د مېړه او پر نارينه تر ټولو لوی حق د مور دی. ابن عباس ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: د درو کسانو لمونځ نه قبلېږي: يو هغه چي پر خلکو مشر وي او د هغوی نه وي خوښ. دويم هغه ښځه چي مېړه تري خپه وي او د ارام خوبونه کوي. درېيم هغه انسان چي له خپل ورور سره اړيکې غوڅوي. (بخاري)

له معاذ بن جبل ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: مومني ښځې ته روا نه ده چي د خپل مېړه کور ته داسي څوک را پرېږدي چي د هغه نه وي خوښ او په داسي ډول له کوره ووزي چي د هغه نه خوښېږي، ښځه دي د مېړه په معامله کي د هيچا اطاعت نه کوي. (الترغيب والترهيب)

رسول الله ﷺ ويلي چي کله نارينه د شپې خپله مېرمن را ويښوي او دواړه يو ځای دوه رکعته لمونځ کوي نو د دواړو نوم په ذکر کوونکو کي ليکل کېږي. (ابو داود)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک دوې مېرمنې ولري او تر منځ يې انصاف ونه کړي نو د قيامت په ورځ به په داسي حال کي راشي چي نيم بدن به يې نه وي. رسول الله ﷺ ويلي چي کله ښځه پنځه وخته لمونځ وکړي، خپل عفت وساتي او د خپل مېړه اطاعت وکړي نو پر کومه دروازه چي وغواړي جنت ته تلای شي. (الترغيب و الترهيب)

رسول الله ﷺ ويلي: الله به د قيامت په ورځ هغې ښځې ته د رحمت په نظر هم ونه ګوري چي د خپل مېړه احسان منونکې نه وي، حال دا چي ښځه هر وخت خاوند ته محتاجه وي. (نسايي، الادب المفرد)

رسول الله ﷺ ویلي: د مومن لپاره تر الهي وېرې وروسته له هر څه ګټور خیر او نعمت شی مېرمن ده چې کله د یو کار ورته ووایي نو په خوښۍ یې کوي او کله چې ورته وګوري نو خوشاله شي، کله چې د دې په اعتماد قسم وکړي پوره کوي یې او کله چې دی یو خوا ته ولاړ شي دا یې په غیاب کې خپل عزت او عفت ساتي، د مېړه په مال او وسایلو په څارنه کې د هغه خواخوږې او وفاداره وي. (ابن ماجه، الادب المفرد)

## د اولاد حقوق:-

رسول الله ﷺ ویلي:

۱) اې مسلمانانو! الله غواړي چې تاسو له اولادونو سره په چلند کې بې انصافي ونه کړئ. (طبراني)

۲) کوم مسلمان چې خپله لور ښه وروزي، ښه تعلیم ورکړي او په پالنه کې یې زحمت وکاږي نو هغه به د دوزخ له اور څخه خوندي وي.

۳) اې مسلمانانو! خپل ماشوم په ښه ډول وروزئ. (طبراني)

۴) رسول الله ﷺ ویلي: خپلو ماشومانو ته په اووه کلنۍ کې د لمانځه سپارښتنه وکړئ او پر لس کلنۍ سزا ورکړئ. دې عمر ته تر رسېدو وروسته یې بسترې جلا کړئ. (مشکوة)

۵) رسول الله ﷺ ویلي: مور و پلار چې اولاد ته څه ورکولای شي په دې ټولو کې غوره ورکړه د اولاد ښه ښوونه او روزنه ده. (مشکوة)

۶) تاسو به د قیامت په ورځ په خپلو او د پلار په نومونو را بلل کېږئ نو ښه نومونه غوره کړئ. (ابوداود)

۷) په کوم نامه کي چي د بندګۍ او الهي ستاینې څرګندونه وي د الله دپر خوښ دی. (بخاري)

۸) تر هر څه وړاندي باید پر خپل اهل و عیال لګښت وشي او بیا پر هغو کسانو چي نژدې خپلوان وي. (طبراني)

۹) که یو دینار د الله په لار، بل د مریې په ازادولو، بل مسکین ته په ورکړه او بل پر خپل اهل و عیال خرڅ شي نو په ټولو کي د اجر او ثواب له مخې غوره هغه ده چي د خپلې کورنۍ او اهل و عیال پر نفقه ولګول شي.

## د اولاد نوم او ادب:–

۱۰) له ابو وهبؓ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: د رسولانو نومونه پر ځان بردئ، د الله په نزد تر ټولو غوره نوم عبدالله او عبد الرحمن دي او تر ټولو ربښتني نومونه حارث او همام دي. (ابوداود، نسایي)

۱۱) له حبهؓ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: د چا چي درې ماشومان تر بلوغ وړاندي مړه شي نو د قیامت په ورځ به یې د جنت دروازې ته راولي چي دننه شئ. دوئ به ووایي چي مور هغه وخت داخلېږو چي مور و پلار مو هم داخل شي. نو دوی ته به وویل شي چي تاسو هم داخل شئ او ستاسو مور و پلار دي هم داخل شي. (طبراني، کبیر)

## د لوڼو پالنه:–

۱۲) په حدیث کي دي چي کله د چا لور پیدا شي نو الله فرښتې ورلېږي او وایي: اې د کور څښتنانو! پر تاسو دي سلام وي، پر نجلۍ وزر غوړوي او پر سر یې د لاس په تېرولو وایي: دا یو کمزوري موجود دی چي له

کمزوري وجود ځخه پیدا شوی دی، څوک چي یې پالنه او روزنه وکړي نو په قیامت کي به د الله مرسته ورسره وي. (طبراني)

۱۳) رسول الله ﷺ وویل: هر څوک چي د لوڼو په پیدا ایښت وازمویل شي او دی د ښه چلند په کولو دا امتحان ورکړي نو هغه نجوني به د قیامت په ورځ د ده لپاره د جهنم د اور په وړاندي ډال وګرزي. (مشکوة)

## نېک اولاد:-

۱۴) له ابو هریره رضی الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په مرګ سره د انسان د اعمالو لړی ختمیږي، خو د درو شیانو د ثواب سلسله یې روانه وي: لومړی صدقه جاریه، دویم ګټور علم او درېیم نېک او صالح اولاد چي ده ته دعا کوي. (الادب المفرد)

## وصیت:-

۱۵) په حدیث کي دي چي که له کوم مسلمان سره د وصیت کولو وړ شی وي نو باید دوې شپې داسي ورباندي تېري نه شي چي له ده سره یې وصیت موجود نه وي.

۱۶) په حدیث کي دي چي که یوه زوی ته شی ورکوئ نو بل ته یې هم ورکړئ که نه دا بې انصافي ده. (ترمذي)

## ناروا وصیت:-

۱۷) له ابو هریره رضی الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: یو نارینه او ښځه شپېته کاله د الله په عبادت او اطاعت کي تېروي، بیا یې د مرګ وخت راځي نو د وصیت په وسیله وارثانو ته زیان رسوي، د داسي کسانو

لپاره جهنم واجب دی، تر دې حدیث وروسته ابو هریره رضی الله عنه د حدیث د مضمون په تائید کي دا قرآني ایت ووایه: من بعد وصیة یوصی بها او دین غیر مضار ترو ذالک الفوز العظیم پوري. (مسند احمد)

## د خوندو او وروڼو حقوق

### د مشر ورور، خور او لوڼو حق:-

رسول الله ﷺ ویلي چي مشر ورور پر کشر ورور داسي حق لري لکه پلار پر زامنو. (مشکوة، حیات المسلمین)

انس رضی الله عنه وایی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک دوې یا درې لوڼې او دوې یا درې خوندې تر هغو وپالي چي ترې بېرېږي او یا مري نو زه او هغه به په جنت کي د دې دوو ګوتو په څېر یو، ده د شهادت او منځ ګوتې ته شاره وکړه، د یوې لور او خور هم دا حکم دی. (الادب المفرد)

## د یتیم حق

### پر یتیم رحم کول:-

رسول الله ﷺ وویل: څوک چي له یتیم هلک یا نجلۍ سره ښېګي کوي زه او دی به په جنت کي داسي یو لکه د لاس دا دوې ګوتې.

(حاکم عن انس الادب المفرد)

له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د مسلمانانو په کورونو کي تر ټولو ښه کورنۍ هغه ده چي پکي له موجود یتیم سره ښه چلند کېږي او د مسلمانانو تر ټولو بده کورنۍ هغه ده چي پکي له موجود یتیم سره بد چلند کېږي. (ابن ماجه)

د یتیم د مال خوړونکی به په داسي حال کي له قبر څخه را پورته شي چي له خولې به یې د اور لمبې وزي. (ابو یعلی)

**د یتیم پالنه:-**

له اوف بن مالک ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: زه او د تورو بارخوګانو مېرمن به د قیامت په ورځ دا ډول یو (د حدیث راوي یزید بن زریع د شهادت او منځنۍ ګوتې لورته په اشاره وویل چي داسي به سره نژدې یو) د تورو بارخوګانو د مېرمنې په تشریح کولو یې وویل چي له دې څخه مراد هغه مېرمن ده چي مېړه ې وفات شي او یا طلاق ورکړي او دا ښکلا لري خو د خپلو یتیمو ماشومانو د ساتنې له کبله بله نکاح ونه کړي او خپل خواهشات یې ساتلي وي تر دې چي ماشومان یې ځوانان او یا له دې بېل یا مړه شي. (ابوداود، مشکوة، حیات المسلمین)

**له یتیم سره مینه او پر هغه شفقت:-**

رسول الله ﷺ ویلي: څوک چي صرف د الله لپاره د یتیم پر سر لاس تېر کړي نو د هغه د وېښتانو په شېر نېکی به ورکړل شي او څوک چي له یتیم هلک یا نجلۍ سره احسان وکړي نو زه او دی به په جنت کي داسي یو لکه د شهادت او منځ ګوته. (بهشتي زیور)

**صله رحمي:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې خلکو! تاسو باید د خپل نسب په اړه دومره معلومات حتما ولرئ چي په وسیله یې له خپلو خپلوانو سره صله رحمي وکړای شئ (مثلا پلار، نیکه، مندې، اناګانې

او د هغوی اولاد، نارینه او ښځې باید دا هر څه وپېژني او د دې نوموړنه حتما یاد کړي چې دا ذوی الارحام بلل کېږي او له دوی سره د صله رحمي کولو امر شوی دی) ځکه د صله رحمي په کولو د خپلوانو تر منځ مینه پیدا کېږي، په مال کې برکت لوېږي او عمر زیاتېږي. (مسلم)

ابو هریره ﷺ وایي چې یو چا وویل: اې د الله رسوله! زما یو څو خپلوان عجیب طبیعت لري زه ورسره صله رحمي کوم او دوی یې نه کوي، زه له دوی سره نېکي کوم او دوی حماقت کوي. رسول الله ﷺ یې په ځواب کې وویل: که هغوی واقعا داسي وي لکه ته چې وایې نو ګواکي د دوی په خولو کې ګرمې ایرې اچول کېږي (ستا ورکړه دوی ته حرامه ده او د دوی نس ته د اور اچولو حکم لري) الله به تر هغو همېشه د دوی په مقابل کې درسره مرسته کوي چې ته پر دې صفت ولاړ یې. (مسلم، الادب المفرد)

رسول الله ﷺ ویلي چې د هرې جمعې په شپه د خلګو اعمال د الله حضور ته وړاندې کېږي نو الله د صله رحمي ماتوونکو اعمال نه مني.

(الادب المفرد)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک درې شیان ولري نو الله به ورسره په اسانۍ حساب وکړي او په خپل رحمت به یې جنت ته داخل کړي. پوښتنه وشوه چې اې د الله رسوله! دا څه دي؟. ده وویل: څوک چې مو بې برخې کوي ورکوئ یې، څوک چې له تاسو سره خپلوي شکوي تاسو یې پالئ او څوک چې پر تاسو ظلم وکړي ویې بخښئ، که داسي وکړئ نو الله به مو جنت ته داخل کړي.

(طبراني، حاکم، الادب المفرد)

رسول الله ﷺ ویلي: الله وایي چې زما نوم الله او رحمان دی، ما خپل نوم له رحم څخه مشتق کړی دی څوک چې یې وصلوي زه به یې وصلوم او څوک چې صله رحمي غوڅوي نو زه به یې هم غوڅوم. (ترمذي، ابوداود)

(د شعبان د پنځلسمې په شپه نژدې ټول خلک ازادېږي یعني بخښل کېږي مګر د خپلوي نه پالونکی، د مور و پلار ازاري او د شرابو عادي دا درې سره په دې شپه هم نه ازادېږي.) (بیهقي، ترمذي، ابوداود)

## د ګاونډي حقوق:-

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: زما دې په هغه رب قسم وي چې زما روح یې په واک کې دی هیڅوک تر هغو مسلمان نه دی څو د خپل ګاونډي لپاره هغه خیر و نه غواړي چې ځان ته یې غواړي.
(صحیح مسلم، الادب المفرد)

له معاویه بن حیده ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د ګاونډي حق دا دی چې کله ناروغ شي نو پوښتنه یې وشي او په جنازه کې یې ونډه واخلي، که پور وغواړي نو پور ورکړي، که لوږ وي نو جامه ورکړي، که خوښي تر لاسه کړي مبارکي ورته وواياست، که غم پرې راشي تسلي ورکړئ او خپل کور تر هغه لوړ مه جوړوئ چې دی له هوا څخه بې برخې شي او د خپل نغري په دود ضرر مه ور رسوئ. (طبراني)

رسول الله ﷺ ویلي چې کله یو مسلمان مري او درې نژدې ګاونډیان یې د خیر شاهدي ورکوي نو الله وایي: ما د خپلو بندګانو شاهدي د هغوی له علم سره سمه منلې او په څه چې زه پوهېږم هغه مې بخښلي دي. (مسند احمد)

### د دوست حق :-

له ابن عون ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د خپل دوست او درناوی په داسي ډول مه کوئ چي پر هغه تکلیف شي.

فایده :-

له هر چا سره د هغه د مرتبې برابر چلند کوئ. (الادب المفرد)

## د مسلمانانو حقوق

### د مسلمان ساتنه :-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: پوره مسلمان هغه دی چي د ژبې او لاس له ضرر څخه یې بل مسلمان خوندي وي او پوخ مهاجر هغه دی چي الله څه منعه کړي، دی یې پرېږدي.

(بخاري، مسلم)

ترمذي او نسايي پر دې حدیث دا زیاتونه هم کړې ده چي کامل مومن هغه دی چي خلک یې د خپل ځان او مال په اړه امانتدار وبولي.

(ترجمان السنة)

### د دوستانو بېلتون :-

له عبد الرحمن بن غنم او اسماء بنت یزید څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د الله په بندګانو کي هغه کسان تر ټولو بد دي چي شیطانت کوي او دوستان سره بېلوي. (احمد، بیهقي)

## د ملګرو زړه ماتول:-

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: حتما له خپل ورور سره مه بحث کوئ او مه داسي خبرې کوئ چي د ده زړه مات شي، داسي وعده هم مه ورکوئ چي پوره کولای يې نه شئ. (ترمذي)

البته که يې د يو عذر له کبله پوره نه کړای شي نو معذور دی.

زيد بن ارقم ﷺ له رسول الله ﷺ څخه روايت کړی چي که څوک له خپل ورور سره وعده وکړي او هغه مهال يې د پوره کولو نيت وي خو دی يې پوره نه کړای شي، يا يې پر يوه وخت د راتګ وعده کړې وي خو را نه شي (يو عذر ورپېښ شي) نو ګناهګار نه دی. (ابوداود، ترمذي، حيات المسلمين)

## د مشورې ورکول:-

له جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک له خپل ورور څخه مشوره وغواړي نو بايد ورېې کړي.

(ابن ماجه، حيات المسلمين)

## پر خلکو رحم کول:-

له جرير بن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: الله پر هغه چا رحم نه کوي چي پر خلکو رحم نه کوي. (بخاري، مسلم)

## مسلمان سپک بلل:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د يو چا لپاره دا شر کافي دی چي خپل مسلمان ورور سپک وبولي، د يوه مسلمان هر څه

پر بل حرام دي، (مثلاً د هغه ځان، مال او ابرو ته تاوان رسول، د هغه عیب بیانول او د هغه غیبت کول.) (ترمذي)

**له ملګري سره لیدل:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: کوم وخت چي یو مسلمان د خپل ورور پوښتنه کوي یا یې لیدنې ته ورځي نو الله وایي چي ته هم پاک یې او تګ دي هم، تا په جنت کي خپل ځای جوړ کړ. (ترمذي)

**د مسلمان حقوق:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي یو مسلمان پر بل شپږ حقوق لري. پوښتنه وشوه چي هغه کوم دي؟. ده وویل:

۱) د لیدنې پر مهال سلام کول.

۲) د مېلمستیا بلنه منل.

۳) کله چي له تا خواخوږي وغواړي نو له هغه سره خواخوږي ښودل.

۴) کله چي د پرنجي پر مهال الحمدلله ووایي نو یرحمک الله ویل.

۵) کله چي ناروغ شي د هغه پوښتنه کول.

۶) په جنازه کي ګډون. (ترمذي، حیات المسلمین)

**د اړیکو غوځول:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: هیچا ته نه ده روا چي له مسلمان سره تر درو ورځو زیاتې اړیکې غوځې کړي، کله چي درې ورځې پوره شي نو دی دي ورسره وویني او سلام دي ور واچوي، که هغه د سلام ځواب ورکړ نو دواړه به په ثواب شریک وي او که یې د سلام

ځواب ورنه کړنو د سلام کوونکي مسئولیت ختم شو او د اړیکو غوڅولو ګناه پرې نه شته. (بخاري، مسلم، الادب المفرد)

## د مسلمان د عزت ساتنې حق:-

له جابر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که یو څوک بل مسلمان په داسې ځای کې خوار کړي چې هلته یې بې عزتي وي او یا یې عزت کمېږي نو الله به یې په داسې ځای کې خوار کړي چې دی به د الله مرسته غواړي او که یې په داسې ځای کې مرسته وکړي چې هلته د هغه بې عزتي کېږي نو الله به په داسې ځای کې ورسره مرسته وکړي چې اړتیا یې وي. (ابوداود)

## دلارې حق:-

رسول الله ﷺ ویلي چې په لار کې مه کښېنئ او که په لار کې له کښېنستلو لاس نه اخلئ نو حق یې ورکړئ. صحابه کرامو ﷺ وویل چې اې د الله رسوله! د لارې حقوق څه دي؟. ده وویل: د سترګو ساتنه، له زورونې ډډه کوله، د سلام ځواب، خلکو ته د ښو خبرو لارښوونه او له ناوړه چارو منعه کول. (مشکوة)

## د ناروغ پوښتنه:-

اې مسلمانانو! کله چې په تاسو کې څوک ناروغ شي نو د اوږده ژوند زېرى ورکړئ ځکه ستاسو په وینا د چا ژوند نه اوږدېږي خو طبیعت یې خوشالېږي. (ترمذي، ابن ماجه)

د ناروغ پوښتنه داده چې ورتلونکي کسان ژر ترې ولاړ شي.
(مسند الفردوس للدیلمي)

## د مسکین حق :-

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله وايي که څوک زما په مخلوق کي له داسي کمزوري سره ښه وکړي چي هیڅ کفالت کوونکی يې نه وو نو د هغه بنده د کفالت مسئول زه يم. (خطیب)

## د حیوان حق :-

رسول الله ﷺ ویلي چي هر احساس درلودونکي حیوان ته چي لوږه او تنده پرې راځي خوراک او څښاک ورکول ثواب لري. (بخاري، مسلم)

# د واکمن او اولس حقوق

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: پاچا پر ځمکه د الهي رحمت او شفقت سیوری دی، د الله مظلوم بندګان په دې سیوري کي پناه اخلي که هغه انصاف وکړي نو ثواب يې ورکول کېږي او پر اولس يې شکر لازمېږي او که ظلم یا د الله په امانت کي خیانت وکړي نو ګناه يې پر ده او پر اولس صبر لازم دی. (بیهقي، مشکوة)

ابو امامه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! خپلو واکمنو ته بد مه وایاست او له الله يې د ښه والي دعا وغواړئ ځکه د هغوی ښه والی ستاسو ښه والی دی. (طبراني)

ابن عمر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! په تاسو کي هر يو واکمن دی او د خپل رعایت په اړه به ترې پوښتنه و شي، څوک چي پر خلګو حکومت کوي نو دی يې واکمن دی او خلک يې رعایت نو له واکمن څخه به د خپل رعایت په اړه پوښتنه کېږي، هر سړی د خپل کور واکمن دی او

کورنۍ یې رعایت، نو له ده به د خپلې کورنۍ په اړه پوښتنه کیږي، هره ښځه د خپل میړه د کور واکمنه ده او د هغه کور یې رعایت، له دې څخه به د خپل میړه د کور په اړه پوښتنه کیږي، هر نوکر د خپل بادار د مال او وسایلو ساتونکی دی او د هغه شتمني یې رعایت نو له ده څخه به د خپل بادار د مال او وسایلو په اړه پوښتنه وشي.

(بخاري، مسلم، مسند احمد، ابوداود، ترمذي)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! تر څو چې ستاسو واکمن پاک زړي، امیر مو سخي او چارې مو د مشورې پر بنسټ وي نو د ځمکې پر مخ ژوند د هغې تر نس درته غوره دی او کله چې مو واکمن شریر، بډای مو بخیل او چارې مو د ښځو په مشوره وي نو د ځمکې تل د هغې پر سر تر ژوند درته غوره دی. (ترمذي)

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د واکمن امر منل او اطاعت پر هر مسلمان فرض دي که څه هم خوښ یې نه وي، څو چې یې د ګناه امر نه وي ورته کړی او کله چې یې پر ګناه امر کړي نو پر مسلمان یې اطاعت واجب نه دی. (بخاري، مسلم، مشکوة)

له علي ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د ګناه په چارو کې د هیچا اطاعت نه شته، اطاعت یوازې په ښو چارو کې دی.

(بخاري، مسلم، مشکوة)

ام سلمه ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: پر تاسو به داسې واکمن وټاکل شي چې ښه کارونه به هم کوي او بد هم، نو چا چې انکار وکړ یعنې د هغه د بد کار په اړه یې د ده په مخ کې وویل چې دا کار دې د شریعت خلاف

دی نو هغه خپله د نده ترسره کړه او چا چي داسي ونه کړل يعني د دې جرأت يې نه وو چي په خوله ورته ووايي خو دا کار يې په زړه کي بد وباله، مطلب په ګناه کي له ونډې اخيستلو خلاص شو خو څوک چي په دې کار راضي وي او پيروي يې وکړي نو هغه ورسره شريک دی. صحابه وو وويل چي ايا موږ ورسره جګړه ونه کړو؟. ده وويل: نه! څو چي لمونځ کوي تر هغه وخته ورسره مه جنګېږئ. (مسلم، مشکوة)

وايل بن حجر بن سلمه بن يزيد له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! که پر موږ داسي حاکمان مسلط شي چي له موږ حق غواړي او زموږ حقوق نه راکوي نو ته په دې اړه څه وايې؟. ده وويل: د هغوی احکام واورئ او اطاعت يې وکړئ ځکه پر دوی خپل مسئوليت فرض دی او پر تاسو خپل مسئوليت. (مسلم، مشکوة)

له طلحه بن عبيد الله ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د ظالم واکمن دعا نه قبلېږي. (حاکم)

په بل حديث کي له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د درو کسانو کلمه هم نه منل کېږي يو يې هغه واکمن دی چي پر خپل اولس ظلم کوي. (طبراني)

له معقل بن يسار ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم بنده ته الله د ولس مشري وسپاري او دی يې په خير او نېکي سره ترسره نه کړي نو جنت به ونه مومي. (بخاري، مسلم، مشکوة)

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په دعا کي ويل: اې الله! که څوک زما د امت مشر او واکمن وي پر دوی ظلم او تېری کوي نو ته

يې هم په ستونزو او تکليفونو اخته کړه او څوک چې زما له امت سره نېکي او احسان کوي نو ته هم نېکي او احسان ورسره وکړه. (مسلم، مشکوة)

## د دوو لورو تر منځ پرېکړه:-

له علي ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: که دوه کسان دعوه درته وړاندې کړي او يو خپله مسئله بيان کړي نو څو چې دې د هغه بل خبرې نه وي اورېدلې د لومړني کس په اړه پرېکړه مه کوه ځکه د دويم په بيان سره به تا ته ټول تفصيل معلوم شي. (ترمذي)

## د خادم حق:-

رسول الله ﷺ وويل چې مينځې او مريان ستاسو ورونه دي، الله تاسو ته په قبضه کې درکړي دي نو که تاسو پر چا واک لرئ نو په کار ده چې هغه خوراک ورکړئ چې په خپله يې خورئ، هغه لباس ورکړئ چې په خپله يې اغوندئ او تر وس زيات بوج ورباندې وانه چوئ او که کوم کار دوی نه شي کولای په خپله يې وکړئ. (بخاري، مسلم، الادب المفرد)

ابو هريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وويل:

اې مسلمانانو! که کوم خادم خوراک راوړي او هغه يې د پخولو پر مهال د دود تکليف تېر کړی وي نو تاسو ته په کار ده چې که هغه له ځان سره کښېنوئ نه نو يو دوې ګولې ضرور ورکړئ. (بخاري، مسلم، ابن ماجه)

# روزي ګټل

## د مال اندازه:-

له انس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که کوم سړی شتمني نه خوښوي نو په هغه کي هيڅ ښېګڼه نه شته ځکه په دې سره د خپلوانو حقوق پوره کېږي، امانت ادا کېږي او په وسيله يې انسان له نورو خلګو بې پروا کېږي. (بيهقي)

## قناعت:-

رسول الله ﷺ ويلي: الله چي خپلو بندګانو ته څه ورکوي دا يوه ازموينه ده، که په خپل قسمت راضي شي نو روزي يې ډېروي او که راضي نه وي نو روزي يې نه پراخېږي. (مسند احمد)

علي ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم څوک په لږ روزي راضي وي نو الله تري په لږ عمل راضي کېږي. (بيهقي)

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم څوک په يوه کار کي بريالی وي نو لازمه ده چي خوشي يې نه کړي. (بيهقي)

## په معامله کي صداقت:-

له معاذ ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: تر ټولو غوره کسب د هغو سوداګرو دی چي رښتيا وايي، که امانت ورته کېښودل شي خيانت نه پکي کوي، د وعدې مخالفت نه کوي، د خرڅولو پر مهال د يوه شي بې ځايه ستاينه نه کوي، کله چي يو شی را نيسي قيمت يې نه ځنډوي او که يې پر چا پور باندي وي نو سختي ورسره نه کوي. (بيهقي)

### د حلالې روزي ګټل:-

علي ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: الله دا خبره خوښوي چي خپل بنده د حلالې روزي په لټه کي پر زحمت او تکليف ووينې.
(الديلمي، ترمذي)

### د مور او پلار او اولاد لپاره روزي ګټل:-

له انس ﷺ څخه روايت دی چي که څوک د خپل بوډا مور و پلار لپاره روزي ګټي او خولې توييوي نو هغه د الله په لار کي دی او څوک چي د خپلو وړو ماشومانو د پالنې لپاره تکليف کوي نو هغه د الله د لارې مجاهد دی او څوک چي د ځان لپاره خواري کاږي څو خلګو ته لاس ونه نيسي نو دا هم د الله د لارې مجاهد دی. (بخاري، مسلم)

### ناروا ګټه:-

په حديث کي دي چي که د انسان د بدن غوښه په حرامو وده وکړي نو هغه به جنت ته داخل نه شي. (مشکوة، احمد، دارمي)

### په خپل لاس کار کول:-

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: ستاسو لپاره تر ټولو ښه خوراک هغه دی چي په خپل لاس يې وګټئ او د اولاد ګټه هم روا ده.
(ترمذي، ابن ماجه، نسايي، مشکوة)

### حلال کسب:-

له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: پاکه او حلاله روزي ګټل فرض دي خو تر فرضو وروسته، يعني الله چي کوم

فرایض تاکلي د هغو تر کولو وروسته حلاله روزي هم فرض ده.

## د روزۍ ګټلو وخت:-

رسول الله ﷺ ویلي چي د روزۍ او حلالې ګټي لپاره سهار وخت پاڅېږئ ځکه د دې وخت کارونه برکت او پراختیا لري. (طبراني)

## په معامله کي نرمي:-

رسول الله ﷺ ویلي چي الله دي پر هغه چا رحم وکړي چي د خرڅولو، رانیولو او غوښتلو پر مهال له نرمۍ او ښو اخلاقو کار اخلي. (بخاري)

## د نېک سوداګر خویونه:-

له ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که په سوداګرو کي لاندي درې خویونه وي نو د هغوی ګټه ښه او حلاله ده.

۱) کله چي له چا شی واخلي نو بدي یې نه بیانوي.

۲) کله چي پر بل شی ګرزوي نو بې ځایه ستاینه یې نه کوي او هغه نه تېرباسي.

۳) په معامله کي د دروغو قسمونه نه کوي. (اصفهاني)

## د مزدور اجرت:-

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: مزدور ته خپله مزدوري د خولو تر وچېدو وړاندي ورکړئ. (ابن ماجه)

## مقدر رزق:-

له حذیفه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله ماته وحې وکړه چي هیڅوک تر خپل مقدر رزق وړاندي نه مري که څه هم په ځنډ ور

ورسېږي، نو چي خبره داسي ده له دې امله د الله نافرماني مه کوئ، د روزۍ په کټلو کي تر اعتدال مه تېرېږئ، د روزۍ ځنډېدو په صورت کي يې د ګناه په وسيله مه غواړئ او له الله سره چي کوم رزق دی هغه د ده په اطاعت سره تر لاسه کېږي. (بزار)

## خپل منځي رعايت:-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: بې شکه الله په خرڅولو، رانيولو او د قرض په ورکړه کي له رعايت او سخاوت څخه کار اخيستونکي خوښوي. (ترمذي)

## په تجارت کي رښتنولي او امانت:-

عبيد بن رفاعه له خپل پلار رفاعه ﷺ څخه روايت کړی چي رسول الله ﷺ وويل: تاجران به د قيامت په ورځ له بد کارانو سره راپورته شي مګر پرته له هغو کسانو سره چي په خپل تجارت کي يې له تقوا، نېکۍ، ښه چلند او رښتنولۍ څخه کار اخيستی وي.

(جامع ترمذي، ابن ماجه، معارف الحديث)

## د سوداګر صداقت:-

له ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: رښتنی او امانتدار سوداګر به د انبياوو، صديقينو او شهداوو ملګری وي.

(جامع ترمذي، معارف الحديث)

## په تول او کچه کي کمی:-

له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ کچونکو او تول کوونکو ته وویل: ستاسو په لاسونو کي دوه داسي کارونه دي چي له کبله یې مخکیني قومونه هلاک شول. (ترمذي)

## د شیانو ذخیره کول:-

له عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: سوداگر ته د الله له خوا رزق ورکول کېږي (د وچکالی په زمانه کي) د گرانی په نیت غله ساتونکي او ذخیره کوونکي ملعون دي. (ابن ماجه، دارمي، مشکوة)

## د مال صدقه:-

رسول الله ﷺ تاجرانو ته لارښوونه وکړه چي اې کاروباریانو! د مال خرڅولو پر مهال د چټیاتو او دروغو قسمونو ډېر امکان وي نو حتما خپل مالونه خیراتوئ. (ابوداود)

# قرض

## له قرضدار سره ښه چلند:-

له عائشي رضی الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که زما په امت کي څوک قرضدار شي، د هغه د ادا کولو پوره هڅه وکړي او تر ادا کولو وړاندي یې ومري نو زه یې مرستندوی یم. (احمد، طبراني)

رسول الله ﷺ ویلي چي که څوک غواړي چي الله یې د قیامت له غم او سختی څخه وساتي نو په کار ده چي تنگلاسي قرضدار ته وخت ورکړي او یا یې ور وبخښي. (مسلم)

## د قرض لعنت:-

له عبدالله بن جحش ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د قرض په اړه وویل: قسم په هغه ذات چي زما ځان یې په ولکه کي دی، که څوک په جهاد کي ووژل شي، دویم ځل را پاڅي بیا ووژل شي او همداسي دریم ځله نو که بیا پر ذمه قرض وي تر هغو به جنت ته ولاړ نه شي چي ادا کړی یې نه وي. (ترغیب، نسایي، حاکم، حیات المسلمین)

## د قرض ورکولو نیت:-

رسول الله ﷺ ویلي: څوک چي قرض اخلي او د ورکړې اراده یې لري نو الله به یې د قیامت په ورځ د ده پر ځای ورکړي او څوک چي قرض اخلي د ورکړې اراده یې نه لري او په همدې حال کي مري نو الله به د قیامت په ورځ ورته ووایي چي اې زما بنده! ممکن تا فکر کړی وو چي زه به له تا څخه د خپل بنده حق وانه خلم؟ نو د ده ځیني نېکۍ به هغه ته ورکړي او که نېکۍ ونه لري نو د هغه ګناوې به پر ده بار کړي. (طبراني، حاکم)

## د قرض عذاب:-

رسول الله ﷺ ویلي چي اې مسلمانانو! له قرض څخه ځان وساتئ ځکه د شپې مهال فکر او اندېښنه پیدا کوي او د ورځې مو په ذلت او خواري اخته کوي. (بیهقي فی شعب الایمان)

## له قرض څخه پناه:-

رسول الله ﷺ ویلي چي اې مسلمانانو! که په تاسو کي د یو چا جامې شلیدلې او زوړ لباس یې اغوستی وي نو تر دې غوره ده چي له یو چا پور

وکړي او د ورکړې وس یې ونه لري. (مسند امام احمد)

رسول الله ﷺ ویلي چي اې مسلمانانو! له بې وزلۍ، ذلت، خوارۍ او مسکنت څخه د الله پناه وغواړئ. (نسایي، حاکم، ابن حبان)

د قرض ادا کولو دعا:-

له انس بن مالک ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ معاذ بن جبل ته وویل: ایا داسي دعا درونه ښیم چي که د غره په څېر قرض درباندي وي نو هم به یې الله ادا کړي، دا دعا وایه:

قل اللهم ملک الملک تؤتی الملک من تشاء و تنزع الملک ممن تشاء و تعز من تشآء و تذل من تشآء بیدک الخیر انک علی کل شیئ قدیر. یا رحمن الدنیا والاخرة ورحیمهما تعطیهما من تشآء و تمنع منهما من تشآء ارحمنی رحمةً تغننی بها عن رحمة من سواک.

اې الله! د ټولي پاچاهۍ واکمنه د ته چي چا ته وغواړې واک ورکوې او چي چا ته وغواړې ترې اخلې یې، که دي چا ته خوښه شي غالبوې یې او که دي خوښه وي خواروې یې، هره ښېګڼه ستا په لاس کي ده بې شکه ته پر هر څه قدرت لرې، اې په دنیا او اخرت کي رحمانه او په دواړو کي رحیمه! ته دا دواړه جهانه هغه چا ته ورکوې چي خوښه دي وي او له هغه چا یې را ګرزوې چي خوښه دي وي، پر ما داسي رحمت وکړه چي په سبب یې له ځان پرته د بل رحمت ته اړ نه شم. (طبراني فی الصغیر، بهشتي زیور)

**د قرض ورکولو ثواب:-**

رسول الله ﷺ ویلي چي د معراج په شپه مي د جنت پر دروازه دا لیکنه ولیده چي د خیرات ثواب لس برخې دی او د قرض ورکولو ثواب اتلس برخې دی. (بهشتي زیور)

**قرضدار ته وخت ورکول:-**

رسول الله ﷺ ویلي: تر کومه وخته چي د قرض ادا کولو وخت نه وي راغلی که تر هغه وخته یو غریب ته وخت ورکړل شي نو هره ورځ یې دومره ثواب ورکول کېږي لکه هغومره روپۍ چي خیراتوي او کله چي یې وخت را ورسېږي بیا مهلت ورکړي نو دومره ثواب ورکول کېږي لکه تر هغو چي هره ورځ لس ځله زیاتې خیراتوي. (بهشتي زیور)

## د سود حرمت

**د سود ګناه:-**

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د سود ګناه اویا برخې لري یوه عادي برخه یې داده چي دومره ګناه لري لکه له خپلې مور سره زنا کول. (ابن ماجه، بیهقي، مشکوة)

**د پوروړي له ډالۍ سره احتیاط:-**

له انس ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک بل ته قرض ورکړي نو بیا دي د هغه ډالۍ نه قبلوي. (بخاري، مشکوة)

### د سود عذاب:-

ابو هريره ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: داسي يو وخت به راشي چي له سود كوونكو پرته به هيڅوك موجود نه وي او كه وي نو هم به د سود اثر ور ورسېږي او په يوه روايت كي دي چي د سود گرځ به ور ورسېږي. (مسند احمد، ابوداود، نسايي، ابن ماجه، مشكوة)

### د سود معامله:-

له جابر ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ پر سود خوړونكي، وركوونكي، ليكونكي او شاهد لعنت ويلى دى. ويلي يې دي: دا ټول سره يو دي. (بخاري، مسلم)

## د رشوت حرمت

### پر رشوت لعنت:-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ پر رشوت اخيستونكي او وركوونكي لعنت ويلى دى. (ابوداود، مسلم)

په ابن ماجه او ترمذي كي له لوبان ﷺ څخه روايت دى چي د دواړو تر منځ پر معامله كوونكي يې هم لعنت ويلى دى. (مسند احمد، بيهقي)

### پر رشوت د دوزخ عذاب:-

په حديث كي دي چي رشوت اخيستونكى او وركوونكى دواړه به دوزخ ته داخل شي. (طبراني فى المعجم الكبير)

فایده:-

البته په کوم ځای کي چي د رشوت له ورکړي پرته د ظلم مخه نه شي نیول کېدای نو ورکړه یې روا ده خو اخیستل یې حرام دي.

(حیات المسلمین)

# څلورم باب ... ټولنيزې چارې

## کور ته د ننوتلو اداب

### استيذان (اجازه غوښتل):-

له عطاء بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو چا له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه: ايا زه خپل کور ته د ننوتلو پر مهال د مور په شتون کې هم اجازه وغواړم؟. ده وويل: هو. نو هغه وويل: زه خو له خپلې مور سره يو ځای اوسم نه دا چې زه بېل او دا بېله اوسي؟. رسول الله ﷺ وويل: بيا هم اجازه اخله. هغه وويل: زه د خدمت لپاره بيا - بيا کور ته ورځم نو هم به اجازه غواړم؟. رسول الله ﷺ وويل: د اجازې په اخيستلو د ننه ورځه، ايا ته دا خوښوې چې خپله مور په لوڅ حالت کې ووينې؟. هغه وويل: نه! نو رسول الله ﷺ وويل: بس اجازه اخله. (مشکوة)

له رسول الله ﷺ څخه نقل شوی چې اجازه غوښتل درې ځله وي، که اجازه درکړل شوه خو ښه خبره ده که نه ستانه شئ. (زاد المعاد)

ښه داده چې تر اجازې اخيستلو وړاندې سلام واچوي او خپل نوم وښيي نه دا چې وښيي زه يم. (زاد المعاد)

له ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: الله د درو کسانو ضامن دی په ژوند کې الله ورته کافي دی او تر مرګ وروسته يې ځای جنت دی: ۱) څوک چې خپل کور ته په سلام کولو ننوزي الله يې ضامن دی. ۲) څوک چې مسجد ته روان شي الله يې ضامن دی. ۳) څوک چې د الله په لار کې جهاد ته ووزي نو الله يې ضامن دی. (الادب المفرد)

**بیده ته سلام کول:-**

مقداد بن اسود رضی الله عنه وايي چي كله به رسول الله ﷺ دشپې مهال کورته راتلی نو داسي سلام به يې کاوه چي ويښو کسانو به اورېدا و بیده به نه خبرېدل. (الادب المفرد)

**د رسول الله ﷺ سنت:-**

که به رسول الله ﷺ د یو چا لیدنې ته ولاړ نو سنت يې دا وو چي د درې ځله سلام په کولو به يې اجازه غوښته، که به ځواب ورنه کړل شو نو بيرته ستنېده. (زاد المعاد)

د رسول الله ﷺ عادت دا وو چي دروازې ته په مخامخ درېدو يې اجازه نه غوښته بلکي د دروازې راسته يا چپ اړخ ته په درېدو به يې سلام کاوه او بيا به يې د دننه ورتلو اجازه غوښته ځو تر ننوتلو وړاندي کور ونه ليدل شي. (زاد المعاد)

## د سلام اداب

رسول الله ﷺ ويلي: هغه سړی الله ته ډېر نږدې دی چي په سلام پيل کوي. (ابوداود)

د سلام پيلولو پر وخت به يې ويل چي السلام عليكم و رحمة الله وبركاته. (زاد المعاد)

يو سړی رسول الله ﷺ ته راغی ويې ويل چي السلام عليكم ورحمة الله وبركاته، ده ځواب ورکړ او ويې ويل چي ده دېرش نېکۍ وګټلې.
(نسايي، ترمذي)

د رسول الله ﷺ طریقه دا وه چې د لاس، سر او یا ګوتې په ښورولو یې د سلام ځواب نه ورکاوه. (زاد المعاد)

امام بخاري رحمه الله وايي چې له قیلې رضي الله عنها څخه روایت دی چې یوه سړي وویل: السلام علیکم یا رسول الله! ده یې په ځواب کې وویل: وعلیکم السلام ورحمة الله. (الادب المفرد)

له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې یو ځل رسول الله ﷺ ما ته وویل: دا جبریل دی تا ته سلام وايي.

ما وویل چې علیکم السلام ورحمة الله وبرکاته، ته چې څه وینې زه یې نه وینم، ده چې څه لیدل ما نه لیدل او خطاب یې رسول الله ﷺ ته وو.

(بخاري، الادب المفرد)

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې زما په نزد د سلام په څېر د خط ځواب ورکول هم ضروري دي. (الادب المفرد)

رسول الله ﷺ ویلي: تاسو تر هغه وخته جنت ته نه شئ تللای چې مومنان نه شئ او تر هغه وخته مومنان نه شئ کېدای چې له یوه بل سره مینه ونه کړئ، ایا تاسو ته هغه تدبیر در وښیم چې په غوره کولو یې له یوه بل سره مینه وکړئ؟ خپل منځي سلام زیات کړئ. (مشکوة)

له قتاده رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: کور ته د ننوتلو پر مهال د کورنۍ غړو ته سلام کوئ او کله چې له کوره را وزئ نو د سلام په کولو ترې رخصتېږئ. (بیهقي، مشکوة)

که کوم څوک مجلس ته ورشي نو سلام دې ووايي، که کښېنستلو ته اړتیا وه نو کښېني دې او د تلو پر مهال دې دویم ځل سلام وکړي ځکه

لومړی سلام تر دویم غوره نه دی، یعني دواړه حق او مسنون دي. (ترمذي، مشکوة)

رسول الله ﷺ ویلي چي بې وزلو ته خوراک ورکړئ او هر شناخته و ناپلده مسلمان ته سلام کوئ. (بخاري، مسلم)

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته په ټینګار وویل چي ګرانه زویه کله چي کور ته ننوزې نو لومړی د کورنۍ غړو ته سلام کوه، دا ستا او د کورنۍ لپاره خیر او برکت دی. (ترمذي)

رسول الله ﷺ وویل:

څوک چي له خپل مسلمان ورور سره مخ شي نو هغه ته دي سلام وکړي او که یې ونه یا دېوال او ډبره تر منځ مانع شي او دویم ځل بیا ورسره ووینې نو هغه ته دي سلام وکړي.

(زاد المعاد، ریاض الصالحین)

عمرو بن شعیب له خپل پلار او هغه له خپل نیکه څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وویل:

که څوک له مسلمانانو پرته له نورو قومونو سره مشابهت کوي هغه زموږ پر طریقه نه دی (بیا یې له نورو قومونو سره د تشبیه وضاحت وکړ ځکه یهود د ګوتو په اشاره سلام کوي او نصارا د لاس په اشاره کوي چي) مه له یهودو سره مشابهت کوئ او مه له نصاراوو سره، ځکه هغوی د لاسونو په اشاره سلام کوي. (ترمذي)

## د سلام حقوق:-

۱) کله چي يو مسلمان له بل مسلمان سره مخ شي نو بايد سلام ور واچوي.

۲) روان دي ناست ته سلام کوي.

۳) سپور دي هم ناست ته سلام کوي.

۴) کم کسان دي ډېرو ته سلام ور اچوي.

۵) کشر دي مشر ته سلام کوي.

۶) هغه مهال د لاس په اشاره سلام چي مخاطب لرې وي.

۷) په دومره لوړ اواز سلام کول چي هغه بل لوری يې واوري.

(الادب)

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: تر قيامت وړاندي ځيني نښې يې دادي:

۱) تر خاصو دايرو د سلام محدودېدل.

۲) د سوداګرۍ دومره عامېدل چي ښځه به له خپل مېړه سره مرسته کوي.

۳) د اهل او نا اهلو ټولو امر به چلېږي.

۴) د دروغو په شاهدي کي زړورتيا او د حقې شاهدۍ پټول.

(الادب المفرد)

# مصافحه، معانقه او لاس مچول

له انس ﷺ څخه روايت دی چې يو چا له رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه: که يو څوک له بل سره مخ شي نو د هغه په وړاندې دې ټيټ شي؟. ده وويل: نه!. هغه پوښتنه وکړه: لاس يې مچ او معانقه وکړي؟. ده وويل: نه!، هغه وويل: لاس يې په لاس کې ونيسي او مصافحه ورسره وکړي؟. ده وويل: هو!. (ترمذي)

رزين پرې دا زياتونه کړې ده چې که هغه له سفره راغلی وي نو معانقه کولای شي. (مشکوة)

د درناوي په توګه يې لاس هم مچولای شي. (الترغيب والترهيب)

له ابو امامه ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د ناروغ پوره پوښتنه داده چې تاسو يې پر تندي لاس کښېږدئ، حال يې وپوښتئ او پوره سلام دادی چې وروسته مصافحه هم وکړئ. (احمد، ترمذي، مشکوة)

امام شعبي وايي چې رسول الله ﷺ له جعفر بن علي ﷺ سره مخ شو، غاړه يې ورکړه او د سترګو تر منځ يې مچ کړ. (ابوداود، بيهقي، مشکوة)

د عبد القيس په پلاوي کې شامل زارع ﷺ وايي: کله چې موږ په مدينه کې له سپرليو کښته شو نو د رسول الله ﷺ لاسونه او پښې مو مچ کړل. (ابوداود، مشکوة)

يو ځل انس ﷺ په ډېره خوشالي او خوښي وويل چې ما په خپلو دې لاسونو له رسول الله ﷺ سره مصافحه کړې ده، هيڅ ډول وريښم مې د ده تر لاسونو نرم نه دي ليدلي، د ده شاګرد ورته وويل: زه هم غواړم له هغو لاسونو

سره مصافحه وکړم چي له رسول الله ﷺ سره يې مصافحه کړې ده. دا لړۍ تر اوسه روانه ده او د دې حديث په اړه مشهوره ده چي د مصافحې عمل پر له پسې پکي نقل شوی دی. (خصايل نبوي)

له انس ﷺ څخه روايت دی چي صحابه کرام به کله سره مخ کېدل نو مصافحه يې کوله او کله چي به له سفره را ستانه شول نو معانقه يې کوله.

(طبراني، الترغيب والترهيب للمنذري)

کله چي زيد بن حارثه مدينې ته راغی نو د رسول الله ﷺ دروازه يې ور وټکوله، نو دی په داسي حال کي دروازې ته ور ورسېد چي څادر پسي څکېده. له هغه سره يې معانقه وکړه او پر تندي يې مچ کړ. (ترمذي)

**لاس مچول:-**

ثابت له انس ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي تا کله د رسول الله ﷺ لاس په لاس کي نيولی؟. ده وويل: هو! نو ده يې لاس مچ کړ. (الادب المفرد )

**ډالۍ:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: تهادوا و تحابوا يعني يو بل ته ډالۍ ورکوئ چي مينه مو ډېره شي.

(بخاري، الادب المفرد)

په حديث کي دي چي د هغه چا ډالۍ ومنئ چي بيا يې نه غواړي، که نه په دې سره تکليف پيدا کېږي خو تاسو له خپله لوري هڅه کوئ چي کومه بدله يې ورکړئ، که يې بدله نه وي نو ستاينه يې وکړئ، د خلګو په مخ کي يې احسان بيان کړئ او د ستاينې لپاره دومره کافي ده چي جزاک الله خيرا،

ځو چي د احسان کوونکي شکر ادا نه شي نو د الله شکر هم نه ادا کېږي. لکه ځرنګه چي د موجود نعمت ناشکري بده ده، همدارنګه ځان ستاینه او غرور هم بد دی. (مسند احمد)

په حدیث کي دي چي که څوک ستا د درناوي لپاره تېل، شیدې، عطر او یا بالښت وړاندي کړه چي عطر بوی کړه، شیدې وڅښه، تېل ولګوه او بالښت ته تکیه وکړه نو ویې منئ، ته او انکار مه کوئ ځکه دا شیان دومره لوی احسان نه دی چي تاسو یې بار نه شئ او چتولای خو د نورو زړه خوشالېږي. (ترمذي)

رسول الله ﷺ ویلي چي یوه بل ته ډالۍ ورکوئ په دې سره زړونه صفا کېږي او محبت ډېرېږي، یوه ګاونډۍ دي بلې ته د پسه د پښنګري توټې ور لېږل هم سپک ونه ګڼي او دا خیال دي نه کوي چي د دې شي ور لېږل نو څه ګټه لري؟.

**پرنجی او ارمېږه :-**

کله چي به رسول الله ﷺ پرنجی وکړ نو الحمد لله به یې ویله، پر خوله به یې تو کر یا لاس نیو، اواز به یې ټیټاوه او که په خوا کي ناست کس به یرحمک الله ورته ویله نو حتما به یې یهدیکم الله و یصلح بالکم ورته ویل. (ترمذي)

کله چي به نا مسلمان پرنجی وکړ نو رسول الله ﷺ د یرحمک الله پر ځای یهدیکم الله و یصلح بالکم ورته ویل، رسول الله ﷺ به د پرنجي اواز ډېر ټیټاوه او دا کار یې خوښ وو. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ ویلي: بې شکه پرنجې د الله خوښ دی (ځکه په پرنجې سره دماغ سپکېږي، د درک قواوې صفا کېږي چې دا په اطاعت کې مرسته کوي او د زړه د حضور لپاره ښه کار دی.) (مشکوة)

او الله ارمېږی نه خوښوي (ځکه په ارمېږی سره بدن سستېږي، غفلت، بد فهمي او لټي پیدا کوي، په اطاعت کې خوشالي نه پرېږدي ځکه نو الله خوښ نه وي خو شیطان خوشاله کېږي.)

د همدې نتیجې له کبله یې ویلي چې ارمېږی د شیطان له خوا ده نو که تاسو کې چا ته ارمېږی ورشئ د توان تر اندازې دي یې مخه ونیسي ځکه کله چې تاسو ارمېږی باسئ یعني خوله خلاصوئ نو شیطان خاندي. (مشکوة، الادب المفرد)

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چې که چا ته ارمېږی ورشي نو د توان تر اندازې دې منعه کړي که نه پر خوله دې لاس کښېږدي. (الادب المفرد)

## د لیک په سر کې بسم الله لیکل:-

ابو مسعود جریري ؓ وایي چې یو چا له حسن ؓ څخه د بسم الله الرحمن الرحیم په اړه پوښتنه وکړه نو ده وویل: دا په لیکنه کې اول لیکل کېږي. (الادب المفرد)

## د لیک لیکلو اداب:-

زید بن ثابت ؓ چې امیر معاویه ته کوم لیک لېږلی وو، د هغه مضمون دا وو: بسم الله الرحمن الرحیم، د زید بن ثابت له لوري د الله د بنده امیر المؤمنین معاویه حضور ته! السلام علیک یا امیر المؤمنین و رحمة الله، زه

ستا په مخ کي د هغه معبود حمد او ثنا بیانوم چي له ده پرته هیڅ معبود نه شته، اما بعد: (د خط مضمون دی او وروستي الفاظ یې دادي:) موږ له الله د هدایت او ساتنې او په خپلو چارو کي د فهم غوښتنه کوو، السلام علیک یا امیر المؤمنین و رحمة الله و برکاته و مغفرته. دا لیک واهب د پنج شنبې په ورځ (۴۲هـ) کي چي د روژې دوولس ورځې پاتې وې ولیکی، فقط.

(الادب المفرد)

## د قلم عظمت:-

له زید بن ثابت ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه کاتب ته وویل: د قلم عزت کوه او عزت یې دادی چي په غوږ کي یې کښېږدې ځکه قلم خپل کار دریادوي. (ترمذي)

## د هر لیک په پیل کي درود:-

په لیکونو او خطونو کي تر بسم الله او حمد وروسته د درود او سلام لیکلو رواج د ابن حجر مکي په قول اول د ابو بکر صدیق ؓ په زمانه کي را منځ ته شو. ده خپل خطونه داسي لیکل: بسم الله الرحمن الرحیم، نحمده و نصلی علی رسوله الکریم. (زاد المعاد)

## قومي امتیاز او جامه:-

رسول الله ﷺ چي الهي وینا ده: او شیطان وویل چي زه به دوی ته دا ور زده کړم چي د الله تخلیق به تبدیلوي (لکه د ږیرې خرېیل، پر بدن خالونه وهل او نور.) (نسایي)

فایده:-

ځیني بدلونونه د صورت خرابول او حرام دي لکه پورتني مثالونه او ځیني بدلونونه د شکل ښکلي کول او واجب دي لکه د بریتو کمول، نوکان اخیستل، د بغل او تر نامه لاندي وېښتان پاکول. ځیني بدلونونه روا دي لکه د سر خرېيل، کمول او تر قبضه زیاته ږیره غوځول خو د دې پرېکړه به شریعت کوي نه رواج ځکه اول خو د رواج درجه له شریعت سره برابره نه ده د هر ځای رواج جلا دی او د زماني په بدلون سره بدلېږي هم. (حیات المسلمین)

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي که څوک (په شکل او نورو کي) د یو قوم مشابهت غوره کړي نو دی له هغو دی. (مسند احمد، ابوداود)

یعني څوک چي د کافرانو او بد کارانو شکل جوړ کړي په ګناه یې شریک دی.

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله دي پر هغو ښځو لعنت وکړي چي له نارینه وو سره مشابهت کوي او الله دي پر هغو نارینه وو لعنت وکړي چي له ښځو سره مشابهت کوي. (بخاري)

سوید بن وهب وایي: له رسول الله ﷺ څخه روایت شوی چي که څوک د وس له درلودلو سره - سره ښکلې جامې پرېږدي او په بل روایت کي دي چي که څوک د جامو ښکلا د تواضع په خاطر پرېږدي الله به د عظمت او لویوالي جامې ور واغوندي او څوک چي د الله لپاره نکاح وکړي نو الله به یې پر سر د پاچاهۍ تاج کښېږدي. (ابوداود، مشکوة)

## د غرور جامې:-

سالم روایت کوي چي رسول الله ﷺ وویل: د جامو ځوړندول په پرتاګه، لنګ او کمیس کي هم کېدای شي څوک چي د تکبر په نیت، پرتوګ، لنګ، کمیس او یا د لنګوټې شمله زیاته اوږده کړي الله به د رحمت په نظر ورته و نه ګوري. (ابوداود، نسایي، ابن ماجه)

فایده:-

له تکبر پرته ځوړندول یې هم روا نه دي.

## د جامو اداب:-

کله چي څوک پرتوګ اغوندي نو لومړی دي راسته پایڅه و اغوندي او که کمیس اغوندې نو لومړی دي راسته لستوڼی په لاس کړي او بیا چپه، همدا رنګه دي صدری، چپنه او نور هم له راسته اړخه پیلوي، پایزار دي هم له راسته اړخه په پښو کوي او کله چي یې باسي نو اول دي چپه پایزار باسي. (ترمذي)

## د کور به توب او مېلمستیا حقوق:-

کله چي به رسول الله ﷺ ته مېلمه راغی نو ده به یې په خپله خدمت کاوه. (مدارج النبوة)

کله چي به یې مېلمه پر دسترخوان کښېناوه نو بیا - بیا به یې ورته د خوراک ست کاوه، ورته ویل به یې چي نوره وخوره، کله چي به مېلمه ارام شو او انکار به یې وکړ نو ده به له ټینګار څخه لاس اخیست.

(ترمذي، زاد المعاد)

له ابو شریح ﷺ څخه روایت دی چي زما دې دوو سترګو ولیدل او دې دوو غوږونو واورېدل چي رسول الله ﷺ ویل: که څوک پر الله او د اخرت پر ورځ ایمان لري هغه باید د خپل ګاونډي عزت او درناوی وکړي او څوک چي پر الله او اخرت ایمان لري نو هغه باید د خپل مېلمه عزت وکړي او د هغه جایز حق دي ورکړي. صحابه کرامو وویل: اې د الله رسوله! جایز حق یې څه دی؟. ده وویل: یوه شپه او یوه ورځ یې خدمت کول او دا د ول مېلمستیا درې ورځې ده، تر دې زیات چي څه ورکوي صدقه ده، که پر څوک پر الله او اخرت ایمان لري نو هغه ته په کار ده چي یا ښه خبره وکړي او یا چوپ شي.

(بخاري، مسلم، الادب المفرد)

مېلمانه ته په کار نه ده چي له یو چا سره د هغه تر تنګېدو پاتي شي.

(بخاري، الادب المفرد)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: یو سړی دي له دروازې دباندي خپل مېلمه ته هرکلی ووایي او د رخصتۍ پر مهال دي تر دروازې ورسره شي. (ابن ماجه، بیهقي، مشکوة، بخاري)

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که دسترخوان وغوړېږي نو هیڅوک دې تر هغو نه ولاړېږي چي دسترخوان ټولېږي او که څه هم موړ وي خو لاس دي نه را نیسي څو خلک فارغ شوي نه وي (او که د مجبوریت له مخې ولاړېږي نو باید عذر وکړي) ځکه په دې سره یې نور ملګري شرمېږي نو هغوی هم خپل لاس نیسي چي ممکن خوراک ته اړتیا ولري. (بخاري، زاد المعاد)

رسول الله ﷺ وویل: خپلو ورونو ته بدله ورکړئ. صحابه وو پوښتنه وکړه چي څه بدله ورکړو اې د الله رسوله؟!. ده وویل: کله چي یو څوک د خپل ورور کور ته ورشي او هلته خوراک او څښاک وکړي نو هغه ته دي د خیر او برکت دعا وکړي. (ابوداود)

ابو کریمه السامي ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: د دشپې راغلي مېلمه مېلمستیا پر هر مسلمان واجب ده.

## د مېلمستیا بلنه:-

عبدالله بن عمر ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د واده مېلمستیا ته وبلل شي نو باید ویې مني او د مسلم په روایت کي دا الفاظ دي چي د واده او دې ته ورته بلنه ومنئ. (بخاري، مسلم، مشکوة)

جابر ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک مېلمستیا ته وبلل شي نو باید ویې مني او هلته په تلو خوراک کوي که نه. (مسلم، مشکوة)

## د فاسق مېلمستیا:-

له عمران بن حصین ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د مېلمستیا لپاره د فاسق د بلنې له منلو منعه کړې ده. (مشکوة)

## په خوراک کي تکلیف:-

اسماء بنت یزید ﷺ وایي چي موږ او رسول الله ﷺ ته خوراک وړاندي شو موږ وویل: خوا ته مو نه کېږي (په داسي حال کي چي وږي وو مگر دا الفاظ مو د تکلف له مخې وویل) رسول الله ﷺ وویل: لوږه او دروغ مه سره یو ځای کوئ. (ابن ماجه، مشکوة)

**یو ځایي خوراک:-**

وحشي بن الحرب رض روایت کوي چي موږ رسول الله ﷺ ته وویل: ای د الله رسوله! موږ خوراک کوو خو نس مو نه ډکېږي. ده وویل: یو ځایي خوراک کوئ که جلا - جلا؟. موږ وویل: جلا - جلا. ده وویل: پر یوه دسترخوان خوراک وکړئ او د خوراک پر مهال بسم الله وایاست، په خوراک کي به مو برکت پیدا شي. (ابوداود)

## د ښځو په اړه

**د مسلمانو ښځو لپاره د الله او رسول احکام:-**

الله ویلي چي مومن نارینه او ښځه نه شي کولای چي کله الله او د هغه رسول د یو کار امر وکړي نو دوی اختیار ولري، څوک چي د الله او د رسول امر ونه مني نو هغه صریح ګمراه دی. (۲۲ سپاره، دویمه رکوع).

**د پردې احکام:-**

الهي وینا ده: مومنو نارینه وو ته ووایه چي خپلې سترګې دې د پردیو ښځو له لیدلو وساتي (داسي ښځو ته دې په ښکاره نه ګوري چي شهوت پاروي او په داسي ځای کي دي سترګې ټیټې ساتي) خپل فروج دي څومره چي ممکنه وي وساتي (همدا ډول دي غوږونه له نامحرومو وساتي یعني د نامحرمو ښځو سندرې دي نه اوري، د هغوی اواز ته دي غوږ نه ږدي، د دوی د ښکلا کیسې دي نه اوري) دا طریقه ډېره غوره ده بې شکه الله په هغه څه خبر دی چي تاسو یې کوئ، همدا راز مومنو ښځو ته ووایه چي دوی دي خپلې سترګې د پردیو نارینه وو له کتلو وساتي او خپل فرج دي خوندي

کړي، د خپل زینت اعضا دي پردو ته نه ښکاره کوي، پرته له هغو چي ښکاره دي او خپل پړوني دي داسي پر سر کړي چي له ګرېوانه تر سره ورسېږي. دا هغه تدبیر دی چي تر سره کول یې تاسو له تیندکونو ساتلای شي او (د ساتنې دویمه طریقه داده چي) اې مسلمانانو! ټول د الله لور ته رجوع وکړئ، هیله ده بریا به ومومئ او زنا ته مه ور نژدې کېږئ، زنا ډېره بې شرمي او ډېره بده لار ده.

## د ښځینه حقوقو ساتنه:-

عمرو بن احوص حیثمي رضي الله عنه وايي چي په حجة الوداع کي مي له رسول الله ﷺ څخه واورېدل، لومړی یې د الله حمد و ثنا بیان کړل، بیا یې د ځینو خبرو لارښوونه وکړه وروسته یې وویل چي اې خلکو! واورئ له ښځو سره ښه چلند کوئ ځکه هغوی له تاسو سره بندیانې دي، له هغوی سره د زور زیاتي هیڅ حق نه لرئ مګر پرته له هغه صورت څخه چي دوی ښکاره نافرماني وکړي، که یې داسي وکړل نو بسترې ترې بېلې کړئ او ویې ډبوئ خو داسي چي زخمي نه شي، که یې ستاسو خبره ومنله نو حتمایې د زورولو لار مه لټوئ او پام مو وي چي تاسو پر خپلو مېرمنو حقوق لرئ او هغوی یې پر تاسو، پر دوی مو حق دادی چي کوم څوک ستاسو نه وي خوښ هغوی ته د راتلو اجازه ورنه کړئ او کورونو ته مو هغه څوک پرې نه ږدئ چي راتګ یې پر تاسو بد لګېږي او واورئ پر تاسو د هغوی حق دادی چي ښه خوراک ورکړئ او ښه جامې ور واغوندئ. (ترمذي)

## د الله په نزد د مسلمانو ښځو وقار: -

الهي وینا ده: اې رسوله! مسلمانو نارینه وو ته ووایه چې خپل نظرونه دي ټیټ ساتي او فرج دي خوندي کړي، دا د هغوی لپاره د ښې صفایي خبره ده، بې شکه الله د خلګو په ټولو کړنو خبر دی او مسلمانو ښځو ته ووایه چې خپل نظرونه دي ټیټ ساتي او عفت دي خوندي کړي، خپله ښکلا او زینت دي نه ښکاره کوي مګر هغه څه چې څرګند وي، خپل پړوني دي پر سینو واچوي او خپله ښکلا دي نه ښکاره کوي او اې مسلمانانو! ټول الله ته توبه وباسئ چې بری ومومئ، که نه ګناه مو د بریا مخه نیسي. (الفرقان)

## له پردي ړانده هم پرده کول: -

له ام سلمې ؓ څخه روایت دی چې دا او میمونه ؓ له رسول اللهﷺ سره وې، ناڅاپه ابن ام مکتوم ؓ راغی. رسول اللهﷺ دوی ته وویل چې له ابن ام مکتوم څخه پرده وکړئ. ام سلمه ؓ وایي چې ما وویل: اې د الله رسوله! هغه ړوند نه دی، موږ نه شي لیدای؟. رسول اللهﷺ وویل: ایا تاسو دواړې هم ړندې یاست چې هغه نه شئ لیدای؟.

(احمد، ترمذي، ابوداود، حیات المسلمین)

## بهر ته د ښځو د وتلو قانون: -

عبدالله بن عمر ؓ له رسول اللهﷺ څخه روایت کړی چې ویې ویل: ښځه له کوره د وتلو هیڅ حق نه لري مګر د مجبورۍ په حالت کي، ښځه په لاره کي د تلو هیڅ حق نه لري مګر یوه اړخ ته. (طبراني)

## له ښځو سره يوازي والی :-

له عقبه بن عامر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: پردو ښځو ته مه ورګورئ. يوه انصاري وويل: ای د الله رسوله! د لېور په اړه څه وايې؟. رسول الله ﷺ وويل: لېور خو مرګ دی يعني له هغه سره ډېر احتياط ته اړتيا ده. (بخاري او مسلم، ترمذي)

رسول الله ﷺ ويلي: له پردو ښځو سره مه يوازي کېږئ، قسم په هغه ذات چي زما ځان يې په واک کي دی کله چي يو څوک له پردۍ ښځې سره يوازي وي نو درېيم يې شيطان وي.

## د عورت پټول :-

ښځې ته له سره تر پښو د ټول بدن د پټولو امر شوی دی پردو نارينه وو ته يې د بدن لوڅول صحيح نه دي او بايد يو وېښته يې هم لوڅ نه وي.

## د ښځې اواز :-

لکه څرنګه چي ښځې ته په کار ده د پردو نارينه وو اواز وانه وري همدارنګه نارينه ته واجبه ده چي په ښکلي اواز د نارينه وو په مخ کي اشعار او نور ونه وايي ځکه د ښځو زړونه نرم دي د فساد وېره شته. (متفق عليه)

## پردو ښځو ته کتل :-

له ابو امامه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم مسلمان د يوې ښځې د ښکلا په ليدو خپلې ستر ګې بندې کړي نو الله د هغه لپاره داسي عبادت پيدا کوي چي په خپل زړه کي به يې خوند احساس کړي. طبراني د لومړي نظر قيد ايښی دی. (احمد و طبراني)

**پردي کوږ ته ورتګ:-**

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: داسي ښځو ته مه ورننوزئ چي مېړونه يې پر کور نه وي ځکه شيطان ستاسو په رګونو کي د وينې په څېر ګرزي. (ترمذي، مشکوة)

**له جنت څخه بې برخې توب:-**

له عمار بن یاسر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: درې کسان به هیڅکله جنت ته داخل نه شي اول دووس، دویم د نارینه وو شکل جوړوونکې مېرمنې، درېیم تل شراب څښونکی. صحابه کرامو ﷺ پوښتنه وکړه چي دووس څوک دی؟. ده وویل: هغه کس چي کورته د هیچا د راتلو پروا نه لري. (طبراني)

**له پردیو ښځو سره سترې مشې او سلام:-**

له معقل بن یسار ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که ستاسو په سر کي ستن تېک وهل شي نو دا تر دې غوره ده چي پردۍ ښځې ته لاس ورکړئ. (طبراني)

همداراز پردو ښځو او نارینه وو ته سلام ناروا دی (دا روایت قیم په حلیه کي له خراساني څخه په مرسله توګه نقل کړی دی) نارینه ته له پردۍ ښځې سره تر تکر کولو دا ډېره ښه ده چي د مردار خنځیر له غوښو سره ولګېږي. (طبراني، ابوداود)

**د ښځو شکل او جامه:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ښځو په څېر پر شکل جوړوونکي نارينه لعنت ويلی دی، له ابن ابی مليکه څخه روايت دی چي عائشې ﷺ ته وويل شول: يوه ښځه د نارينه وو پايزار په پښو کوي. دې وويل: رسول الله ﷺ پر دا ډول ښځو لعنت ويلی دی.
(ابوداود، حيات المسلمين)

ښځې يې د مصنوعي وېښتانو له کوڅيو جوړولو هم په سختي منعه کړې دي. (مسلم)

په حديث کي دي چي ښځه دي داسي باريک پړونی نه پر سر کوي چي وېښتان او بدن يې وليدل شي. (ابوداود)

ښځې بايد حتما داسي جامې واغوندي چي لستوڼي يې اوږده وي، د نيمه لستوڼو کميس اغوستل سخته ګناه ده او د داسي جامو اغوستل هم منعه دي چي بدن ترې ښکاري، دا ډول ښځې به په اخرت کي لوڅې را پورته شي. (مشکوة، بهشتي زيور)

## شرعي ممنوعات

**د شرابو حرمت:-**

له عائشې ﷺ څخه روايت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ويل يې: په اسلام کي به ترټولو لومړی د ډک لوښي په څېر شراب واړول شي يعني په اسلام کي چي به ترټولو لومړی د الله د کوم حکم مخالفت کېږي او سرچپه به يې اړوي هغه د شرابو ممانعت دی. پوښتنه وشوه چي اې د الله

رسوله! داسي به ولي کېږي؟ حال دا چي د شرابو په اړه ښکاره احکام بیان شوي او هر چا ته ښکاره دي؟. رسول الله ﷺ وویل: هغه داسي چي شراب به په بل نوم حلال کړي. (دارمي، مشکوة)

له ام سلمې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ هر ډول نشیي شیان منعه کړل، په دې کي افیون یا تاریاک هم شاملېږي او ځیني هغه چلمونه هم چي دماغ او لاس و پښو ته تاوان رسوي. (ابوداود، حیات المسلمین)

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله پر شرابي، د هغو پر جوړوونکي، خرڅوونکي، اخیستونکي، ور څښونکي، ور وړونکي او هغه چا لعنت ویلی چي ور وړل کېږي. (ابن ماجه، مشکوة)

له جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د کوم شي لږ مقدار چي نشه ولري د لږو کارول یې هم حرام دي. (ترمذي، ابوداود، مشکوة)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څلور کسان به الله هیڅکله نه جنت ته داخل کړي او نه به په جنت کي برخه واخلي.

۱) د شرابو عادي. ۲) سودخور. ۳) د یتیم د مال خوړونکی. ۴) د موراو پلار نافرمانه. (حاکم)

## شراب، سود او عیاشي:-

له ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د دې امت ځیني کسان به شپه او ورځ په شرابو او لهو و لعب بوخت وي، نو یوه ورځ سهار به یې صورتونه مسخ شي په بیزو ګیانو به واوړي او په ځمکه به ننوزي، له اسمانه به پرې ډبرې واوري. خلک به وایي چي نن شپه فلانی سیمه ننوتلې ده، پر دوی به د لوط ﷺ د قوم په څېر ډبرې واورېږي او د

عادیانو په څېربه یې توپان هلاک کړي ځکه دوی به شراب څښي او سود به خوري، وریښمینې جامې به کاروي، سندرغاړې به ورسره وي او خپلوي به نه پالي. (مسند احمد، ابن ابی الدنیا)

## بې ګټې لوبې شطرنج او نور :-

له عبد الله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د شرابو له څښلو، قمار، نرد، شطرنج، نغارې او شپېلۍ له غږولو منعه کړې ده او ویلي یې دي چې نشیي شی حرام دی. (ابوداود، مشکوة)

له ابن شهاب ﷺ څخه روایت دی چې ابو موسی اشعري ﷺ وویل: شطرنج هغه څوک کوي چې غلط او ګناهګار وي. (بیهقي، مشکوة)

شطرنج بې ګټې او بې فایدې لوبه ده او الله لغو او بې ګټې کار نه خوښوي. (بیهقي، مشکوة)

## انځورونه (عکسونه):-

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یو غزا ته تللی وو او ما پر دروازه نقش درلودونکی څادر وځړاوه، کله چې رسول الله ﷺ راغی او هغه څادر یې ولید نو تر کشولو وروسته یې څیرې کړ او ویې ویل: الله موږ ته دا امر نه دی کړی چې د ډبرو او کمرونو جامې واغوندو. (متفق علیه)

له قتاده ﷺ څخه روایت دی چې زه له ابن عباس ﷺ سره وم او له ده څخه د انځورونو په اړه پوښتنه کېده، هغه په ځواب کې ورته وویل چې ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چې که څوک په دنیا کې انځورونه جوړ کړي په

قیامت کي به هغو ته د روح ورکولو پر چاره مامور شي خو دی به يې پکي پیدا کولای نه شي. (بخاري)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي د قیامت په ورځ به تر ټولو سخت عذاب هغه چا ته ورکړل شي چي يا يې د الله نبي وژلی وي، يا د الله نبي دی وژلی وي، يا هغه زوی چي خپل مور و پلار یې وژلي وي، همدا ډول تصویر جوړوونکی او هغه عالم چي خلکو ته يې علمي ګټه نه وي رسولې یعني کوم علماء چي په علم سره خلکو ته ګټه و نه رسوي په سخت عذاب به اخته وي. (مشکوة)

له ابو هريره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ویل چي جبریل ویل: زه د شپې راغلم مګر په دروازه کي د یوه حیوان مجسمه وه، د کور د یوې تاخچې پر پرده انځورونه او سپی وو، ته د مجسمې سر غوڅ کړه، له پردې يې بالښت جوړ کړه او سپی وشړه نو رسول الله ﷺ همداسي وکړل. (ترمذي، ابوداود، مشکوة)

رسول الله ﷺ ویلي: په کوم کور کي چي انځور یا سپی وي د رحمت فرښتې نه ورځي. (بخاري، مسلم، مشکوة)

رسول الله ﷺ ویلي: له دې درو غرضونو پرته چي د بل هر څه لپاره سپی وپالل شي نو هره ورځ یو قراط ثواب کموي: ۱) د پسونو د ساتنې لپاره. ۲) د کښت د ساتنې لپاره. ۳) د ښکار لپاره. (مشکوة)

**سندرې:–**

په صحیح البخاري کې دي چې رسول الله ﷺ وویل: زما په امت کې به داسې خلک وي چې شراب او سندرې به روا ګڼي. په مسند امام احمد کې دي چې رسول الله ﷺ وویل: الله زه رحمة اللعالمین را لیږلی یم او ما ته یې امر کړی چې ساز او باجې له منځه یوسم. (ترمذي)

په سنن ابی داود کې له نافع څخه روایت دی چې عبدالله بن عمر ساز واورېد نو په خپلو غوږونو کې یې ګوتې ونیولې ویې ویل: ما رسول الله ﷺ په داسې ځای کې همداسې لیدلی وو، رسول الله ﷺ د شپېلۍ اواز واورېد نو په غوږو کې یې ګوتې ونیولې. (ابوداود، ابن ماجه، مسند احمد)

په سنن ابن ماجه کې روایت دی چې ځیني کسان به په بدل نامه شراب څښي او په خوا کې به یې موسیقي ږغېږي، سندرې ویونکې به باجه وهي او نغمې به وایي، الله به یې په ځمکه ننباسي او بیزوګیان او خنځیران به ترې جوړ کړي.

په جامع ترمذي کې دي چې رسول الله ﷺ وویل: زما په امت کې به خسف او مسخ را منځ ته شي دا هغه مهال چې په ښکاره موسیقي او سندرې شروع شي.

په مسند ابن ابی الدنیا کې روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د دې امت په اخیر کې به یو قوم په بیزوګیانو او خنځیرانو بدل شي. صحابه کرامو ﷺ وویل چې اې د الله رسوله! ایا هغوی به لا اله الا الله محمد رسول الله نه وایي؟. ده وویل: ولې نه، بلکې روژه، لمونځ او حج هر څه به ترسره کوي. یو څاپو ښتنه وکړه چې نو بیا ولې دا سزا ورکوي؟. ده وویل: هغوی به د

موسیقي. او سندرو ویلو شغل خپل کړی وي. ابن ابی الدنیا او بیهقي له شعبي څخه نقل کړی چي رسول الله ﷺ وویل: الله دي پر سندرو ویونکو او هغو کسانو لعنت وکړي چي ورته ویل کېږي.

## دره منثوره ... پاشلې ملغلرې

### د قرآن کریم برکت:-

له انس او جابر ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! په خپلو کورونو کي قرآن وایاست ځکه بې قرآنه کور برکت نه لري. (سنن دار قطني)

### د نېکانو ملګرتیا:-

اې مسلمانانو! له مشرانو سره کښېنئ، له عالمانو پوښتنې کوئ او له هوښیارانو سره وینئ. (طبراني)

هر انسان د خپل ملګري په مذهب وي نو باید له اوله فکر وکړي چي د چا ملګرتیا کوي؟. (مشکوة)

له عبدالله بن مسعود ؓ څخه روایت دی چي یو چا رسول الله ﷺ ته وویل:

اې د الله رسوله! یو څوک له بل سره د ښو کارونو په وجه مینه کوي خو دی هغو مره نېک اعمال نه کوي. رسول الله ﷺ وویل: پروا نه لري، انسان به په قیامت کي له هغه چا سره وي چي دی ورسره مینه کوي. (بخاري)

## د وعدې ماتولو عذاب :-

رسول الله ﷺ ویلي : په کوم قوم کې چې د وعدې ماتولو عادت ډېر شي هلته د وینو تویول ډېرېږي او په کوم قوم کې چې بد کاري زیاته شي نو مرګونه زیاتېږي. (ابوداود، حاکم، نسایي)

## د ملګري اغېز :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې له بد ملګري سره تر ناسته یوازې ناسته غوره ده او تر یوازیتوب له ښه ملګري سره ناسته غوره ده، تر خاموشۍ د نېکو خبرو کول ښه دي او تر بدو خبرو خاموشي.
(حاکم، بیهقي فی شعب الایمان)

## د ځمکې غصبولو عذاب :-

په حدیث کې دي چې که څوک د خپلې او بل چا د ځمکې حدود بدل کړي پر هغه به د قیامت په ورځ د الله لعنت وي. (طبراني)

## د ګاونډي انتخاب :-

رسول الله ﷺ ویلي : اې مسلمانانو ! د کور تر جوړولو او یا اخیستلو وړاندې د ښه ګاونډي په لټه شئ او پر لار تر تلو وړاندې ښه ملګری پیدا کړئ. (طبراني)

## له غم ځپلي سره مرسته :-

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ویل : که څوک له غم ځپلي سره مرسته وکړي الله به ورته (۷۳) ځله مغفرت ولیکي چې په هغو

کي یو یې د ده د ټولو کارونو د اصلاح لپاره بس دی او (۷۲) مغفرتونه به د قیامت په ورځ د هغه لپاره درجې شي. (بیهقي، حیات المسلمین)

## د اهل او عیال فتنه :-

ابن مسعود له ابو هریره ؓ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وویل: پر خلګو به داسي وخت راشي چې دوی به د مېرمنې، مور و پلار او اولاد په لاس هلاکېږي څکه هغوی به د بې وزلی پېغور ورکوي او داسي څه به ترې غواړي چې دوی یې نه شي کولای نو دوی به د شریعت خلاف کارونه پیل کړي او هلاک به شي. (بیهقي، حیات المسلمین)

## له یو مسلمان ورور سره بحث او ټوکي :-

له ابن عباس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: مه له خپل مسلمان ورور سره حتما بحث کوئ، مه داسي ټوکي چې پر هغه تکلیف وي او نه داسي وعده چې پوره کولای یې نه شئ. (ترمذي، حیات المسلمین)

## د غیبت ملاتړ :-

له انس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که د یو چا په مخ کي د هغه د مسلمان ورور غیبت کېږي دی یې د ملاتړ وس لري او ملاتړ یې وکړي نو الله به یې په دنیا او اخرت کي ملاتړی شي او که یې له وس درلودو سره – سره ملاتړ ونه کړي نو الله به یې په دنیا او اخرت کي ونیسي.
(شرح السنة، حیات المسلمین)

## پاکي او صفايي :-

رسول الله ﷺ ویلي چي اې مسلمانانو ! د خپلو کورونو انګړ پاک ساتئ ځکه دا له یهودو سره مشابهت دی چي عموما خپل انګړونه نه پاکوي. (طبراني)

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي الله د اسلام بنسټ پر صفايي ایښی دی، هغه څوک به جنت ته ځي چي پاک او صاف اوسي. (ابو الصنعاء)

له ابن عمر ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو ! خپل ځانونه پاک ساتئ. (طبراني)

رسول الله ﷺ ویلي: اې د الله بندګانو ! علاج کوئ ځکه الله له بوډاتوب پرته د هر مرض دوا پیدا کړې ده. همدا رازیې ویلي: برکت د خوراک په منځ کي نازلیږي ځکه نو د لوښي له څنډو خوراک کوئ، له منځه يې مه خورئ ځکه په منځ کي خوراک د بې برکتۍ سبب ګرزي او د تهذیب خلاف هم دی. (ترمذي)

## د بدن سينګار :-

له جابر ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زموږ لیدنې ته راغلی یو سړی یې ولید چي په بولو او خاورو لړلی او وېښتان یې پاشلي وو. ده وویل له هغه سره کومه ږمونځ نه شته چي خپل وېښتان پرې سم کړي؟.

یو بل کس یې ولید چي خیرنې جامې یې اغوستې وې، نو ویې ویل: له ده سره داسي څه نه شته چي خپلې جامې پرې ومينځي. (مشکوة)

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د سر

وبښتان او ږيره لري نو بايد ښه يې سم کړي. (ابوداود، مشکوة)

**په ستاينه کي زياتوب:-**

رسول الله ﷺ يو ځل يو سړی د بل پر ډېره ستاينه وليد نو ويې ويل: تا هغه هلاک کړ او يو بل ځای يې وويل چي تا د خپل ملګري غاړه پرې کړه، که د چا ستاينه کوئ نو داسي وواياست چي زه ګومان کوم په دې شرط چي د ده د معلوماتو له مخې هغه واقعا داسي وي او پر غيبو دي قاطع حکم نه کوي.

(صحيح البخاري، سيرت النبي)

**قناعت:-**

له فضاله بن عبيد ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: هغه چا لره زېری دی چي د اسلام هدايت تر لاسه کړي، روزي يې له اړتيا سره برابره وي او الله ده ته قناعت ورکړی وي. (زوايد صحيح ابن حبان، سيرت النبي)

**بهتان:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي که څوک پر خپل نوکر بې ګناه تور ولګوي نو الله به يې د قيامت په ورځ پر شا ووهي، همدارنګه يې وويل: پر چا چي کومه بدي نه وي نو هغه ته منسوبول يې بهتان دی.

(سنن ابی داود، سيرت النبي)

**د بوډا درناوی:-**

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که کوم ځوان د بوډاتوب له کبله د يو چا درناوی وکړي نو الله به يې د بوډاتوب لپاره داسي څوک وټاکي چي د ده درناوی به کوي. (ترمذي، مشکوة)

## له ظالم او مظلوم سره مرسته: -

له انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د مظلوم فریاد واوري نو الله به (۷۳) مغفرتونه ورته ولیکي چي یو مغفرت د هغه د چارو د اصلاح کېدو ضامن دی او (۷۲) مغفرتونه به په قیامت کي د هغه د درجو لوړېدو سبب وي. (بیهقي، مشکوة)

له انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: له خپل مظلوم او ظالم ورور سره مرسته وکړئ، یو چا وویل چي اې د الله رسوله! له مظلوم سره خو مرسته کوم مګر له ظالم سره څرنګه مرسته وکړم؟. ده وویل: له ظلمه یې را وګرزوه، همدا ورسره مرسته ده. (بخاري، مسلم، مشکوة)

## په مصیبت څپلي ملنډې وهل: -

له وائله ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د خپل ورور په غم مه خوشالېږئ که نه الله به پر هغه رحم وکړي او تاسو به په غم اخته کړي. (ترمذي)

## څو نصیحتونه: -

له براء بن عازب ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته د اوو شیانو د کولو امر وکړ او له څو شیانو یې منعه کړو موږ ته یې د دې شیانو امر وکړ:

۱) د ناروغ پوښتنه. ۲) له جنازې سره تګ. ۳) پرنجي کوونکي ته یرحمک الله ویل. ۴) قسم پوره کول. ۵) له مظلوم سره مرسته. ۶) سلام دودول. ۷) د مېلمستیا بلنه منل.

او مور یې له دې شیانو منعه کړو:

۱) د سرو زرو له ګوتمۍ. ۲) د سپینو زرو د لوښو له استعمال. ۳) د سرو جامو له اغوستلو او زین پورته جوړولو. ۴) د پنډو او نرمو وریښمو له کارولو. (متفق علیه)

## له ملګري سره لیدنه:-

ابی رزین ﷛ وایي چي رسول الله ﷺ را ته وویل: زه تا ته د دې دین هغه بنسټ در ښیم چي په وسیله یې د دنیا او اخرت خیر تر لاسه کولای شې: ۱) د ذکر کوونکو په مجلس کي کښېنه (له هغو خلګو سره چي الله یادوي.) ۲) کله چي یوازي یې نو تر خپله وسه د الله ذکر کوه. ۳) یوازي د الهي رضا لپاره مینه او کرکه کوه. اې ابو رزینه! ته پوهېږې چي کله یو مسلمان د خپل مسلمان ورور د لیدنې او زیارت په اراده له کوره وزي نو څه کېږي؟. د هغه تر شا اویا زره ملایکې وي چي ده ته استغفار غواړي او وایي: اې ربه! دې کس صرف ستا د رضا لپاره هغه بل ولید، ته خپل رحمت او شفقت ورباندي وکړه، نو که ته دا ډول کولای شې یعني له خپل ورور سره لیدلای شې حتما یې وکړه. (بیهقي، مشکوة)

## یو مسلمان د بل مسلمان هنداره ده:-

ابو هریره ﷛ وایي چي یو مومن د خپل ورور هنداره ده، کله چي پکي عیب ویني نو د اصلاح لور ته یې متوجې کوي. (بخاري، الادب المفرد)

رسول الله ﷺ ویلي: د چا په زړه کي چي د خپل ورور لپاره د اخلاص او محبت احساسات وي نو په کار ده چي هغه هم وپوهوي او ورته ووایي چي درسره مینه لرم. (الادب المفرد، مشکوة)

**د سوال غندل:-**

په حدیث کي دي چي محمد او کورنۍ ته یې د صدقې اخیستل روا نه دي. (الخطیب)

کوم انسان چي له اړتیا پرته سوال کوي ګواکي د اور په سکروټو کي لاس وهي. (بیهقي)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: قسم په هغه رب چي زما ځان یې په ولکه کي دی که په تاسو کي څوک رسۍ را واخلي، ځنګله ته ولاړ شي او د لرګیو اوځی راوړي نو تر دې ورته غوره ده چي له یو چا سوال وکړي، هغه یې ومني یا نه.

په حدیث کي دي چي له خلګو هیڅ مه غواړئ. که له تاسو غمچینه ولوېږي نو هم په خپله له اس څخه را کښته شئ در وایې ئې. (مسند احمد)

په حدیث کي دي چي اې مسلمانانو! هیڅکله سوال مه کوئ او که اړتیا وي نو له هغه چا سوال وکړئ چي نېک زړی وي. (مسند احمد)

د مسلمان په لیدو موسکي کېدل صدقه ده:-

په حدیث کي دي چي د خپل ورور په لیدو موسکی کېدل هم صدقه ده. (ترمذي)

## د عذر منل :-

رسول الله ﷺ ویلي: که یو څوک خپل مسلمان ورور ته د تېروتنې عذر وړاندې کړي او هغه یې معذور ونه بولي او عذر یې ونه مني نو هغه دومره ګناهګار دی لکه د ناروا محصول اخیستونکی چي د خپل ظلم او تېري له وجې ګناهګار وي.

## له ایمان سره عمل :-

یو ځل ابو ذر ﷺ وویل چي اې د الله رسوله! له ایمان سره یو عمل را وښیه. ده وویل: الله چي کومه روزي درکړې نورو ته یې هم ورکړه. هغه وویل: اې د الله رسوله! که په خپله څه ونه لري؟. ده وویل: په ژبه نېکي وکړه. هغه وویل: که د ژبې عذر ولري؟. رسول الله ﷺ وویل: له لوېدلي سره مرسته وکړه. هغه وویل: که دی ضعیف وي توان ونه لري. رسول الله ﷺ وویل: که څوک کوم کار نه شي کولای ته یې کار ورو وکړه، ده وویل: که په خپله هم دا ډول کار نه شي کولای. ده وویل: خلک له خپله شره وساته.

(مستدرک حاکم، سیرت النبي)

## د احسان منل :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: څوک چي له انسانانو مننه نه کوي د الله شکر هم نه شي ادا کولای. اسامه بن زید ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: که له چا سره احسان وشي او هغه ورته ووایي: جزاک الله خیرا نو د خپل احسان کوونکي بشپړه ستاینه یې وکړه.

(مسند احمد، ترمذي، مشکوة)

**سپارښتنه:-**

له ابو موسی اشعري ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ خپلو صحابه وو ته وویل: که کوم حاجت درلودونکی سوال کوي نو سپارښتنه يې وکړئ، تاسو ته به يې ثواب درکړل شي او الله چې د خپل رسول پر ژبه کوم څه وغواړي جاري کوي يې. (بخاري، مسلم، مشکوة، حیات المسلمین)

**پټې خبرې:-**

عبدالله ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وويل: که درې کسان سره ملګري وي نو دوه دې په خپل منځ کې پټې خبرې نه کوي. (ادب المفرد)

د سرو او سپينو زرو لوښي کارول:-

له حذیفه ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وويل: حرير او ورېښم مه اغوندئ، د سرو او سپينو زرو په لوښي کې مه څښئ او د سرو و سپينو زرو په کاسو او لوښو کې خوراک مه کوئ ځکه دا شيان په دنيا کې د کافرانو لپاره دي او په اخرت کې ستاسو لپاره. (بخاري، مسلم، مشکوة)

**فحش خبرې:-**

له عائشې ﷝ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وويل: د قيامت په ورځ به د الله په نزد هغه سړی تر ټولو بد وي چې خلک ور سره د بدې ژبې او فاحشو خبرو له وجې ليدنه پرېږدي. (بخاري، مسلم)

**بې ځايه ستاينه:-**

رسول الله ﷺ ويلي: کله چې تاسو يو څوک پر بې ځايه ستاينه ووينئ نو په خوله کې يې خاوره ور واچوئ يعني خپګان ښکاره کړئ. (مشکوة)

**د فاسق ستاینه:-**

رسول الله ﷺ ویلي: کوم وخت چي د فاسق ستاینه کېږي نو الله غوسه وي او عرش یې له امله رېږدي. (مشکوٰة)

**روغتیا او خوشبویي:-**

په مسند بزار کي له رسول الله ﷺ څخه روایت دی چي ویې ویل: الله طیب دی خوشبویي خوښوي، پاک دی، پاکي خوښوي، کریم دی کرم خوښوي، سخي دی سخاوت خوښوي ځکه نو خپل کور او انګړ پاک ساتئ. (زاد المعاد)

له رسول الله ﷺ څخه په صحیح روایت کي ثابته ده چي الله پر هر مسلمان لازمه کړې چي په اوو ورځو کي لږ تر لږه یو ځل غسل وکړي، که خوشبویي ورسره وي نو ویې لګوي او د خوشبویي خاصیت دا دی چي ملایکې ورسره مینه کوي، شیطانان ترې کرکه ځکه د هغوی بد بویه او چټل شیان خوښ دي. د پاکو روحونو خوشبویي خوښه وا و د چټلو روحونو بد بویي، یعني هر روح په خپله خوښه پسي ځي.

**د ځمکي بدلول:-**

که کوم کور یا ځمکه خوند نه درکوي او خرڅوئ یې نو مصلحت دا دی چي ژر بل سرای او ځمکه په واخلئ ځکه د روپو پاتېدل ستونزمن دي له لاسه وزي. (حیات المسلمین، ابن ماجه)

## غیرت او احسان:-

رسول الله ﷺ ویلي چي د بل مشورو ته ځان مه اړ کوئ، ځان د نظر او پخې ارادې خاوندان کړئ، د چا کور ته له بلنې پرته مه ورځئ، تاسو وایاست چي که څوک را سره ښکي وکړي نو موږ به هم ورسره ښکي وکړو او که څوک را سره بدي وکوي نو موږ به هم ورسره بدي وکړو خو تاسو باید ځانونه له دې سره عادي کړئ چي که څوک در سره احسان وکړي نو تاسو هم ورسره احسان کوئ خو که څوک در سره بد وکړي نو تاسو بد نه بلکي ښه ورسره کوئ. (ترمذي، مشکوة)

## مزې او چړچې:-

له معاذ بن جبل ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته وویل: ګوره ډېري مزې مه کوه د الله نېک بندګان ارام نه لري. (مسند احمد، بیهقي)

## یو بل ته مېلمستیا:-

حمزه بن صهیب ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! په تاسو کي یو بل ته مېلمستیا کوونکي او د مخامخ کېدو پر مهال سلام کوونکي غوره دي. (ابن سعد)

## د دعا اداب:-

د دعا غوره اداب دا دي چي روزي پاکه وي، د رښتیا ویلو عادت ولري، په دعا کي زاري وکړي، قبولیت ته یې بېړه ونه لري، په پیل کي یې د الله حمد و ثنا او پر رسول الله درود وسلام وویل شي، د ده آل و اصحاب هم یاد شي او نور.

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به کله دعا کوله نو د دوارو لاسونو ورغوي به یې سره یو ځای کړل مخ ته به یې ونیول او تر دعا وروسته به یې دواړه پر مخ تېر کړل، خو دا په هغه حالت کي چي له لمانځه بهر وي. (مدارج النبوة)

## د ارام غوښتني عادت ښه نه دی :-

فضاله بن عبید ﷺ روایت کوي چي رسول الله ﷺ موږ له ډېري ارام غوښتني منعه کولو او ویل یې چي کله - کله لوڅي پښې هم ګرزئ.

(ابوداود)

له ابن ابی حدرد ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په سختي ګوزاره کوئ، ډېر ارام مه غواړئ او لوڅي پښې ګرزئ.

(جمع الفواید، طبراني)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي موږ د بدر په ورځ درې نفر پر یوه اوښ سپرېدو، ابو لبابه او علي ﷺ سره شریکان وو کله چي به په پښو د رسول الله ﷺ د تلو وار راغی نو دوی دواړو به ویل چي موږ به ستا پر ځای پیاده ولاړ شو. ده به ویل: نه تاسو تر ما قوي یاست او نه زه له ثواب څخه بې نیازه. (شرح السنة)

## حلال کسب :-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د فرضو عباداتو تر پر ځای کولو وروسته په حلاله طریقه روزي ګټل تر ټولو مهم فرض دی. (مشکوة)

له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د حرام مال نه صدقه ختمېږي او نه برکت لري، څوک چي تر مرګ وروسته حرام میراث پرېږدي نو هغه به یې د جهنم دروازه وي، الله بدي د بدي په وسیله نه ختموي بلکي بدي په نېکي ختموي ځکه خبیث په خبیث له منځه نه شي تلای. (بخاري، مسلم، احمد)

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: شتمني خوږه او خوندوره ده، که یې څوک په حق سره وګټي او په حقه یې ولګوي نو ښه مرستندوی شی دی. (بخاري، مسلم)

له کعب بن مالک ﷺ څخه روایت دی چي ما وویل: اې د الله رسوله! ما وعده کړې چي رښتیا به وایم، خپل ټول مال به الله او رسول ته بخښم او لاس به ترې اخلم. رسول الله ﷺ وویل: یو څه مال در وګرزوه، دا درته غوره ده. نو ما وویل: خپله هغه حصه را ګرزوم چي په خیبر کي را کړل شوې وه. (ترمذي)

له حذیفه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: مومن باید ځان خوار نه کړي. ده ته وویل شول چي مطلب دي څه دی؟. ده وویل: د نفس خوارول دادي چي څه دي په وس نه وي پوره، مه یې کوه. (ترمذي)

## ساده ګي:-

له ابو امامه ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ساده ژوند ایمان دی. (ابوداود، حیات المسلمین)

**بدعت: -**

له جابر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: تر ټولو غوره خبره د الله کتاب دی او غوره لار د محمد ده، تر ټولو بد شی په دین کې بدعت پیدا کول دي او هر بدعت ګمراهي ده. (مسلم)

**د بدعت منعه: -**

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که چا زموږ په دې دین کې داسې نوی کار پیدا کړ چې پکې نه وو نو هغه مردود دی.

(بخاري، مسلم، حیات المسلمین)

## نبوي طب

**په دعاوو او دواوو علاج: -**

رسول الله ﷺ د بدن علاج په دريو ډوله کاوه یو طبي دواوې چې د جماداتو او حیواناتو په اجزاوو تعبیرېږي، دویم په روحاني او الهي دعاوو چې ځینې دعاوې، اذکار او قرآني ایاتونه دي او دریم قسم مرکب علاج دی چې له دواړو جوړوي یعني هم په دعاوو او هم په دواوو.

**په دعا علاج: -**

تر قرآن هیڅ ګټور، عام او ستر علاج بل نه دی نازل شوی.

الهي وینا ده:

ونُنزّل من القرآن ما هو شفاء و رحمة للمؤمنین.

او موږ په قرآن کې هغه څه نازلوو چې د مومنانو لپاره شفا او رحمت دی.

قرآن ځکه د بدني ناروغیو لپاره شفا ده چي تلاوت یې د برکت او خیر وسیله ده، د ډېرو ناروغیو او مرضونو لپاره ګټور دی. رسول الله ﷺ ویلي: څوک چي د قرآني شفا په لوستلو روغ نه شي نو الله به هیڅکله روغتیا ورنه کړي. په حدیث کي دي چي الحمدلله د هر مرض دوا ده. په حدیثو ثابته ده چي د زهرجنو حیواناتو چیچل شوی، لېونی، ماتو او سحر ځپلی په الحمدلله سره رغېدلي دي، د امیر المؤمنین علي ﷺ په حدیث کي دي چي ابن ماجه مرفوع روایت کړی: الدواء القرآن یعني قرآن غوره علاج دی.

په معوذتینو او نورو الهي نومونو علاج هم روحاني درملنه ده خو په دې شرط چي د نېکانو، متقیانو او پرهېزګارانو له پوره توجو سره وویل شي مګر څرنګه چي یې شتون ډېر نه دی له همدې کبله خلک جسماني درملني ته مندې وهي او له دې شیانو غافل او بې پروا دي.

له معوذاتو څخه مطلب دا دی چي په حدیث کي راغلي رسول الله ﷺ به قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس پر خپل ځان دمول او ځینو قل هو الله او قل یا ایها الکافرون هم ترې مرادوي. علماء کرامو د درو شرطونو د یو ځای کېدو پر مهال د روغتیایي دعاوو پر اجواز اجماع کړې ده. اول شرط دا دی چي هغه دعا به د الله کلام او د هغه اسماء و صفات وي، په عربي ژبه وي او که په بله ژبه خو په معنا به یې پوهېږي او دا باور به لري چي حقیقي موثر الله دی او د دعا تاثیر د هغه په مشیت پوري تړاو لري.

په احادیثو کي د تاویز سند هم شته. ابن مسعود ﷺ به عاقلانو ماشومانو ته دعا ورزده کوله او کومو ماشومانو چي به عقل نه درلود د

هغوی لپاره به یې د کاغذ پر ټوټو لیکله او په غاړه به یې ور ځړوله او علماء هم دا کار جایز بولي. (مدارج النبوة)

## د بد نظر لپاره دم:-

په صحیحینو کې له عائشې ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ما او یا بل چا ته امر وکړ چې د نظر له ناروغۍ دم وکړو. (زاد المعاد)

اسماء بنت عمیس ؓ یو ځل وویل: اې د الله رسوله! ابن جعفر نظر کېږي ایا دم پرې وکړم؟، ده وویل: هو که کوم شی تر قدر مختته کېدای نو نظر به وو. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ ویلي: د خپلو ناروغانو علاج په صدقه سره وکړئ. (الترغیب و الترهیب)

کله چې یو څوک د خپل بد نظر وېره ولري نو د دې دعا په ویلو دې هغه شرط له منځه یوسي: اللهم بارک علیه یعني اې الله! پر هغه برکت وکړه. رسول الله ﷺ عامر ؓ ته هغه مهل چې سهل بن حنیف نظر کړ ویې ویل: ایا تا د برکت دا دعا نه ده کړې؟ یعني اللهم بارک علیه او ما شاء الله لا قوة الا بالله هم نظر له منځه وړي. (زاد المعاد)

## د بد نظر نبوي علاج:-

رسول الله ﷺ یې په معوذتینو علاج کاوه، یعني په هغو ایاتونو او کلمو چې په سر کې یې استعاذه ده لکه معوذتین، سورت الفاتحه، ایت الکرسي او نور. علماء وایي چې د شفا تر ټولو مهمه او لویه دعا سورت الفاتحه، ایت الکرسي او د معوذتینو ویل دي او د بد نظر دفع کولو لپاره باید ماشاء الله،

لا قوة الا بالله وویل شي او که لیدونکی د خپل بد نظر له ضرره وېرېږي نو ودي وايي چي اللهم بارک علیه په دې سره به بد نظر منع شي. رسول الله ﷺ د ټولو بدني مرضونو لپاره دمونه او دعاوې کولې مثلا د تبې، نېلګي، وېري، بې خوبۍ، زهرو، غمونو، درد، لوړې، سوخت، غابنونو د درد، بولو بندېدو او نورو لپاره. د دې ټولو دعاوې او تعویذات د احادیثو په کتابونو کي شته باید هلته پیدا شي، د نظر هر ډول بلاوو او مرضونو و افتونو لپاره د رسول الله ﷺ ځانګړې دعا دا وه: اذهب البأس رب الناس واشف انت الشافی لا شفاء الا شفاءک شفاء لا یغادر سقما. اې د خلګو ربه! تکلیف لرې کړه او شفا ورکړه، ته شفا ورکوونکی یې، ستا له شفا پرته بله شفا نه شته، داسی شفا چي مرض پرې نه ږدي.

## د لا حول ولا قوة عمل:-

له ابن عباس ﷛ څخه روایت چي رسول الله ﷺ وویل: که پر چا غمونه او اندېښنې ډېري شي نو لا حول و لا قوة الا بالله دي ډېر وایي، ملایان وایي چي تر دې کلمې بل لوی مرستندوی نه شته. (مدارج النبوة)

## ایت الکرسي:-

په حدیث کي دي چي که څوک د تکلیف او سختی پر مهال ایت الکرسي او د بقرې وروستي ایاتونه ووایي الله به یې فریاد واوري.
(مدارج النبوة)

**هر اړخیزه دعا:-**

له سعد بن ابی وقاص ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: یقینا ما ته هغه کلمې معلومې دي چي که یې هر غم ځپلی ووایي نو الله به نجات ورکړي، دا زما د ورور یونس ﷺ دعا ده چي په تیارو کي یې غوښتې وه: لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظالمین. اې الله! له تا پرته هیڅ معبود نه شته، ته پاک یې، بېشکه زه له ظالمانو څخه یم. (مدارج النبوة، ترمذي)

**د فقر دعا:-**

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی ویې ویل: اې د الله رسوله! دنیا ما ته شا راګرزولې او پرېښې یې یم. رسول الله ﷺ وویل: تا د ملایکو صلوة او د مخلوق تسبیحات څه کړي دي؟ بیا یې وویل: د سهار راختلو پر مهال سل ځله دا دعا وایه: سُبحان الله و بحمده سبحان الله العظیم وبحمده استغفر الله نو دنیا به خواره او ذلیله درته راشي، هغه سړی ولاړ او څه موده رانغی بیا راغی او ویې ویل چې اې د الله رسوله! زما دنیا دومره ډېره شوې چي په خوندیتوب یې نه پوهېږم. دا دعا بزرګانو د سهار د سنتو او فرضوتر منځ ویلې ده او له دې سره یې د لا حول و لا قوة الا بالله العلی العظیم کلمه هم ویلې ده، په حدیث کي دي چي دا ټول ګناهونه بخښي او رزق پراخوي ځکه چي استغفار د رزق پراخېدو سبب دی او ګناهونه رزق تنګوي هر ډول غم او خپګان پیدا کوي. (مدارج النبوة)

## په سر کي د درد دعا:-

حمیدي د یونس بن یعقوب بن عبدالله په روایت د سر د درد په اړه دعا نقل کړې چي رسول الله ﷺ په سره کي د درد پر مهال دا دعا ویله: بسم الله الکبیر و اعوذ بالله العظیم من کل عرق نعار و من شر حر النار. د الله په نوم چي ډېر لوی دی او په لوی الله د هر رګ له چاودېدو او د اور د ګرمۍ له شره پناه غواړم.

## د هر درد او بلا دعا:-

ابان بن عثمان رضی الله عنه له خپل پلار عثمان څخه روایت کړی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ویې ویل: که څوک هر ماښام درې ځله ووایي چي بسم الله الذی لا یضر مع اسمه شیء لا فی الارض و لا فی السماء و هو السمیع العلیم. د الله په نوم شروع کوم چي د ده له نوم سره نه په ځمکه کي شی زیان رسولای شي او نه په اسمان کي دی ډېر اورېدونکی ښه پوه دی. نو تر سهاره به په ناڅاپي مصیبت او بلا اخته نه شي او که یې یو څوک سهار ووایي نو تر ماښامه به په ناڅاپي مصیبت او افت اخته نه شي. (مدارج النبوة)

## د خوراک دعا:-

امام بخاري رحمه الله په خپل تاریخ کي له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت کړی چي که څوک د خوراک پر مهال ووایي: بسم الله خیر الاسماء فی الارض و السماء لا یضر مع اسمه داء اللهم اجعل فیه رحمة و شفاء. د الله په نوم شروع کوم چي تر ټولو نومونه غوره دی، په ځمکه او اسمان کي د ده له نوم

سره هیڅ ناروغي زیان نه رسوي، اې الله! په دې کې شفا او رحمت پیدا کړه نو هیڅ شی به ضرر ورونه رسوي. (مدارج النبوة)

## پر غاښ د درد دعا:-

بیهقي له عبدالله بن رواحه څخه نقل کړی چې ده رسول الله ﷺ ته پر غاښ د درد شکایت وکړ نو هغه خپل لاس د ده پر هغه بارخو کېښود چې پرې درد وو، او وه ځله یې وویل: اللهم اذهب عنه ما یجد و فحشه بدعوت نبیک المسکین المبارک عندک. اې الله! د ده تکلیف او سختي د خپل مسکین نبي په دعا چې ستا په نزد برکتمن دی لرې کړه. د لاس تر پورته کولو وړاندې الله هغه درد ختم کړ.

## په دعاوو علاج:-

رسول الله ﷺ ډېر وخت د دعاوو په وسیله هم د مریضانو علاج کاوه، ښکاره ده چې رسول الله ﷺ طب د وحې په وسیله ور ښودل شوي ول، که څه هم ځیني ځایونه به یې علم، اجتهاد او تجربې ګڼه نه وي اخیستې خو پر روحاني دعاوو تکیه کول له دې امله وو چې هغه بشپړې، اعلی، خاصې او کاملې دي.

## ناروغۍ او علاج:-

د رسول الله ﷺ سنت دا وو چې د ځان، کورنۍ او صحابه کرامو علاج یې کاوه، د ده ډېری دعاوې له مفرداتو جوړې وې.

## په نس کي د خوراک اندازه :-

رسول الله ﷺ ویلي: انسان هیڅکله تر نس بل لوښی د ډېر نه دی ډک کړی، انسان ته څو ګولۍ کافي دي چي په دې سره یې ملا سیده وي او که حتمایو څه خوري نو درېیمه برخه دي وخوري، درېیمه برخه دي او بو ته وقف کړي او درېیمه برخه د ساه اخیستلو لپاره. (مسند، زاد المعاد)

## د مریض خوراک :-

رسول الله ﷺ ویلي چي ناروغ خوراک ته مه اړباسئ ځکه الله خوراک او څښاک ورکوي. (جامع ترمذي، ابن ماجه، زاد المعاد)

## په حرامو شیانو کي شفا نه شته :-

په سننو کي روایت دی چي له رسول الله ﷺ څخه له دواوو سره د شرابو ګډولو په اړه پوښتنه وشوه نو ده وویل: دا مرض دی نه علاج. (زاد المعاد)
له رسول الله ﷺ څخه نقل شوی چي ویې ویل: که څوک په شرابو علاج وکړي الله دي نه جوړوي. (زاد المعاد)

## په مرض کي د شیدو کارول :-

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د شیدو وړه دوړې د ناروغ زړه ته قوت ورکوي او غم یې لرې کوي، کله چي به رسول الله ﷺ ته وویل شول چي فلانی درد لري او خوراک نه خوري نو ویل به یې: د شیدو ګډ خوراک ورکړئ او رسول الله ﷺ ویلي: په هغه ذات قسم چي زما ځان یې په ولکه کي دی دا مو نس داسي مینځي لکه تاسو چي د خپل مخ خیري پاکوئ. (زاد المعاد)

## د عسلو اغېز :-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک هره مياشت درې ورځې سهار مهال عسل وخوري نو په کوم غم او تکليف به اخته نه شي. (ابن ماجه، بيهقي، مشکوة)

## په قرآن او عسلو کي شفا :-

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د شفا دوه شيان قرآن او عسل پر ځان لازم کړئ. (ابن ماجه، بيهقي، مشکوة)

## د مرض انتقال او بد فالي :-

له سعد بن مالک ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د مرض انتقال او بد فالي هيڅ شی نه دي. (ابوداود، مشکوة)

## د تورې دانې تاثير :-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ويې ويل: توره دانه (حبة السوداء) له مرګ پرته د هرې ناروغۍ علاج دی.
(بخاري، مسلم، مشکوة)

## د دمونو کارول :-

په حديث کي دي چي رسول الله ﷺ وويل: که په دم کي شرک نه وي نو پروا نه لري. (مسلم، مشکوة)

## د زيتون غوړي :-

له زيد بن ارقم ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ذات الجنب په ناروغي کي د زيتونو تېل او ورس غوره بللي؟. (ترمذي، مشکوة)

## په دوا کي د حرامو شیانو منعه:-

رسول الله ﷺ ویلي: په دوا سره د ناروغیو علاج کوئ خو له حرامو شیانو ځان ساتئ. (ابوداود، مشکوة)

## د کمزوري زړه علاج:-

په سنن ابی داود کي مجاهد له سعید ؓ څخه روایت کړی چي زه ناروغ شوم، رسول الله ﷺ مي پوښتني ته راغی او خپل لاس يې زما پر سينه کښېښود. ما يې سړوالی په خپل زړه کي احساس کړ. ده وويل: د مديني له اوو عجوه خورماوو زړني وباسه او د خپل زړه علاج پرې وکړه. (زاد المعاد)

په صحيحينو کي له عامر بن ابی وقاص ؓ څخه روايت دی چي ده له خپل پلار څخه نقل کړی، هغه وويل: رسول الله ﷺ ويل چي که څوک سهار اووه عجوه خورماوې وخوري په هغه ورځ به هيڅ زهر او جادو پرې اغېز ونه کړي. (زاد المعاد)

## مېرګي:-

رسول الله ﷺ به د ہر ځله د افت ځپلي په غوږ کي دا ايت وايه: افحسبتم انما خلقناکم عبثا وانکم الينا لا ترجعون په ايت الکرسي سره يې هم علاج کېږي، افت ځپلي ته به يې د دې د ويلو امر کاوه او د معوذتينو تلاوت ته يې هم هڅاوه. (زاد المعاد)

## مچ:-

له ابو هريره ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که ستاسو په لوښي کي مچ ولوېږي نو په غوټه کولو يې وباسئ ځکه په يوه وزر کي يې

ناروغي او په بل کي يې شفا ده. (صحيحين، زاد المعاد)

# پنځم باب ... اخلاقيات

## غوره اخلاق

### نېک اخلاق:-

له عائشې ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: يو مومن سړی د خپلو ښو اخلاقو په وسيله د هغو خلکو درجه تر لاسه کوي چي ټوله شپه نفل کوي او د ورځې تل روژه نيسي. (ابوداود)

رسول الله ﷺ ويلي: په تاسو کي پر ما ګران او په اخرت کي ما ته نژدې هغه څوک دی چي ښه اخلاق ولري، په تاسو کي زما بد ايسېدونکی او په اخرت کي له ما تر ټولو لرې هغه څوک دی چي اخلاق يې بد وي.

(بهشتي زيور)

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: په مومنانو کي د کامل ايمان څښتنان هغه دي چي ښه اخلاق ولري.

(ابوداود، دارمي، معارف الحديث)

له عائشې ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په خپلو دعاوو کي ويل: اې الله! تا په خپل کرم زما بدن ښه جوړ کړی، همداسي مي اخلاق هم ښه کړه. (احمد، معارف الحديث)

په روايت کي دي چي ځينو صحابه وو وويل: اې د الله رسوله! انسان ته تر ټولو کوم ښه شی ورکړل شوی دی؟. ده وويل: غوره اخلاق.

(بيهقي، معارف الحديث)

له معاذ بن جبل ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ما ته وروستی وصیت دا وکړ چې د خلګو لپاره دې اخلاق ښه کړه یعنې د الله له مخلوق سره ښه چلند کوه. (موطا امام مالک، معارف الحدیث)

## د الهي عرش لیاقت درلودونکي:-

رسول الله ﷺ وویل: په کومه ورځ چې به د الله له سیوري پرته بل سیوری نه وي نو هغه به اوو کسانو ته تر خپل سیوري لاندې ځای ورکړي، له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: الله به د قیامت په ورځ چې د هغه له سیوري پرته به بل سیوری نه وي اوو کسانو ته د خپل رحمت په سیوري کې ځای ورکړي.

۱) عادل او انصاف کوونکی واکمن.

۲) هغه ځوان چې د الله په عبادت کې را لوی شي.

۳) هغه مومن نارینه چې له مسجد څخه تر راوتلو وروسته یې هم زړه بیرته تر هغو له مسجد سره تړلی وي چې ورته راځي.

۴) هغه دوه کسان چې د الله لپاره له یوه بل سره مینه کوي، د همدې لپاره سره یو ځای کېږي او بېلېږي.

۵) د الله هغه بنده چې کله په یوازیتوب کې الله یاد کړي نو له سترګو یې اوښکې وبهېږي.

۶) هغه سړی چې یوه ښکلې ښځه د بد کارۍ دعوت ورکړي نو دی ورته ووایي چې زه له الله وېرېږم.

۷) او هغه سړی چې د الله په لار کې په داسې پټ ډول صدقه وکړي چې راسته لاس یې د ښي لاس په عمل نه وي خبر. (صحیح البخاري، صحیح مسلم، معارف الحدیث)

## د نېک کار کول:-

له ابی جحیفه ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وویل: که څوک په اسلام کې یوه ښه طریقه را منځ ته کړي نو د دې کار او تر هغه وروسته چې هر څوک عمل پرې کوي ده ته به یې ثواب ورکول کېږي خو د عمل کوونکو ثواب نه کمېږي او که څوک په اسلام کې د بدې طریقې بنسټ کښېږدي نو ده ته یې خپله او د هغو ټولو خلګو سزا ورکول کېږي چې وروسته عمل پرې کوي او د عمل کوونکو ګناه هم نه کمېږي. (ابن ماجه)

## احسان:-

له حذیفه ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وویل: مه د نورو په لیدلو کار کوئ او مه دا وایاست چې که هغوئ راسره ښه وکړل موږ به هم ښه ورسره وکړو او که هغوی د ظلم لار ونیوله نو موږ به هم داسې کوو، بلکې په خپلو زړونو کې پخه اراده وکړئ چې که نور نېکي کوي نو هم به نېکي کوئ او که نور بد چلند کوي نو هم به تاسو ظلم او بد چلند نه کوئ. (ترمذي)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وویل: که د الله کوم بنده د کونډې او بې کسه مېرمنې کوم مسکین او اړ انسان په کارو کې منده کوي نو په اجر او ثواب کې د هغه چا په څېر دی چې د الله په لار کې په منډه وي. راوي وایي چې فکر کوم رسول اللهﷺ دا هم وویل چې دی د هغه شپه ویښوونکي په څېر دی چې د شپې لمونځ کوي ستړی کېږي نه او د هغه روژتي په څېر دی چې تل روژه نیسي او هیڅکله یې نه خوري.

(صحیح البخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## توکل او قضا ته تسلیمېدل :-

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: زما د امت اویا زره کسان به له حساب پرته جنت ته داخل شي. دا به هغه بندګان وي چي دم نه غواړي، بد فالي نه مني او پر خپل رب توکل کوي.

(بخاري، مسلم)

له سعد ﷺ څخه روایت دی چي دا د انسان نېکبختي او نېکمرغي ده چي الله یې په اړه څه پرېکړه کړې دی پرې راضي شي او دا یې بد بختي ده چي د ځان لپاره له الله څخه خیر او نېکي نه غواړي او دا یې هم بد نصیبي ده چي د ځان په اړه د الله له پرېکړي ناخوښ وي.

(مسند احمد، جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## په کار کي ټینګښت او وقار :-

له عبدالله بن سرجس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ښه ګردار او د خپلو کارونو په ترسره کولو کي د اطمنان، وقار او اعتدال عادت د نبوت له څلورویشتو حصو څخه یوه حصه ده.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## رښتیا ویل او انصاف :-

رسول الله ﷺ ویلي چي زما امت به تر هغه وخته تازه وي چي درې خویونه پکي پاتي وي یو دا چي رښتیا وایي، بل دا چي د خلکو تر منځ د پرېکړو پر مهال انصاف کوي او درېیم دا چي کله ترې د رحم غوښتنه وشي نو پر کمزورو رحم کوي. (متفق علیه، ابو یعلی)

## د احساساتو کنټرول:-

له رسول اللهﷺ څخه روايت دی چي ويې ويل: که په چا کي دا درې شيان نه وي هيڅ عمل به يې ګټه ورته ونه کړي يو دا چي د خپل نفس د احساساتو کنټرول له لاسه ورنه کړي، دويم دا چي کله جاهل انسان ورباندي حمله وکړي نو دی يې په خاموشي وزغمي، درېيم دا چي د خلګو تر منځ په ښو اخلاقو ژوند وکړي. (طبراني)

## د جنت ضمانت:-

رسول اللهﷺ ويلي چي اې مسلمانانو! که تاسو د شپږو شيانو ضمانت راکړئ نو زه تاسو ته د جنت ضمانت درکوم اول دا چي رښتيا وايئ، دويم دا چي وعده پوره کوئ، درېيم دا چي په امانت کي خيانت مه کوئ، څلورم دا چي خپل نظر ونه ټيټ ساتئ، پنځم دا چي پر يو چا ظلم مه کوئ او شپږم دا چي د نفس احساسات کنټرول کړئ. (مسند احمد، حاکم)

## د جنت زېری:-

يو ځل رسول اللهﷺ د جنت يادونه وکړه او د هغه ښکلا و پراختيا يې بيان کړه. په مجلس کي يوه موجود صحابي بې اختياره وويل: اې د الله رسوله! دا جنت به چا ته ورکړل کېږي؟. ده وويل: څوک چي خوږې خبرې کوي، وږي مړوي، ډېر ژاړي او هغه مهال لمونځ کوي چي نړۍ وال ويده وي. (ترمذي، سيرت النبي)

## صدق او امانت او دروغ و خیانت:-

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: تل رښتیا وایاست ځکه رښتیا د نېکي لار ده او نېکي جنت ته رسېږي. انسان چي کله تل رښتیا وایي او صداقت غوره کوي نو د صدیقینو مقام ته رسېږي او الله یې په هغوی کي لیکي، تل له دروغو ځان ساتئ ځکه د دروغو عادت انسان پر بده لار برابروي او بده لار دوزخ ته رسېږي، انسان چي کله په دروغو عادت شي او دا لار غوره کړي نو الله یې په دروغجنو کي لیکي.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د الله او رسول رښتني مینه:-

له عبدالرحمن بن ابی قراد ﷺ څخه روایت دی چي یوه ورځ رسول الله ﷺ اودس وکړ نو صحابه وو یې اوبه پر خپل بدن موښلې، ده وویل: تاسو څه شي دې کار ته چمتو کړاست؟. هغوی وویل چي د الله او رسول مینې، د هغوی له دې ځواب اورېدو سره رسول الله ﷺ وویل: که څوک غواړي چي له الله او رسول سره رښتني مینه وکړي او یا الله او رسول له دوی سره مینه وکړي نو په کار ده چي تل رښتیا و وایي، امانت له هر ډول خیانت پرته وسپاري او له خپل ګاونډي سره ښه چلند وکړي.
(شعب الایمان للبیهقي، معارف الحدیث)

## امانت:-

جابر ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وویل: کله چي څوک بل ته یوه خبره وکړي (داسي څه ورته و وایي چي پټه دې یې غواړي) او هغه ولاړ شي نو دا

خبره امانت ده (له اورېدونکي سره د امانت په څېر ده او بأيد هماغسي يې وساتي.)(ترمذي، ابوداود، مشکوة)

له انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په ډېرو کمو خطبو کي دا وينا نه وي کړې چي که څوک امانت ونه لري ايمان يې نه شته او د چا چي وعده تېنګه نه وي دين يې نه شته. (مشکوة)

## د عمر لحاظ:-

له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک پر خپلو کشرانو رحم نه کوي، د مشرانو درناوی نه کوي او امر بالمعروف او نهی عن المنکر نه ترسره کوي هغه له موږ څخه نه دی.

(ترمذي، ترجمان السنة)

## شرم او حيا:-

له رسول الله ﷺ څخه روايت دی چي هر دين ممتاز اخلاق لري، زموږ د دين غوره اخلاق شرم کول دي. (مالک، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ ويلي: کله چي الله يو بنده هلاکوي نو حيا تري اخلي او کله چي حيا ونه لري نو د خلکو بد تري کېږي. کوم مهال چي دې ځای ته ورسېږي نو بيا د امانت صفت ترې اخيستل کېږي او د امانت په له منځه تلو پر له پسې خيانت کوي، تر دې وروسته ور څخه د رحمت صفت پورته کېږي او بيا سرګردان ګرزي کله چي يې تاسو په دې حالت کي ووينئ نو هغه وخت را نژدې کېږي چي د اسلام اړيکه ترې واخيستل شي. (ابن ماجه)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: له الله څخه مناسبه حیا وکړئ، مخاطبینو وویل: الحمدلله موږ له الله څخه حیا کوو. ده وویل: داسي نه، له الله څخه د حیا حق دا دی چي سر او په سر کي خیالات او افکار وساتئ او نس و هغه څه ته پام وکړئ چي دی ترې ډک شوی دی (یعني دماغ له بدو افکارو او نس له حرامو و ناروا خوراکونو وساتئ) تر مرګ وروسته چي په قبر کي کوم حالت وي هغه در یاد کړئ، څوک چي اخرت خپل هدف وګرزوي د دنیا له خوندونو به لاس واخلي، د دې څو ورځو دژوند په مقابل کي به د راتلونکي ژوند بریا او خوشالي غوره کړي نو چا چي داسي وکړل پوه شئ چي له الله څخه یې د حیا حق ادا کړی دی.
(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## نرم مزاج:-

له جریر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک د نرمۍ صفت و نه لري له هر ډول خیر څخه بې برخې دی. (معارف الحدیث)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ایا پر دوزخ حرام شخص در وښیم چي اور ورته ممنوع دی؟ خبردار! د دوزخ اور پر هر هغه چا حرام دی چي مزاج یې توند نه نرم وي، خلکو ته نژدې او نرم خویه وي. (معارف الحدیث، ابوداود، ترمذي)

### په وعده وفا او د هغې مخالفت :-

له زيد بن ارقم ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک له خپل ورور سره وعده وکړي او د پوره کولو نيت يې هم ولري خو د يوه عذر له وجې پر ټاکلي وخت را نه شي نو گنهگار نه دی.

(سنن ابی داود، جامع ترمذي، معارف الحديث)

### تواضع :-

رسول الله ﷺ ويلي چي ما ته الله وحې کړې چي ته خاکساري غوره کړه، هيڅوک دي پر بل غټه نه وايي او ظلم دي نه کوي. (مشکوة)

يوه ورځ عمر فاروق ﷺ پر منبر وويل چي اې خلکو! تواضع او خاکساري غوره کړئ ځکه له رسول الله ﷺ مي واورېدل چي ويل يې: چا چي د الله لپاره تواضع وکړه او د الله پر بندگانو يې ځان لوړ نه کړ نو الله به يې لوړ کړي چي په نتيجه کي به يې دی له خپل فکر او نظر سره سم کوچنی وي مگر د عامو بندگانو په نظر به لوړ وي او څوک چي د تکبر او لويي رويه خپلوي نو الله به يې کښته کړي چي په نتيجه کي به يې عام خلک سپک او ذليل بولي که څه هم ده ته به ځان غټ ښکاري خو د نورو په نظر به تر سپو او خنځيرانو هم ذليل او بې ارزښته وي. (شعب الايمان للبيهقي)

### له الهي بخښنې محروميت :-

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: له درو کسانو سره به الله د قيامت په ورځ نه خبرې وکړي او نه به يې پاک کړي. په يوه بل روايت کي دا هم شته چي دوی ته به ونه گوري او په اخرت کي ورته دردناک

عذاب دی، یو بوډا زاني، دویم دروغجن واکمن او دریم بې وزلی و غریب منکبر. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

**د شکر ادا کول:-**

له عبدالله بن عباس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د کوم نعمت په اول کې چې بسم الله او په اخیر کې الحمدلله وویل شي د هغه نعمت په اړه به د قیامت په ورځ پوښتنه ونه شي. (ابن حبان)

**صبر:-**

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: ایا داسې شی درونه ښیم چې په وسیله یې الله ګناهونه بخښي او درجې یې لوړوي. خلکو وویل: اې د الله رسوله! ضروریې را وښیه. ده وویل: دسختۍ په حالت کې اودس کول، د مسجد پر لور ډېر ګامونه اخیستل او تر یوه لمانځه وروسته بل لمانځه ته انتظار کول. (مسلم، ترمذي)

فایده:-

په داسې وخت کې اودس کول د صبر یو مثال دی.

له ابو موسی اشعري ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: کله چې د یوه بنده اولاد مري نو الله فرشتو ته وایي چې ایا تاسو زما د بنده له اولاد څخه روح واخیست؟. دوی وایي چې هو بیا وایي چې هغه څه ویل؟. دوی وایي چې ستا حمد او ثنا یې بیان کړه او انا لله و انا الیه راجعون یې وویل. الله ورته وایي: زما د بنده لپاره په جنت کې د بیت الحمد په نوم یو کور جوړ کړئ. (احمد، ترمذي، حیات المسلمین)

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که چا ته څلور شیان ورکړل شي نو د دنیا او اخرت خیر ورکړل شو شاکر زړه، ذاکره ژبه، پر تکلیف صابر بدن او داسي مېرمن چي د خپل خاوند په مال کي هیڅ خیانت نه کوي. (بیهقي، حیات المسلمین)

لنډه دا چي پر انسان هر وخت یو حالت راځي، د ده له طبیعت سره برابر وي او که مخالف په لومړي حالت کی د شکر امر دی او په دویم کي د صبر، ځکه نو شکر او صبر همېشني دنده ده، اې مسلمانانو! هیڅکله یې مه هېروئ، بیا به وګورئ چي څرنګه به تل په راحت او سوکاله یاست؟.

(حیات المسلمین)

رسول الله ﷺ ویلي چي که څوک د صبر هڅه وکړي الله به صبر ورکړي، تر صبر غوره او د ډېرو نېکیو را غونډوونکی بل هیڅ مغفرت نه شته.

(بخاري، مسلم)

## صبر او شکر:-

له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که تاسو داسي څوک وګورئ چي په مال، دولت او بدني جوړښت کي تر هغه ښه وي له همدې وجې یې په زړه کي حرص او تمه پیدا کېږي نو هغه ته په کار ده چي تر ځان ټیټ کس ته وګوري څو یې په زړه کي د حرص او تمې پر ځای شکر او صبر پیدا شي. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له صهیب رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د مومن بنده معامله هم حیرانوونکې ده، هره چاره او حالت یې خیر دی. کله چي خوښي، راحت او ارام مومي نو د خپل رب شکر باسي چي دا ورته غوره ده او که ده ته

کوم تکلیف او غم رسېږي نو د خپل رب فیصله یې بولي او د هغه د ارادې په کښلو صبر کوي چي دا هم د ده لپاره خیر او برکت دی.

(مسلم، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عباس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که کوم بنده په مالي او ځاني تکلیف اخته وي، دی یې نه ښکاره کړي او نه خلکو ته ګیلې او شکایت وکړي نو الله به یې حتما بخښي.

(معجم اوسط، معارف الحدیث)

له اسامه بن زید ﷛ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ لور زینب ﷷ رسول الله ﷺ ته یو څوک ور ولېږه چي زما د زوی اخیري سلګۍ دي او مړ کېږي، له همدې کبله ته راشه. ده یې په ځواب کي سړی ور ولېږه او ویې ویل: اې لورې! الله چي له چا څه اخلي هم د ده دي او چي ورکوي یې هم د ده دي. لنډه دا چي هر څه په هر حال کي د ده دي او د هر شي لپاره یې یو وخت ټاکلی دی، نو ته صبر وکړه او له الله څخه د دې تکلیف په بدل کي اجر او ثواب وغواړه. لور یې بیا پیغام ور ولېږه او قسم یې ورکړ چي حتما راشه، نو دی را ولاړ شو ځیني صحابه کرام لکه سعد بن عباده، معاذ بن جبل، ابی بن کعب، زید بن ثابت او ځیني نور کسان هم ورسره ول. هغه ماشوم یې د ده په غېږ کي کښېنود او ساه یې وهله، د دې حالت په لیدو د رسول الله ﷺ له سترګو اوښکې وبهېدې نو سعد بن معاذ ﷛ وویل چي دا څه دي؟. ده وویل: دا د رحمت د هغې جذبې اثر دی چي الله د انسانانو په زړه کي ځای پر ځای کړی او الله به پر هغو بندګانو رحمت کوي چي په زړونو کي یې د رحمت جذبه

وي، د چا زړه چې سخت او د رحمت له جذبې تش وي هغه د ده د رحمت وړتیا نه لري. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## بخل او سخاوت:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: الله خپلو بندګانو ته ویلي: تاسو پر نورو لګښت کوئ زه به یې پر تاسو کوم.

(بخاري)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: حرص، بخل او ایمان هیڅکله په یوه زړه کې سره یو ځای کېدای نه شي. (سنن النسایي)

## قناعت او استغنا:-

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چې ځینو انصارو له رسول الله ﷺ څخه د یوه شي غوښتنه وکړه، ده ورکړ خو هغوی نور وغوښت. ده بیا ورکړ، ان له ده سره شته شیان ټول خلاص شول او هیڅ نه وو پاتې نو ده هغوی ته وویل: واورئ! له ما سره چې څومره مال او دولت وي او له هره ځایه راشي زه یې له تاسو نه ګرزوم او له ځان سره یې نه ساتم بلکې درکوم یې، مګر په دې خبره پوه شئ چې په دا ډول غوښتنه راحت او سوکالي نه شئ تر لاسه کولای، بلکې د الله قانون دا دی چې څوک بل ته له لاس نیولو ځان ساتي نو الله ور سره مرسته کوي او د سوال له ذلت څخه یې خلاصوي.

څوک چې د بندګانو په مخ کې د ځان له اړښودلو ډډه کوي یعنې هغوی ته سوال او زاري نه کوي نو الله یې بندګانو ته له احتیاج څخه ژغوري او څوک چې په سخته شېبه کې د ځان په ټینګولو صبر کوي نو الله صبر ورکوي

او بنده ته تر صبر هیڅ لوی نعمت نه دی ورکړل شوی. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

**سپما :-**

له انس، ابو امامه، ابن عباس او علي ﷺ څخه روایت دی چي د میانه روی طریقه (نه بخل او نه زیات اسراف بلکي په سوچ او فکر سره سپما کول او له اعتدال سره د اړتیاوو پر مهال مال مصرفول) هم نیمه ګټه ده، څوک چي د مال په لګولو کي دا دول طریقه غوره کړي هغه نه اړ کېږي او نه بې ځایه مال مصرفوي. (عسکري، دیلمي)

**بخښنه غوښتل :-**

رسول الله ﷺ ویلي چي که پر چا د بل مسلمان کوم حق وي نو په کار ده چي نن تر بخښنه وغواړي مخکي تر دې چي قیامت راشي بیا به نه دینار ولري او نه درهم، که نېک عمل ولري نو د هغه د ظلم په اندازه به تري واخیستل شي او که نېکی ونه لري نو د مظلوم بدی به پر ده واچول شي. (مشکوة)

**د خطا بخښل :-**

رسول الله ﷺ ویلي چي د قیامت په ورځ به یو اواز کوونکی اعلان وکړي وبه وایي: هغه خلګ چیري دي چي د نورو تېروتني یې بخښلې هغوی دي خپل رب ته راشي او انعام دي واخلي ځکه هر مسلمان چي دا عادت یې درلود جنت ته د ننوتلو حقدار دی. (ابو الشیخ فی الثواب عن ابن عباس)

رسول الله ﷺ ویلي چي که څوک غواړي چي په قیامت کي یې درجې لوړې وي نو باید هغه چا ته بخښنه وکړي چي پر ده یې ظلم کړی، هغه چا ته ورکړه وکړي چي ده ته یې نه ورکوي، له هغه چا سره صله رحمي وکړي چي هغه یې ماتوي او هغه چا ته زغم وکړي چي ده ته بد وایي.

(ابن عساکر عن ابی هریره)

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روایت دی چي یو سړی رسول اللهﷺ ته راغی او ویې ویل: اې د الله رسوله! زه څو ځله د خپل خادم تېروتنه وبخښم؟. ده ځواب ورنه کړ او چوپ شو، ده بیا هماغه خبره وکړه چي اې د الله رسوله! زه څو ځله خپل خادم وبخښم؟. ده وویل: هره ورځ اویا ځله.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

## خاموشي:-

رسول الله ﷺ ویلي: انسانانو ته چي د خاموشۍ له کبله کومه درجه ورکول کېږي هغه د اویا کالو تر عبادت غوره ده. (مشکوة)

## قرباني:-

رسول الله ﷺ ابو بکر ته وویل چي درې خبرې ټولي حق دي:

۱) که پر کوم بنده ظلم وشي او دی صرف د الله لپاره وبخښي نو د دې ظلم په بدل کي الله ورسره مرسته کوي.

۲) کوم بنده چي د صله رحمۍ له کبله د بخښنې کومه دروازه خلاصوي نو الله یې د دې خصلت له کبله مال ډېروي.

۳) کوم بنده چي د سوال دروازه خلاصوي او غواړي مال ډېر کړي نو د دې خصلت له کبله به يې تنګلاسي نوره ډېره شي. (مشکوة)

## د بې ګټو شيانو پرېښودل:-

له علي بن حسين زين العابدين څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د انسان د اسلام ښه والی او کمال دا هم دی چي کوم څه ورته ګټور نه وي هغه پرېږدي. (مشکوة)

## زړه سوی او بې رحمي:-

له جرير بن عبدالله ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: هغه کسان به د الله له رحمت څخه بې برخې وي چي په زړونو کي يې د نورو لپاره رحمت نه وي او زړه يې نه پر سوځي. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## نېکي:-

له وابصه بن معبد ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: اې وابصه! ته دې ته راغلی يې چي وپوښتې نېکي او ګناه څه دي؟. ما وويل: هو!. د دې په اورېدو يې خپلې ګوتې پورته کړې او زه يې پر سينه ووهلم ويې ويل چي له خپله ځانه يې وپوښته، له خپله زړه يې وپوښته دا خبره يې درې ځله وکړه او ويې ويل: نېکي د نفس سکون او د زړه ډاډ دی، ګناه د نفس نا ارامي ده که څه هم خلک يې د جواز فتوا ورکړي.

(مسند احمد، دارمي، مشکوة)

له ابو ذر ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: نېکي د حقارت له کبله مه پرېږدئ او که هیڅ نه شئ کولای نو له خپل مسلمان ورور سره په ورین تندي مخ شئ. (مسلم)

## همېشني خیراتونه:-

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د علم خپرول، د نېک اولاد پرېښودل، مسجد یا مسافرخانه جوړول، قرآن په میراث پرېښودل، د ویالې جاري کول او په خپله خوښه د روغتیا په حالت کي مال خیراتول دا ټول داسي کارونه دي چي مسلمان ته به یې تر مرګ وروسته هم ثواب رسېږي. (ابن ماجه)

## تدبر او تفکر:-

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: اې مسلمانانو! خپل زړونه په فکر عادت کړئ د الله پر نعمتونو غور کوئ خو د هغه پر ذات غور مه کوئ. (ابو الشیخ فی العظمة)

# ناوړه اخلاق

## ځان خوښونه:-

په زواجر کي د دیلمي په حواله ویل شوي دي چي رسول الله ﷺ وویل: ځان خوښونه داسي بلا ده چي د اویا کلونو ښه عمل له منځه وړي. (دیلمي)

## د بې حیایی خپرول:-

علي ؓ وایي: د بې حیا خبرو کوونکی او خپروونکی دواړه په ګناه کي یو دي. (الادب المفرد)

## نور سپک گڼل:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: هر مسلمان د بل مسلمان ورور دی، نه دي پرې ظلم کوي، نه دي بې مرستې پرېږدي، نه دي خوار بولي او نه دي ورسره سپک چلند کوي، بیا يې درې ځله خپلې سینې ته په اشاره کولو وویل چې تقوا دلته ده، د یو انسان د بدۍ لپاره همدومره بس ده چې خپل مسلمان ورور سپک وبولي او له هغه سره ناوړه چلند وکړي. د مسلمان هر څه د بل مسلمان لپاره د احترام وړ دي، د هغه وینه، مال او عفت له همدې کبله يې ناحقه وینه تویول، د هغه مال اخیستل او بې عزتي کول ټول حرام دي. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ ویلي: د قیامت له نښو یوه دا هم ده چې د عادي طبقې خلک به لوی کورونه او لوړې ماڼۍ جوړوي او پرې ویاړي به.
(بخاري، مسلم)

## ریا:-

له محمود بن لبید ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: زه پر تاسو له شرک اصغر څخه ډېر وېرېږم. ځینو صحابه وو وویل چې اې د الله رسوله! شرک اصغر څه شی دی؟. ده وویل: ریا (خلکو ته د ځان ښودلو لپاره نېک کار کول) اخلاص او د الله د رضا لپاره نېک کار کول که له یوې خوا د ایمان او توحید تقاضا او د عمل روح دی له بلې خوا ریا او مخلوق ته د ځان ښکارونې، شهرت او نوم لپاره عمل کول د ایمان او توحید ضد یو ډول شرک دی. (معارف الحدیث)

له شداد بن اوس ؓ څخه روایت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل ویل یې چي که څوک د ریا لپاره لمونځ وکړي شرک یې وکړ، که روژه ونیسي شرک یې وکړ او که د ریا لپاره صدقه و خیرات ورکړي نو شرک یې وکړ. (مسند احمد)

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: په اخیره زمانه کي به داسي مکار کسان پیدا شي چي د دین په جامه کي به د دنیا ښکار کوي، دوی به خلګو ته د ځان پرهېزګار او مسکین ښودو او پر هغوی د اغېز لپاره د پسونو د پوست جامې اغوندي او ژبې به یې تر بوري خوږې وي خو زړونه به یې د لېوانو وي. الله وایي چي ایا دوی ما ته چل راکوي او که زما په مقابل کي جرأت لري؟ نو زما دي قسم وي زه به د دې مکارانو لپاره داسي فتنه پیدا کړم چي هوښیاران او پوهان به یې هم حیران شي. (جامع ترمذي)

**زنا:-**

له ابو هریره ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: د سترګو زنا په شهوت کتل دي، د غوږونو زنا د شهوتي خبرو اورېدل دي، د ژبې زنا د شهوتي خبرو کول دي، د لاس زنا په شهوت سره لمسول دي، د پښو زنا په شهوت سره ګام اخیستل دي او زړه زنا داده چي د شهوت غوښتنه کوي.

(مسلم، حیات المسلمین)

**غوسه:-**

له ابو ذر ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که په تاسو کي څوک غوسه شي او ولاړ وي نو باید کښېني، که یې غوسه په ناسته سړه شوه

نو ښه خبره ده او که بیا هم په غوسه وو نو باید پرهېزي. (مسند احمد، جامع ترمذي، معارف الحدیث)

سهل بن معاذ له خپل پلار معاذ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د غوسې پوره کولو توان او طاقت ولري خو دی یې صرف د الله لپاره وزغمي نو الله به یې د قیامت په ورځ د ټولو خلکو په مخ کې راوبولي او اختیار به ورکړي چې د جنت په حورو کې کومه یوه یې خوښه وي هغه دي غوره کړي. (جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ ویلي: اې مسلمانانو! که په تاسو کې څوک غوسه شي نو باید چوپ پاتې شي، هغه سړی ځواکمن نه دی چې خلک را غورزوي بلکې ځواکمن انسان هغه دی چې ځان کنټرولولای شي. رسول الله ﷺ ویلي: د الهي رضا لپاره د غوسې تر زغملو بل لوی کار نه شته. رسول الله ﷺ ویلي: کله چې غوسه درشي نو باید اودس وکړئ، که د ولاړې په حالت کې یاست نو کېنئ او که د ناستې په حالت کې یاست نو پرېوزئ. د غوسې پر مهال اعوذ بالله من الشیطان الرجیم ویل غوسه ختموي. (بخاري، مسلم)

**غیبت:-**

له ابو سعید خدري او جابر ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: غیبت تر زنا سخته ګناه ده. ځینو صحابه کرامو ؓ وویل: غیبت ولې تر زنا سخته ګناه ده؟. رسول الله ﷺ وویل: که یو سړی زنا کوي نو یوازې په توبه ایستلو او معافي غوښتلو بخښل کېږي، مګر غیبت کوونکی تر هغو نه شي بخښل کېدای چې د هغه د کوم چا غیبت کړی هغه یې ونه بخښي. (معارف الحدیث، شعب الایمان للبیهقي)

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ورځ وويل: آيا پوهېږئ چي غيبت څه ته وايي؟. صحابه کرامو وويل چي الله او رسول يې ښه پوهېږي. رسول الله ﷺ وويل: د خپل ورور داسي بدي ذکر کول چي په هغه کي موجوده وي او که هغه عيب موجود نه وي نو دا بهتان دی چي تر غيبت هم سخته ګناه ده. (معارف الحديث، حيات المسلمين)

**خيانت:-**

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که يو څوک تاسو د اعتبار وړ وبولي نو امانت در ته کښېږي بيرته يې ور و سپارئ او که څوک له تاسو سره خيانت وکړي نو تاسو ورسره خيانت مه کوئ بلکي د خپل حق تر لاسه کولو لپاره نوري روا لارې غوره کړئ. (ترمذي)

**بد ګوماني:-**

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: خپل ځان له بد ګوماني وساتئ ځکه د بد ګوماني پر بنسټ کېدونکې خبره تر ټولو سخته دروغ وي، مه د نورو په معاملاتو کي د معلوماتو لټه کوئ، مه جاسوسي کوئ او مه صرف د ګران قيمت لپاره بولی وهئ، له يوه بله کرکه مه کوئ، له يوه بل سره دښمني مه کوئ، د الله بندګان شئ او په خپل منځ کي د ورورولی ژوند وکړئ. (بخاري، مسلم)

له ابو العاليه ﷛ څخه روايت دی چي موږ ته امر وشو چي له خپلو خادمانو مالونه او وسايل خپل کړئ او که د استعمال لپاره کوم شی ور کوئ

نو یا یې وتلئ او یا یې شمار کړئ، هسې نه عادت یې خراب شي او کومه بد گوماني پیدا شي. (بخاري، الادب المفرد)

**دوزخي:-**

له عمار بن یاسر ﵁ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که په دنیا کې څوک دوه مخی وي او د منافقینو په څېر بېلا بېلو خلکو ته ډول- ډول ځرګندونې کوي د قیامت په ورځ به یې په خوله کې دوې ژبې وي.

(معارف الحدیث، سنن ابی داود)

**شیطانت کول:-**

له عبد الرحمن بن غنم او اسماء بنت یزید ﵄ څخه روایت دی چې ر سول الله ﷺ وویل: د الله غوره بنده هغه دی چې په لیدو یې الله در یاد شي او بد بنده هغه دی چې شیطانت کوي، د دوستانو تر منځ بېلتون راولي او تل په دې هڅه و لټه کې وي چې د الله پاک بندګان په ګناه، مصیبت او تکلیف اخته کړي. (مسند احمد، شعب الایمان، معارف الحدیث)

**دروغ:-**

له عبد الله بن عمر ﵁ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: کله چې یو بنده دروغ وایي نو فرشتې یې د دروغو د بد بوی له کبله یو میل ترې لرې کېږي. (جامع ترمذي)

د ترمذي په یوه بل حدیث کې دي چې یوه ورځ رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته درې ځله وویل چې ایا تاسو ته تر ټولو لویه ګناه در وښیم؟. بیا یې وویل: له الله سره شرک، د مورو پلار نافرماني، په معاملاتو کې د دروغو

شاهدي او دروغ ویل. راوي وايي: لو مړی يې څنګ وهلی وو مکر وروسته را کښيناست او بيا - بيا يې دا خبره تکراروله ان مونږ هيله وکړه چې کاش! چوپ شوی وای يعني دا مهال پر رسول الله ﷺ داسي کيفيت راغلی وو او دومره په جوش يې خبري کولې چي مونږ احساسوله دا مهال يې پر زړه ډېر بوج دی، ځکه مو نو زړه غوښتل چي خاموش شي او پر ځان دومره تکليف را نه ولي. (معارف الحديث)

له ابو امامه باهلي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک په قسم کولو د مسلمان حق په ناروا ډول وخوري نو د داسي کس لپاره الله دوزخ واجب کړی دی او جنت يې پرې حرام کړی دی. په حاضرينو کي يو چا وويل: اې د الله رسوله! که څه هم معمولي شی وي (که څوک ډېر معمولي شی د قسم په کولو په ناروا ډول تر لاسه کړي نو په دې صورت کي هم د هغه لپاره دوزخ واجب او جنت پر حرام دی؟) رسول الله ﷺ وويل: که څه هم د ځنګلي ونې ښاخ وي. (مسلم، معارف الحديث)

له ابو ذر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: له درو کسانو سره به د قيامت په ورځ الله نه خبرې وکړي، نه به د رحمت په نظر ورته وګوري، نه به يې له ګناهونو پاک کړي او د دوی لپاره دردوونکی عذاب دی. ابو ذر غفاري ﷺ وويل: دا کسان خو نامراد او هلاک شول اې د الله رسوله! دا درې څوک دي؟. هغه وويل: له حد څخه د خپل لنګ ځوړندوونکي (چي همدا د متکبرينو او غرور کوونکو طريقه ده)، احسان اچوونکي او د دروغو په قسم د خپل مال پلورونکي. (صحيح مسلم، معارف الحديث)

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د یو چا لپاره همدا دروغ بس دي چې څه وایي، بیانوي یې. (مسلم، معارف الحدیث)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک د واکمن په مخ کې د دروغو قسم وکړي چې په وسیله یې د مسلمان مال وخوري نو په قیامت کې به الله ته په داسې حال کې وړاندې شي چې هغه به ورته سخت په غوسه او ترې ناراض وي. (بخاري، مسلم)

## د سولې رامنځ ته کول:-

له ام کلثوم بنت عقبه ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: هغه سړی دروغجن نه دی چې د شخړه کوونکو کسانو ترمنځ د سولې هڅه کوي او په دې لړ کې (له یوې غاړې بلې ته د خیر او خوشالۍ خبرې ورسوي او د ښه تاثیر لپاره) له ځانه ښې خبرې وکړي. (بخاري، مسلم)

## د مومنانو رسوا کول:-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ منبر ته وخوت او په لوړ اواز یې وویل: اې په ژبه ایمان راوړونکو چې لا یې هم زړه ته ښه نه دی کښته شوی، د مسلمانانو له زورولو، هغوی ته د پېغور له ورکولو، رسوا کولو او د دوی د پټو عیبونو له را برسېره کولو ځان وساتئ ځکه د الله قانون دا دی چې که څوک د خپل مسلمان ورور په عیبونو پسې وي او رسوایي یې غواړي نو الله به د هغه په عیبونو پسې شي او په چا چې الله پسې شي حتما به خوار او ذلیل شي که څه هم په خپل کور کې دننه وي. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: تر ټولو لویه او بده سزا ده چي د یو مسلمان وروړ عزت تر پښو لاندي او د یو مسلمان حرکت ضایع کړل شي. (ابن ابی الدنیا، بیهقي)

**بخل:۔**

له ابو بکر صدیق ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: دوکه باز، بخیل او احسان اچوونکی سړی به جنت ته ولاړ نه شي.

(جامع ترمذي، معارف الحدیث)

**انتقام:۔**

تر دې وروسته یې وویل: اې ابو بکره! دا درې خبرې بالکل حق دي: ۱) کله چي پر کوم بنده ظلم او تېری وشي او دی یې صرف د الله لپاره وبخښي نو الله به یې په بدل کي ورسره پوره مرسته وکړي. ۲) که څوک د خپلوي پالنې لپاره نورو ته د ورکړې دروازه خلاصه کړي نو الله به یې په بدل کي ډېر څه ورکړي. ۳) که یو حوک د خپلې دنیا ډېرولو لپاره د سوال او بل ته د لاس نیولو دروازه خلاصه کړي نو الله به یې دنیا نوره هم لږ کړي.

(مسند احمد، معارف الحدیث)

**کرکه او کینه:۔**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي په هفته کي دوې ورځې دوشنبه او پنج شنبه د خلکو اعمال الله ته وړاندي کېږي او هر مومن بنده به بخښي مگر پرته له هغو دوو کسانو چي له یوه بل سره کینه لري، د دوی په اړه پرېکړه

کېږي چي هغوی تر هغه وخته پرېږدئ چي له دې کينې او خپل منځي دښمنيو ځان خلاص او زړونه صفا نه کړي. (صحيح مسلم، معارف الحديث)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل:

د نورو په اړه له بد ګومانۍ ځان وساتئ ځکه بد ګوماني تر ټولو لوی دروغ دي، د يو چا په کمزوريو مه پسې کېږه او د جاسوسانو په څېر له پټو لارو د عيبونو معلومولو هڅه مه کوه او پر يوه بل د بې ځايه لويدو کوشش مه کوئ، تر خپل منځ کرکه، کينه او بغض مه ساتئ او له يو بله مخ مه اړوئ بلکي اې د الله بندګانو! د الله له امر سره سم سره ورونه - ورونه شئ.
(بخاري، مسلم، معارف الحديث)

**حسد:-**

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: د حسد له ناروغۍ ځان وساتئ ځکه حسد نېکۍ داسي خوري لکه اور چي لرګی سوځوي. (سنن ابی داود)

رسول الله ﷺ ويلي چي اې مسلمانانو! په تاسو کي هم ورو - ورو هغه ناروغي خپرېږي چي په مخکينيو خلګو کي خپره شوې وه زما هدف بغض او حسد دی، دا ناروغي د سر وېښتان نه بلکي دين او ايمان خرېيي. (مسند احمد، جامع ترمذي، معارف الحديث)

## د سخت زړه علاج :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې یو چا رسول الله ﷺ ته د سخت زړه شکایت وکړ، رسول الله ﷺ وویل: د یتیم پر سر لاس تېروه او مسکین ته خوراک ورکوه. (مسند احمد، معارف الحدیث)

## منافقت :-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که په یو چا کي څلور عادتونه وي نو خالص منافق دی او که یو پکښې وي نو د نفاق یو خوی پکښې دی او تر هغه وخته به په دې حالت کي وی چې دا عادت یې نه وي خوشي کړی هغه څلور عادتونه دادي چې کله امانت ورو سپارل شي دی پکي خیانت کوي، په خبرو کي دروغ وایي، د کړي تړون مخالفت کوي او کله چې یې له چا سره شخړه او جنجال شي نو سپکې - سپوري او بد-رد وایي. (بخاري، مسلم)

## ظلم :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: ظالم ته د مظلوم ښېرا تر وریځو پورته کېږي او د اسمان دروازې ورته خلاصېږي، الله به وایي چې زه به ضرور له تا سره مرسته کوم که څه هم یو څه وځنډېږي.

(مسند احمد، ترمذي)

له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د مظلوم له ښېرا ځان وساتئ ځکه د لمبو په څېر اسمان ته پورته کېږي. (حاکم)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: الله وایي چي زما دي په خپل عزت او جلال قسم وي ژر یا وروسته به حتما له ظالم څخه بدله اخلم او له هغه چا به هم بدله واخلم چي له قدرت درلودلو سره - سره یې د مظلوم مرسته نه کوله. (ابو الشیخ)

**له ظالم سره مرسته:-**

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: کوم کسان چي د امیرانو په څنګ کي کښېني او له ظالمانو سره مرسته کوي د هغوی بر خلیک به ډېر خراب وی، نه به په مسلمانانو کي شمېرل کېږي او نه به زما حوض کوثر ته راشي، که هر څو مره د اسلام دعوه وکړي. (سنن)

رسول الله ﷺ له خپلو صحابه کرامو پوښتنه وکړه چي تاسو مفلس پېژنئ؟. دوی وویل: موږ هغه چا ته مفلس وایو چي مال او شتمني ونه لري. ده وویل: زما په امت کي تر ټولو لوی مفلس هغه دی چي د قیامت په ورځ د لمانځه، روژې، زکات ټولو سره راشي خو له دې سره یې دا کار هم کاوه چي یو چا ته یې بد - رد ویل، تورونه یې پرې لګول، د نورو مال یې خوړ، خلګ یې وژل او وهل نو یو څه نېکۍ یې هغوی ته ورکړل شوې او یو څه نورو ته، که د هغوی د حقوقو تر اداکېدو وړاندي یې نېکۍ ختمې شوې نو د حقدارانو ګناه به پر ده ور واچول شي او دی به دوزخ ته واچول شي.

(بهشتي زیور)

**بدې خبرې:-**

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: د قیامت په ورځ به د الله په مخ کې د هغه چا مرتبه ډېره ټیټه وي چې د فحشو او بدو خبرو له وېرې خلکو خوشې کړی وي. (بخاري، مسلم)

له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: په ټولو اعضاوو کې به د ژبې عذاب سخت وي. ژبه به ووایي: اې ربه! تا د بدن هیڅ غړي ته دومره عذاب نه دی ورکړی لکه ما ته چې دې راکړ. الله به ووایي: له تا داسي خبرې کېدلې چې ختیځ او لوېدیځ ته رسېدې، زما دې په خپل ذات قسم وي تا ته به تر ټولو اندامونو سخت عذاب درکوو. (ابو نعیم)

**د عیبونو لټه:-**

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چې یو وخت مې رسول الله ﷺ ته وویل: د صفیې عیب داده چې دغسې او هغسې ده (معنا قد یې ټیټ دی او دا یو لوی عیب دی) رسول الله ﷺ وویل: اې عائشې! ستا له خولې دومره بده خبره وتلې که سمندر ته واچول شي نو ټول سمندر به مردار کړي.

(مشکوة، حیات المسلمین)

**بد نظري:-**

له بریده څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ علي ﷺ ته وویل: اې علي! که دې پر یوه ښځه ناڅاپه سترګې ولګېږي نو نظر ترې واړوه، دویم ځل مه ورته ګوره اول نظر ستا دی مګر دویم نظر ستا نه بلکې د شیطان دی.

(ابوداود، حیات المسلمین)

### لعنت ويل :-

رسول الله ﷺ ويلي: کله چي يو څوک پر بل لعنت وايي نو اول اسمان ته پورته کېږي، د اسمان دروازې ورته بندېږي، بيا بيرته ځمکې ته راځي هغه هم بندېږي، بيا را سته او چپ لور ته ګرزي کله چي ځای پيدا نه کړي نو بيا هغه ته راځي چي لعنت پرې ويل شوی که يې هغه لايق وو خو خير او که نه وو ويونکي ته ور ګرزي.

فايده:-

ځيني ښځې ډېر عادت لري چي هر چا ته الله دي ووهه، الله دي ټکه درباندي واچوي او بې ايمانه شې خبرې کوي. دا ډېره لويه ګناه ده که څه هم انسان، حيوان او يا بل شي ته وويل شي. (بهشتي زيور)

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک خپل ځان ووژني نو د قيامت په ورځ به همدا عذاب ورکول کېږي چي خپل ځان به وژني لکه څرنګه چي يې په دنيا کي ځان وژلی وو هماغسي به يې په اخرت کي وژني، که يې ځان له غره را ګرزولی وو له غره به را غورزي او که يې زهر څښلي وو زهر به څښي او که يې ځان په چاړه حلال کړی وو په چاړه به حلالېږي. (بخاري، مسلم)

## ګناه

### له ګناه ځان ساتل :-

له نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: حلال هم واضح دي او حرام هم مګر د دواړو تر منځ ځيني شکمن شيان شته نو څوک

چي له شکمنو ځان وساتي نو حتما به له ښکاره ګناهونو ځان ساتي او څوک چي د شکمنو شيانو پر کولو جرأت ولري نو په ښکاره ګناهونو کي د لوېدو ډېره ويره يې شته. ګناهونه د الله ممنوعه سيمې دي (چي هيچا ته يې د ننه ورتلو اجازه نه شته او بې اجازې د ننه ورتګ حرام دی) کوم حيوانان چي د ممنوعه سيمې په خوا وشا کي څري نو ډېر امکان شته چي هغې سيمې ته ور داخل شي. (مشکوة، حيات المسلمين)

## د ګناه علاج :-

له معاذ ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: ځانونه له ګناه وساتئ ځکه د ګناه په کولو د الله غضب نازلېږي. (مسند احمد)

له انس بن مالک ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: ايا ستاسو ناروغي او دوا يې در وښيم؟ خبردار! ګناه ناروغي او استغفار يې دوا ده.

(ترغيب، بيهقي)

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: له ګناه توبه کوونکی داسي دی لکه هيڅ ګناه چي يې نه وه کړې.

(بيهقي مرفوعا، شرح السنه موقوفا)

البته د بندګانو په حقوقو کي د توبې شرط دا هم دی چي د حق خاوندان ورته معافي هم وکړي. (حيات المسلمين)

## د ګناهونو سزا:-

له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي موږ لس کسان له رسول الله ﷺ سره وو، ده را ته وويل: پنځه شيان داسي دي چي زه له الله پناه غواړم څو پر

تاسو ړا نه شي کله چي په یوه قوم کي :

۱) ښکاره بې حیایي پیل شي نو په طاعون اخته کېږي او داسي ناروغي به پرې راشي چي د خپلو مشرانو په وخت کي هیڅکله نه وه.

۲) کله چي یو قوم په ناپ او تول کي کمی کوي نو په وچکالي، تنګي او ظالمو چارواکو به وازمویل شي.

۳) کله چي یو قوم د زکات له ورکړې ډډه وکړي نو د رحمت باران به ترې منعه شي، که حیوانات نه وای نو هیڅکله به باران پرې نه وا شوی.

۴) کله چي یو قوم په وعده وفا نه کوي نو الله به د بل قوم دښمنان پرې مسلط کړي او په زور به شتمني ترې اخلي. (ابن ماجه)

له ابو الدرداء ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: الله وایي چي د پاچاهانو مالک زه یم، د هغوی زړونه زما په لاس کي دي، کله چي بندګان زما اطاعت کوي نو د پاچاهانو په زړونو کي یې شفقت او رحمت پیدا کوم او کله چي زما بندګان له ما سرغړونه کوي نو د پاچاهانو په زړونو کي یې غوسه او ظلم پیدا کوم نو بیا دوی ته سخت عذاب ورکوي. (ابو نعیم)

## د ګناهونو وبال :-

له ثوبان ﷺ څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: نژدې ده د کفارو بېلابېلې ډلې به ستاسو په مقابل کي داسي دربانديړا غونډ شي لکه خوړونکي چي پر دسترخوان را ټولېږي، یو چا وویل: ایا هغه وخت به زموږ شمېر لږ وي؟. ده وویل: نه بلکي ډېر به یاست مګر هغه وخت به د خاشاکو په څېر په هوا کي الوزئ، الله به مو د دښمنانو له زړونو وېره وباسي او ستاسو

په زړونو کي به کمزوري واچوي. يو چا وويل: کمزوري څه ده؟. ده وويل: له دنيا سره مينه او له مرګ څخه کرکه. (ابوداود، بيهقي، حيات المسلمين)

**لويه ګناه:-**

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: لوی ګناهونه دادي: له الله سره شرک، د مور و پلار زورول، ناحقه قتل او د دروغو قسم. (بخاري)

له صفوان ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ څو فرمانونه صادر کړل، يو يې دا هم وو چي بې ګناه کس واکمن ته مه ورولئ چي يا يې ووژني او يا ظلم پرې وکړي او جادو مه کوئ. (ترمذي، ابوداود، نسايي)

او پر لاندينيو ګناهونو د عذاب وعده شوې: د حقارت له مخې پر يو چا خندل، پر يو چا بد ويل، په لوی لقب را بلنه، بد ګوماني، د بل په عيب پسې کېدل، له څه علت پرته سپکې - سپوري ويل، شيطانت کول، دوه مخی چلند، تور لګول، تېر ايستل، پېغور ورکول، د بل په تاوان خوشاله کېدل، تکبر او فخر کول، ظلم کول، د ضرورت پر مهال له وس درلودلو سره - سره د يو چا په مالي زيان کي مرسته نه کول، د بل عزت ته تاوان رسول، پر کشرانو شفقت نه کول، د مشرانو بې عزتي کول، له وږيو او لوڅو کسانو سره د وس په اندازه مرسته نه کول، د دنيوي تکليف په وجه خبرې پرېښودل، د حيوان عکس يا انځور جوړول، په ځمکه د ميراث دعوه کول، په ځوانه ځواني سوال کول، د بيرې وهل يا خرييل، د کافرانو او فاسقانو جامې اغوستل، د ښځو له خوا د مردانه شکل جوړول لکه دا چي د نارينه وو پايزار په پښو کړي نور هم ډېر ګناهونه دي دا هر څه د نمونې په ډول وليکل شول بايد له ټولو ځان

وساتو او کومې ګناوې چې تر سره شوې دي له هغو توبه وباسو ځکه په توبه هر ډول ګناه بخښل کېږي. (حیات المسلمین)

## څیني لوی ګناهونه: –

د مور و پلار ازارول، شراب څښل، په وعده وفا نه کول، په امانت کي خیانت، د جمعې د لمانځه پرېښودل، له یوې ښځې سره یوازي ناسته، د کافرانو رواجونه خوښول، د ریا لپاره عبادت کول، د قدرت له درلودلو سره نصیحت پرېښودل او د نورو په عیبونو پسې کېدل.

چا ته چي عقیده ولري د هغه په پیروي نور بد ګڼل صحیح نه دي او د شیخ و مجتهد پیروي تر هغه وخته ده چي خبره یې د الله او رسول خلاف نه وي او که کومه غلطي وکړي نو پیروي یې نه شته، ایمان هغه مهال صحیح کېږي چي د الله او رسول احکام رښتیا وبلل شي او ویې مني، د الله و رسول پر کومه خبره شک کول، یا یې دروغ بلل او پر هغې عیب لګول او ملنډې په وهل ایمان له منځه وړي.

د قرآن او حدیث څرګند او واضح حکم نه منل او د تاویل په کولو یې معنا بدلول بې دیني ده.

د ګناه په روا بللو ایمان له منځه ځي.

پر الله زړور توب یا له هغه ناهیلي د کفر خاصیت دی.

الله واک لري چي پر وړه ګناه سزا ورکړي او پر لویه ګناه یې صرف د خپلې مهربانۍ له مخې وبخښي او هېڅ سزا ورنه کړي.

که یو څوک تهول ژوند سم وي خو پر کوم حالت چي مړ کېږي له هماغه سره سمه به سزا ورکړل شي ځکه نو باید له ګناهونو ځان ساتنې ته ډېر پام وشي، ډېر ځله یوه ګناه د بدې خاتمې سبب ګرزي.

## په عبادت کي شرک:-

انځورونه ساتل په ځانګړي ډول د برکت او تعظیم لپاره د یو بزرګ تصویر خوندي کول. (حیات المسلمین)

## د قبرونو بدعات:-

پر قبر مېله جوړول یا یې په مېله کي ګډون کول.

## په دودونو کي بدعات:-

کوم بزرګ ته نسبت کافي ګڼل، د یو چا په ستاینه کي مبالغه کول، په ډېر ښایست بوختېدل، ساده شکل بد بلل او په کور کي د ژوندیو شیانو عکسونه ساتل.(حیات المسلمین)

# د الهي قهر نښې

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که کوم وخت د غنیمت مال او ملي بودیجه خپل مال وبلل شي یعني بیت المال او ملي بودیجه چي د هېواد، ولس او مستحقو کسانو لپاره وي چارواکي او د حکومت مامورین یې خپل حق وبولي، د ځان د ګټو او خپلو چرچو لپاره یې کاروي، کله چي دیني علم د دین لپاره نه بلکي صرف د دنیا غوښتنې لپاره پیل شي، کله چي نارینه د ښځې اطاعت پیل کړي، کله چي زوی د مور نافرماني او له هغې سرکښي پیل کړي، امانت د غنیمت په څېر د خوړو وړ

وبلل شي، زکات تاوان وګڼل شي، يو سړی تر خپل پلار خپل ملګري ته نژدې شي، په مسجدونو کې اوازونه لوړ شي، د قوم مشري بدکار او فاسق ته وسپارل شي، د هغوی لار ښوونه د ترټولو بد کس په لاس کې وي، د يو چا درناوی صرف د هغه له ضرره د ځان ساتنې لپاره وشي او د امت وروستني پر اولنيو بد - رد پيل کړي نو په دې وخت کې تېزو توپانونو، زلزلو، د ځمکې لوېدو، د شکلونو مسخ کېدو، د ډبرو اورېدو او د الله له خوا داسې پر له پسې عذابونو ته په انتظار شئ لکه د ملغلرو او نورو د يوې لړۍ تار چې وشلېږي او پر له پسې لوېږي. (جامع ترمذي)

شپږم باب .... د رسول الله ﷺ سهار او ماښام او ورځني عادات

**تر سهار وروسته:-**

د رسول الله ﷺ معمول دا وو چې د سهار تر لمانځه وروسته به د تسبيحاتو او ذکر په کولو په مسجد کې چارزانو کېناست او صحابه کرام به هم ورسره ناست ول. همدلته به رسول الله ﷺ هغوی په راغلې وحې خبرول، همدلته به يې د ده له برکاتو او فيوضاتو ګټه اخيستله، همدلته به يې د دين مسايل، د ټولنې طريقه، د معاملاتو قوانين او د اخلاقو باريکۍ ور ښودې. د خلګو تر منځ به د خپل منځي معاملاتو او دعوو پرېکړې کېدې. ډېر ځله به رسول الله ﷺ له صحابه کرامو پوښتنه کوله چې که چا خوب ليدلی وي نو بيان دې کړي. ده به اورېد او تعبير به يې بيانا وه، کله به يې خپل خوب بيان کړ او بيا به يې د هغه تعبير وښود خو وروسته يې دا معمول پرېښود. (مدارج النبوة)

ځیني وختونه به صحابه کرامو ﷺ د خپلو خبرو په منځ کي له ادب سره د جاهلیت کیسې کولې، قصیدې او اشعار به یې اورول او یا به یې ټوکي کولې. ده به اورېدې او ځیني وختونه به یې خندل هم. تر دې وروسته به یې د اشراق نوافل کول، ډېر وختونه به یې د غنیمت مالونه او یا د خلکو دندې وېشلې. کله چې به لمر ښه را پورته شو نو د څاښت څلور او اته رکعته لمونځ به یې کاوه، مجلس به رخصت شو او د هغې مېرمنې کور ته به ورتلی چې وار به یې وو. له هماغه ځایه به یې د کور کارونه پیلول، ډېر ځله به یې د کور بېلابېل کارونه په خپله کول. په ورځ کي یې صرف یو ځل خوراک کاوه او غرمه به ویدېده. (سیرت النبي)

### تر ماپښین وروسته :-

د ماپښین تر جماعت وروسته به د مدینې په کوڅو کي ګرزېده له دوکاندارانو سره به یې لیدل او هغوی به یې څارل، د دوی مالونه یې کتل او ښه و بد یې معلومول، ناپ و تول ته یې کتل چې کم یې نه کړي او که به په کلي و بازار کي کوم اړ کس وو له هغه سره به یې مرسته کوله.

### تر مازیګر وروسته :-

د مازیګر تر جماعت وروسته به د یوې مېرمنې کور ته ورتلی، د هغې پوښتنه به یې کوله او لږ و ډېر به له هرې یوې سره کښېناست، دې کار ته یې دومره پام کاوه چې هر یوې ته پر تاکلي وخت ورتلی او هر چا ته معلومه وه چې دی د دې وخت ډېر قدر پېژندونکی او پابند دی.

## تر ماښام وروسته:-

د ماښام تر جماعت او اوابین تر نوافل وروسته د هغې مېرمنې کور ته ورتلی چې وار به یې وو، د هر وخت به یې نوري مېرمنې هم دې کور ته راتلې، د مدینې ښځې به هم را غونډېدې ځکه چې دا مهال یې هغوی ته دیني مسایل ورښودل، ګواکې دا د شپې یوه ښځینه مدرسه وه چې په ډېر ادب او پرده سره به ښځو ته دیني علم، ښه ژوند او غوره اخلاق ورښودل کېدل. رسول اللهﷺ نه غوښتل چې ښځې له دیني زده کړې بې برخې او اسلامي تهذیب سره نا اشنا وي، همدلته به ښځو خپلې دعوې وړاندې کولې او ده به پرېکړه کوله. خپل شکایتونه او مجبوریتونه او ستونزې به یې بیانولې او ده یې حل وړاندې کاوه او که به چا بیعت کاوه نو رسول اللهﷺ به ورسره پر دې شیانو بیعت کاوه چې له الله سره به شرک نه کوي، له غلا به ځان ساتي، بد کاري به نه کوي، خپل اولادونه به نه وژني، پر چا به تور نه لګوي او په نېکو چارو کې به د نبوي طریقې مخالفت نه کوي، ده به له هغوی سره بیعت کاوه او د هغوی لپاره به یې استغفار غوښت، دا مدرسه به د ماخوستن تر لمانځه خلاصه وه او د لمانځه په را رسېدو به رسول اللهﷺ مجلس ته تلی او ښځې خپلو کورونو ته.

## تر ماخوستن وروسته:-

د ماخوستن تر لمانځه وروسته به خپلې بسترې ته تلی ځکه د ماخوستن تر لمانځه وروسته یې خبرې نه خوښولې، پر راسته اړخ یې ویدېدل خوښ وو او ډېر ځله به یې خپل راسته لاس تر راسته بارخو لاندې کاوه، مخ به یې د

قبلې پر لور وو او مسواک يې حتما له خپل سر سره ايښوده، د ويدېدو پر مهال يې سورت الجمعه، سوت التغابن او سورت الصف تلاوت کول، کله چي به را ويښ شو غاښونه يې په مسواک وهل او اودس يې کاوه. وروسته به يې د تهجد نفل کول، کله - کله به يې د نفلي لمانځه په سجده کي اوږدې دعاوې غوښتې او بيا به يې ارام کاوه، د سهار له اذان سره به را پورته شو، په خپله خونه کي به يې دوه رکعته سنت وکړل، هماالته به لږ شېبه پر راسته اړخ پرېووت، بيا به مسجد ته راغی او د سهار لمونځ به يې وکړ، همدا يې ورځني عادات وو (اول خو پنځه لمنځونه په طبعي ډول انسان ته د وخت پابندي ورښيي، تر لږ شيبې وروسته د راتلونکي لمانځه وخت مسلمان بيداروي چي دومره وخت تېر شوی او دومره وخت پاتي دی که کوم کار روي وېې کړه) پر دې پابندي سربېره د رسول الله ﷺ خصوصيت داوو چي د خپل هر کار لپاره يې وخت ټاکلی او په پوره پابندي سره يې تابع وو له همدې کبله يې ډېر کارونه کول او هيڅکله يې د وخت له کمښت او تنګوالي شکايت نه دی کړی. (سيرت النبي، د سيد سلمان ندوي ليکنه)

**د ورځې سنتونه:-**

سهار وختي په پورته کېدو په دې سنتو عمل پيل کړئ:

۱) له خوب څخه په را پورته کېدو دواړه لاسونه پر مخ او سترګو وموښئ چي د خوب نشه مو ختمه شي. (شمايل ترمذي)

۲) تر ويښېدو وروسته چي مو کله سترګې خلاصې شي نو درې ځله الحمدلله او درې ځله لا اله الا الله محمد رسول الله ووایاست.

۳) د الحمد لله الذی احیانا بعد ما اماتنا و الیه النشور ویل سنت دي.
(شمایل ترمذي)

یعني ټولي ستاینې هغه الله لره چي موږ یې تر مرګ وروسته را ژوندي کړو او د ده لور ته ورتګ دی. هروخت چي له خوبه را پورته کېږئ نو باید مسواک ووهئ. (ابوداود)

د استنجا او نورو لپاره په اوبو لاس مه تنباسئ بلکي اول درې ځله خپل لاسونه ومینځئ او وروسته یې په لوښي کي واچوئ. (ترمذي)

تر دې وروسته دي د حاجت پوره کولو او استنجا لپاره ولاړ شي، که بیا غسل ته اړتیا وه نو غسل دي وکړي، که اړتیا نه وه اودس یا تیمم دي ووهي لمونځ دي وکړي او بیا دي په اول وخت کي مسجد ته په تلو د جماعت لمونځ ادا کړي.

**له کور څخه د وتلو دعا:-**

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک له خپله کوره وزي نو دا دعا دي ووایي: بسم الله توکلت علی الله لا حول و لا قوة الا بالله. د الله په نوم له کوره وزم، پر الله مي توکل دی، له شر څخه ځان ساتنه او د خیر قدرت صرف له الله سره دی.

چي دا دعا ووایي نو په عالم الغیب کي ویل کېږي: اې د الله بنده! ستا دا دعا درته بس ده، پوره لارښوونه دي وموندله، د ساتنې پرېکړه دي وشوه او شیطان په ناهیلۍ ترې لرې کېږي.
(جامع ترمذي، سنن ابی داود، معارف الحدیث، حصن حصین)

کله چي د سهار سنت وکړي نو له خپل کور څخه په وتلو دي د سهار لمانځه ته روان شي او په لار کي دي دا دعا ووايي: اللهم اجعل في قلبي نورا ... اللهم اعطني نورا. (سنن ابی داود، بخاري، مسلم، حصن حصين)

## د اشراق لمونځ :-

که کوم عذر نه وي نو د سهار له لمانځه څخه په خلاصېدو دي تر اشراق پوري په الهي ذکر بوخت شي، لوړه درجه يې داده چي په کوم مسجد کي يې چي فرض کړي وي همالته دي کښېني، منځنۍ درجه يې داده چي د مسجد په يو ځای کي دي کښېني او ټيټه درجه يې داده چي له مسجد څخه دي ووزي خو په ژبه دي پر له پسې الهي ذکر کوي، کله چي لمر تر راختلو وروسته يو څه وځنډېږي يعني نژدې پنځلس دقيقې وروسته دي دوه رکعته نفل وکړي نو د پوره حج او عمرې ثواب ورکول کېږي او همدې ته د اشراق لمونځ وايي. څوک چي د اشراق پر مهال دوه رکعته نفل وکړي نو ټول واړه ګناهونه يې بخښل کېږي. (الترغيب و الترهيب)

## د سهار دعا :-

له ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: که څوک سهار دا ايت ووايي نو د ټولې ورځې د پاتي شويو نېکيو ثواب ورکول کېږي او که يې څوک د شپې ووايي نو په شپه کي د ټولو پاتي شويو نېکيو ثواب ورکول کېږي.

فسبحان الله حين تمسون و حين تصبحون و له الحمد فی السماوات و الارض وعشيا و حين تظهرون يخرج الحی من الميت و يخرج الميت من الحی و

یحی الارض بعد موتها و کذالک تخرجون. (حصن حصین)

سهار او ماښام د الله تسبیحات وایه او هغه مهال چې غرمه شي، همدی ژوندی له مړي را باسي او مړی له ژوندی، څمکه تر مرګ وروسته ژوندی کوي او همداسي به تاسو را وایستل شئ.

د اشراق له لمانځه تر خلاصېدو وروسته دي خپل کار پیل کړي، حلاله روزي دي وګټي، پر دې سربېره دي د نورو فرایضو او واجباتو په ادا ینه، همدا راز د ژوند په ټولو چارو کي د سنتو اتباع ته پام کوي. کله چې لمر ښه را لوړ او رڼا یې زیاته شي نو د څاښت لمونځ دي وکړي چې شمېر یې له څلورو تر دوولسو رکعتونو دی. (مسلم)

په حدیث کي دي چې د څاښت په څلورو رکعتونو د بدن د ټولو بندونو صدقه ادا کېږي او ټول واړه ګناهونه یې ور بخښي. (مسلم)

**قیلوله:-**

که وخت وي نو د سنتو د اتباع په نیت دي د غرمې تره ووی، خوړلو وروسته یو څه شېبه پرېوزي چې د دې مسنون عمل لپاره ویدېدل ضروري نه دي یوازي پرېوتل کفایت کوي. (زاد المعاد)

له انس ﷺ څخه روایت دی چې صحابه کرامو ﷺ لومړی د جمعې لمونځ کاوه بیا قیلوله. (بخاري)

له خواط بن جبیر څخه روایت دی چې د ورځې شروع کېدو پر مهال خوب بې عقلي او غرمه مهال عادت او د ورځې ختمېدو پر مهال حماقت دی. (بخاري)

مطلب دا چي که له شپې پرته بل وخت خوب غلبه وي نو د غرمې قيلوله صحيح ده خو د سهار او ماښام خوب حماقت، بې عقلي او ناداني ده. يا په دې وخت کي خوب دا عادات پيدا کوي. (الادب المفرد)

د ماپښين تر جماعت وروسته دي، بيا د خپل ژوند په مصروفياتو بوخت شي او د مازيگر لمانځه ته دي ډېر پام کوي ځکه په قرآن کي يې ځانګړى امر شوى دى. (حافظوا على الصلوة و الصلوة الوسطى) له وسطى لمانځه څخه مراد مازيگر دى او رسول الله ﷺ پرې ډېر ټينګار کړى دى.

(بهشتي زيور)

## دشپې سنتونه

### د اوابين لمونځ :-

د ماښام تر لمانځه وروسته لږ تر لږه شپږ رکعته لمونځ په دوه- دوه رکعته کېږي او ډېره اندازه يې شل رکعته دي، د دې لمنځونو ثواب د دوولسو کلونو له نفلونو سره برابر دى.

(الدر المختار، سنن ابى داوؤ، مشکوة، بيهقي)

### د ماخوستن لمونځ :-

بيا دي پر خپل وخت د ماخوستن لمونځ په جماعت سره وکړي، د ماخوستن تر فرضو وړاندې څلور رکعته سنت دي. (بدايع)

د ماخوستن تر دوو سنتو وروسته دي د دوو رکعتونو پر ځاى څلور رکعته نفل وکړي نو د شب قدر په اندازه ثواب ورکول کېږي. (الترغيب)

څوک چي تهجد ته نه شي را پورته کېدای نو په دې څلورو رکعتونو کي دي د تهجد نيت وکړي چي په تهجد کي به وشمېرل شي، که تهجد ته را پورته شي نو هماغه وخت دي تهجد وکړي که نه څلور رکعتونه کفايت کوي. (بهشتي زيور، الترغيب)

تر وتر وروسته دوه رکعته نفل کېږي، غوره داده چي دواړه ځايونه يعني تر وتر وړاندي په څلورو رکعتونو او تر وتر وروسته په دوو رکعتونو کي د تهجد نيت وکړي چي ان شاء الله د تهجد له ثواب څخه به برخې نه شي.

## د تهجد لمونځ:-

په حديث کي دي چي تر فرض لمانځه وروسته تر ټولو غوره لمونځ د شپې په اخير کي د تهجد لمونځ دی.

## د تهجد غوره وخت:-

د شپې په وروستی برخه کي لږ تر لږه دوه رکعته او زيات يې دوولس رکعتونه دي. (بخاري، موطا امام مالک)

که څوک په شپه کي د تهجد وس نه لري نو تر ماخوستن وروسته دي څو رکعته وکړي مگر ثواب يې کم دی، له فرض لمانځه پرته د نورو لمنځونو کول په کور کي غوره دي ځکه نو د تهجد لمونځ په کور کي ښه دی. د شپې دوه رکعتيز لمونځ غوره دی ځکه نو بايد تهجد دوه - دوه رکعته وشي. (حصن حصين، بهشتي زيور)

**کور ته د تلو - راتلو سنتونه او دعاوې:-**

څوک چې خپل کور ته راشي نو د دې دعا په لوستلو دي کورنيانو ته سلام وکړي: اللهم انى اسئلک خيرا مولج و خير المخرج بسم الله ولجنا و بسم الله خرجنا و على الله ربنا توكلنا. (حصن حصين)

اې الله! زه له تا ښه وتل او ښه ننوتل غواړم، موږ د الله د نوم په اخيستلو ننوتلو او پر الله مو توکل کړی دی.

د بيهقي په روايت کې دي چې کور ته په سلام ځئ او راځئ، ځينو علماوو ويلي چې که هغه وخت په کور کې څوک نه وي نو داسې سلام دي وکړي: السلام علينا و على عباد الله الصالحين خو نيت دي يې د فرشتو وي. (حصن حصين)

کور ته د ننوتلو پر وخت دي يو نه يو ذکر کوي او منقولې دعاوې دي وايي، د ورتلو پر مهال چې هر څوک موجود وي که څه هم ميرمن يې وي سلام وراچول سنت دي. (ابوداود)

که په کور کې د يو چا د نه پردې وېره وي نو د خبر په ورکولو دي ور داخل شي. (مشکوة)

کورنيان دي په تهوخي، د پښو په اواز او يا بل شي خبر کړي. (نسايي)

فايده:-

ځيني وختونه د سړي خور، مور او يا لور په داسې حالت کې وي چې په ناڅاپي ورتلو هغوی شرمېږي نو ځکه بايد تهوخی وکړای شي.

(ادب المفرد)

د ماخوستن تر لمانځه وړاندي دي خوب نه کوي هسي نه چي د ماخوستن لمونځ تري قضا شي. (مشكوة)

د ماخوستن تر لمانځه وروسته خبري مكروه تنزيهي دي، البته له مېرمني او ماشومانو سره د نصيحت خبري او د ميني كيسي سنت دي. (شمايل ترمذي)

كه د شپي تياره وي او رڼا نه وي نو هم دي مسجد ته په تلو د جماعت لمونځ ادا كړي چي دا ډېر ثواب او فضيلت لري. (ابن ماجه)

هر فرض لمونځ په اول تكبير سره كول سنت دي. (الترغيب)

څوک چي څلوېښت شپي د ماخوستن لمونځ د جماعت په لومړي تكبير ادا كړي نو له دوزخ څخه نجات ورته ليكل كېږي. (ابن ماجه)

**د شپي ساتنه:-**

له جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وويل: د شپې د كيسو مجلس ته مه ورځئ ځكه په تاسو كي هيڅوک خبر نه دی چي دا مهال الله خپل كوم مخلوق چيري - چيري خپور كړی دی ځكه نو دروازې وتړئ، د ژويو خولې بندې كړئ، لوښي پټ كړئ او څراغونه مړه كړئ؟.
(بخاري، الادب المفرد)

له جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وويل: كه په شپه كي د سپي غپا او د خره انكارې واورئ نو له مردود شيطان څخه د الله پناه غواړئ ځكه سبي او خره هغه څه ويني چي تاسو يې نه وينئ او د شپې چي كله خلک په كوڅو كي تګ - راتګ بند كړئ او لارې وتړل شي نو له كورو څخه كم وزئ ځكه د شپې چي الله خپل كوم مخلوق وغواړي خپروي يې. (مشكوة)

## ماښام او د شپې احتیاط :-

له جابر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: ماښام خپل واړه ماشومان په کوڅو کې له ګرځېدو را وګرزوئ ځکه په دې وخت کې شیطاني لښکرې خپرېږي کله چې د شپې یوه برخه تېره شي نو بیا یې پرېښودل پروا نه لري، په شپه کې دروازې د الله په نوم بندوئ ځکه شیطان د هغې دروازې د خلاصېدو وس نه لري چې د الله په نوم بنده شوې وي. له اوبو د ډکو ژیانو خولې د الله په نوم بندې کړئ، د خپلو لوښو سرونه پټ کړئ او د پټېدو پر وخت یې د الله نوم ونه واخلئ، که څه هم پر لوښي یو شی په ساره کښېږدئ یعني که پوره لوښی نه شي پټولای نو د کراهت او ضرر د دفعې لپاره دومره کافي ده چې د خپل لوښي پر ساره یوه لکړه یا یو شی کښېږدئ او خپل څراغونه مړه کوئ. (صحیحین)

## د بسترې پاکول :-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که څوک پر خپله بستره د ویدېدو اراده کوي نو باید د خپل لنګ په یوه برخه یې وڅنډئ ځکه معلومه نه ده چې څه شی ورباندې لوېدلی وي بیا دې پر راسته اړخ پرېوزي او دا دعا دې ووایي: باسمک ربی وضعت جنبی فان احتبست نفسي فارحمها و ان ارسلتها فاحفظ بما تحفظ به الصالحین او قال عبادک الصالحین.
ستا په نوم پر خپل اړخ پرېوتم، نو که دې زما روح بند کړ رحم پرې وکړه او که دې بیرته را پرېښود نو داسې یې وساته لکه ته چې خپل نېک بندګان ساتې.
(مشکوة، الادب المفرد)

## بیلابیل سنتونه:-

د ویدېدو لپاره دي بیا مسواک ووهي. (مشکوٰة)

تر ویدېدو وړاندي دي د دواړو لاسونو پر ورغوو یو ځای بسم الله الرحمن الرحیم ووایي، بیا دي قل هو الله ووایي، بیا دي د بسم الله په ویلو قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ووایي، پر دواړو لاسونو دي چوف کړي، له سره تر پښو دي پر ځان را کاږي، اول دي د مخ له خوا تر پښو پوري اُو بیا دي د شا پر خوا تېر کړي، دا کار دي درې ځله وکړي ځکه د رسول الله ﷺ معمول وو. (بخاري، ترمذي، حصن حصین)

## دشپې دعاوې:-

هغه دعاوې چي دشپې ویل کېږي:

۱) د بقرې دوه اخیري ایاتونه دي ووایي. (صحاح سته)

۲) قل هو الله دي ووایي. (بخاري، مسلم، نسايي)

۳) د قرآن کریم سل ایاتونه دي ووایي. (حاکم عن ابی هریره)

یا دي د قرآن لس ایاتونه ووایي. (حصن حصین)

۴) سورت یس دي ووایي. (ابن حبان عن جندب، حصن حصین)

## دشپې بسترې ته د تلو پر مهال:-

درې دېرش ځله دي سبحان الله، درې دېرش ځله الحمد لله، څلور دېرش ځله الله اکبر او یو ځل دي کلمه ووایي، ویده دي شي. (مشکوٰة)

د تهجد لپاره تر سر د مصلې ایښودل سنت دي. (نسايي)

د شپې تر ویده کېدو وړاندې د سورت الواقعه په تلاوت به لوږه پرې را نه شي. (الترغیب)

د رسول الله ﷺ عادت دا وو چې تر ویده کېدو وړاندې مسبحات ویل او د ده وینا وه چې په مسبحاتو کې یو داسې ایت شته چې تر زرو ایاتونو غوره دی. مسبحات سورتونه دا دي:

۱) سورت الحدید ۲) سورت الحشر ۳) سورت الصف ۴) سورت الجمعه ۵) سورت التغابن ۶) سورت الأعلی. (حصن حصین)

: تهجد د لمانځه لپاره د را پورته کېدو په نیت ویده کېدل سنت دي.

(نسایي)

له وړاندې د اوداسه د اوبو او مسواک په تیارولو ویده کېدل سنت دي.

(مسلم)

د شپې چې یې هر وخت سترګې خلاصې شي نو تر سپېده چاود وړاندې د تهجد لمونځ سنت دی. (مشکوة)

د ویده کېدو پر مهال دې درې ځله استغفار ووایي، د استغفر الله الذی لا اله الا هو الحی القیوم و اتوب الیه (ترمذي، معارف الحدیث) ویل د رسول الله ﷺ سنت دي. له طهارت سره دې ویده شي. (الترغیب)

که له پیله اودس لري نو صحیح ده او که یې نه لري نو اودس دې وکړي، که اودس نه کوي نو د ویده کېدو په نیت دې تیمم ووهی. (زاد المعاد)

**خوب:-**

کله چې یو ښه شی په خوب ووینې نو د الله شکر دې وباسي او بیان دې کړي. (بخاري، مسلم، نسایي)

له دوست پرته دي بل چا ته نه بيانوي. (بخاري، مسلم)

کله چي په خوب کي بد شی ووینی نو چپه طرف ته دي درې ځله توک کړي او درې ځله دي اعوذ بالله من الشيطان الرجيم ووايي، هیچا ته دي نه يادوي. (بخاري، مسلم، ابوداود)

بيا به هغه خوب هيڅکله تاوان ورونه رسوي. (صحاح سته)

پر کوم اړخ چي پروت وي هغه دي بدل کړي. (مسلم)

او يا دي په پورته کېدو لمونځ وکړي. (بخاري، حصن حصين)

**تتمه:-**

له پورتنيو عباداتو او طاعاتو پرته بايد د يو مسلمان ژوند له سهاره تر ماښامه په ديني او دنيوي ټولو معاملاتو کي ډېر ساده او پاک وي. مثلاً د خپلې کورنۍ او نورو قريبانو د حقوقو په ورکړه، د خپل رزق په ګټلو غم و خوښي په مراسمو، د دوستانو و ملګرو په اړيکو، شخصي حالاتو، ناسته- پاسته، خوراک- څښاک، لباس و پوښاک، جوړښت او اوصافو و اخلاقو کي ډېر پاک او د شرافت خاوند وي، سره له دې چي د ټولنې او چاپيريال د غلبې له کبله د دې شي ترلاسه کول او پوره کول ظاهرا يو څه مشکل ښکاري خو که د خپل بادار او انسانيت د احسان کوونکي پاک ژوند مطالعه شي او د هغه تقليد وشي. د تعليماتو پيروي يې وکړي نو هره خبره اسانه ښکاري، د همدې مقدسو سنتو د اتباع دويم نوم حيات طيبه دی چي تفصيل يې په پوره وضاحت سره د دې کتاب تر بېلابېلو عنوانونو لاندي بيان شوی دی.

## لارښوونه:-

د پيام ور خبره داده چي په پورتنيو ټولو عباداتو کي دي له سهاره تر ماښامه د خپلو ټولو اطاعاتو، معاملاتو، ټولنيزو چارو او اخلاقو پر مهال په ځانګړي توګه د نبوي سنتو خيال ساتي چي تفصيل يې پر خپل ځای په دې کتاب کي له وضاحت سره ذکر شوی دی. و ما علينا الا البلاغ المبين و ما توفيقي الا بالله العلی العظيم

## اووم باب ... نکاح، د نوي ماشوم زوکړه او اړوند معاملات

### نکاح ته هڅونه:-

له محمد بن سلمه ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وويل: اې مسلمانانو! نکاح کوئ ځکه زه غواړم د نړۍ د نورو قومونو په پرتله د خپل امت په ډېروالي وویاړم، اې مسلمانانو! د راهبانو په څېر تنها ژوند مه کوئ. (بيهقي)

له ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وويل: اې ځوانانو! په تاسو کي که څوک نکاح کولای شي بايد ويې کړي، ځکه په دې سره سترګې ټيټې وي او فرج خوندي کېږي او که څوک نکاح نه شي کولای بايد د شهوت د مخنيوي لپاره روژه ونيسي. (بخاري، مسلم)

### د ښځې انتخاب:-

رسول اللهﷺ ويلي: له ښځو سره د هغوی د ښکلا پر بنسټ نکاح مه کوئ، ځکه کېدای شي ښکلا يې د تباهۍ پر لاره برابره کړي، د مال او دولت

له وجې هم ورسره نکاح مه کوئ ځکه کېدای شي مال یې په سرکښي او بغاوت اخته کړي بلکې د دین پر بنسټ ورسره نکاح وکړئ او تور کې دینداري او اخلاقي مینځه تر هغې ښکلې ښځې ډېره ښه ده چې بد اخلاقه وي. (ابن ماجه)

## د نکاح پیغام:-

له ابو هریره ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: که تاسو ته داسي څوک د نکاح پیغام را ولېږي چې له دین او اخلاقو یې خوشاله او راضي یاست نو نکاح ورسره وکړئ، که دا ډول نه کوئ نو په ځمکه کې به ډېر فساد خپور شي. (ترمذي)

## د نکاح اجازه:-

رسول الله ﷺ ویلي: د ورکړل شوې ښځې نکاح دي د هغې له رایې پرته نه ترسره کېږي او د پېغلې نکاح دي د هغې له اجازې پرته نه کېږي. خلکو پوښتنه وکړه چې اې د الله رسوله! د پېغلې اجازه څه ده؟. ده وویل: خاموشي یې اجازه ده. (زاد المعاد)

## د نکاح برکت:-

عائشه ﵂ وایي چې رسول الله ﷺ وویل: تر ټولو برکتي نکاح هغه ده چې مصارف یې لږ وي. (مشکوة)

## ولور:-

د عمر ﷛ په زمانه کې خلک د عجمو له رسم او رواج څخه متاثر شول او لوی ولورونه یې ایښودل نو ده په خطبه کې د خلکو توجو را واړوله او ویې

ویل: د مسلمانانو فکر باید څه ډول وي؟. ده وویل: اې خلګو! ولورونه مه زیاتوئ، ځکه که دا دنیا د لوړ عزت شی هم وای او د الله په نظریې لویه درجه درلودای نو رسول الله ﷺ د دې ډېر حقدار وو چې لوړ ولوریې تاکلی وای مګر ترکومه ځایه چې ما ته معلومه ده رسول الله ﷺ نه په خپله نکاح کې تر دوولس اوقیې زیات مهر ټاکلی او نه یې د خپلو لوڼو په ولور کې. یوه بوډۍ مېرمن ولاړه شوه د (واتیتم احداهن قنطارا) په ویلو یې د هغه پر خبره اعتراض وکړه او عمر په دې وینا له منبره کښته شو چې (کل ناس أعلم من عمر حتی العجائز) یعني ټول خلګ ان سپین سرې ښځې تر عمره ډېرې پوه دي او بیا یې په دې مسئله کې له سختۍ لاس واخیست. (ترمذي)

## د مهر ورکولو نیت:-

رسول الله ﷺ ویلي: هر نارینه چې له یوې ښځې سره پر لږ یا ډېر مهر نکاح وکړي او په زړه کې یې د ورکړې اراده نه وي نو هغې ته یې دوکه ورکړه او که له مهر پرته مړ شو نو د الله حضور ته به په داسې حال کې ورشي چې د زنا مجرم به وي. (الترغیب و الترهیب)

## د نکاح تړل:-

د نکاح د کېدو لپاره یو شرط دا هم دی چې لږ تر لږه د دوو نارینه وو، یا یوه نر او ښځې په مخ کې به تړل کېږي، په خپلو غوږونو به نکاح او د دواړو د ایجاب او قبول الفاظ اوري نو بیا صحیح ده. (بهشتي زیور)

په شریعت کې دې ته ډېر پام شوی چې د نارینه او ښځې تر منځ باید برابري موجوده وي له دې پرته نکاح جواز نه لري. (شرح البدایه، بهشتي زیور)

د برابرتیا څو اقسام دي: ۱) په نسب کي برابرتیا ۲) اسلام ۳) دینداري ۴) شتمني ۵) په کسب یا هنر کي برابري.
(عالمګیري، بهشتي زیور)

## د نکاح لپاره د استخارې دعا:-

که څوک له یوې ښځې یا نجلۍ سره د نکاح اراده ولري نو پیغام دي چا ته نه بیانوي، د ښه او دس په کولو دي د وس په اندازه نفل وکړي، ورپسې دي د الله حمد او ثنا او بزرګي و عظمت بیان کړي او دا دعا دي ووایي:
اللهم انک تقدر و لا اقدر و تعلم و لا اعلم و انت علام الغیوب فان رأیت ان فی فلانة (دلته دي د هغې نوم واخیستل شي) خیرا في دیني و دنیای و آخرتي فاقدرها لي و ان کان غیرها خیرا منها فی دیني و اخرتي فاقدرها لي.
اې الله! ته قادر یې او زه قدرت نه لرم، ته پوهېږې او زه نه پوهېږم، ته د غیبو په حالت خبر یې که تا ته معلومه وي چي فلانۍ مېرمن (دلته دي د هغې نوم واخلي) زما لپاره د دین و دنیا او اخرت ګټه لري نو ما ته یې مقدره کړه او که له دې پرته بله زما د دین او اخرت لپاره غوره وي نو هغه را ته مقدره کړه. (مسلم، شمایل ترمذي)

## د نکاح مسنونه خطبه:-

الحمد لله نحمده و نستعینه و نستغفره و نؤمن به و نتوکل علیه و نعوذ بالله من شرور انفسنا و من سیئات اعمالنا من یهده الله فلا مضل له و من یضلله فلا هادی له و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله. ارسله بالحق بشیرا و نذیرا.

اما بعد فان خير الحديث كتاب الله و خير الهدى هدى محمد صلى الله عليه وسلم و شر الامور محدثاتها و كل بدعة ضلالة. و كل ضلالة فى النار من يطع الله ورسوله فقد رشد و من يعص الله و رسوله فانه لا يضر الا نفسه.

اما بعد اعوذ بالله من الشيطن الرجيم. يا ايها الناس اتقوا ربكم الذى خلقكم من نفس واحدة و خلق منها زوجها و بث منهما رجالا كثيرا و نساء. و اتقوا الله الذى تساءلون به و الارحام ان الله كان عليكم رقيبا.

يا ايها الذين امنوا اتقوا الله حق تقاته و لا تموتن الا و انتم مسلمون. يا ايها الذين امنوا اتقوا الله و قولوا قولا سديدا يصلح لكم اعمالكم و يغفر لكم ذنوبكم، و من يطع الله ورسوله فقد فاز فوزا عظيما. النكاح من سنتى فمن رغب عن سنتى فليس منى.

الله لره شکر دی چي موږ يې ستايو، له ده مرسته او د ګناهونو مغفرت غواړو، پر ده ايمان راوړو، پر ده توکل کوو او د خپل نفس د شرارتونو او اعمالو له بدی پناه غواړو، چا ته چي الله هدايت وکړي هيڅوک يې ګمراه کولای نه شي او څوک چي دی ګمراه کړي هيڅوک يې هدايت کولای نه شي. زه شاهدي ورکوم چي له الله پرته هيڅ معبود نه شته، هغه يو دی هيڅ شريک نه لري او شاهدي ورکوم چي محمد د الله بنده او رسول دی. الله د حق له احکامو سره ولېږه چي زېری ورکوونکی او وېروونکی دی.

امابعد، تر ټولو کلامونو غوره کلام او تر ټولو طريقو غوره طريقه د محمد ده. تر ټولو بد شی په دين کي بدعت دی، هر بدعت ګمراهي او هره

گمراهي په اور کي ده، څوک چي د الله او د هغه د رسول تابعداري وکړي هدايت به ومومي او څوک چي نافرماني وکړي ځان به تاواني کړي. بيا به يې له شيطان څخه پناه وغوښته وبه يې ويل: اې خلګو! له خپل هغه رب څخه وويرېږئ چي تاسو يې له خپل يوه نفس څخه پيدا کړاست، له ده يې د هغه مېرمن را پيدا کړه او د دواړو په وسيله يې ګڼ نارينه او ښځينه پيدا کړل، له هغه الله وويرېږئ چي په وسيله يې له يوه بل څخه غوښتنه کوئ او د خپلوۍ له پرېکړي ځان وساتئ بې شکه الله مو څارونکی دی. اې مسلمانانو! له الله په حق سره وويرېږئ او له اسلام پرته په بل حالت کي مه مرئ، اې مومنانو! له الله وويرېږئ او محکمه خبره وکړئ چي الله مو اعمال اصلاح کړي، ګناهونه مو وبخښي او په ياد ولرئ چي چا د الله او د هغه د رسول پيروي وکړه نو لويه بريا يې ومونده.

## نکاح زما سنت دی:-

چا چي زما په سنت له عمل څخه انکار وکړ له ما څخه نه دی.

(حصن حصين، شمايل ترمذي)

تر دې سنت خطبې وروسته بايد ايجاب و قبول وشي، بيا دي دواړو ته دعا وکړي او تر نکاح وروسته د خورماوو او شيريني وېشل سنت دي.

(زاد المعاد)

## تر نکاح وروسته د مبارکۍ دعا:-

نکاح کوونکو ته به رسول الله ﷺ وويل: بارک الله لکما و بارک عليکما و جمع بينکما في خيره. يعني الله دي تاسو برکتمن کړي، پر تاسو دي برکت

نازل کړي او تاسو دي پر خير سره يو ځای کړي او ويل به يې: که په تاسو کې څوک خپلې مېرمنې ته ورځي نو دا دعا دي وايي: بسم الله اللهم اجنبنا و جنبنا شيطان ما رزقتنا. د الله د نوم په اخيستلو دا کار کوه، اې الله! موږ له شيطان څخه وساته او کوم څه چې دې په روزي راکړي له هغو هم شيطان لرې کړه.

له انس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: که الله د کوم بنده په کور، مال يا اولاد کې برکت واچوي او دی ووايي: ما شاء الله لا حول و لا قوة الا بالله، الله چې څه غوښتي ده پر غوره دي، له ګناهونو ځان ساتنه او پر نېکو قوت ورکول د الله له خوا دي.

نو له مرګ پرته به بل هيڅ تکليف ونه ويني. (زاد المعاد)

په لومړۍ شپه ناوې ته ډالۍ ورکول هم سنت دي.

**وليمه:-**

د واده تر شپې وروسته په خپلو قريبانو، دوستانو او مسکينانو ته مېلمستيا يا وليمه سنت ده. (ترمذي، ابن ماجه)

د وليمې لپاره ډېرو خرچو ته اړتيا نه شته، د څو کسانو کوچنۍ مېلمستيا هم کافي ده. (بهشتي زيور)

په وليمه کې بايد د سنتو د پيروي نيت وشي، په کومه وليمه کې چې غريبان نه وي او صرف د نوم ايستلو لپاره وشي په هغې کې هيڅ خير او برکت نه شته بلکې د الهي خپګان او غوسې وړه شته.

(زاد المعاد، بهشتي زيور)

## د نکاح ځیني مسنون اعمال:-

- څوک چې وس لري د هغه لپاره نکاح سنت ده.
- بلوغ ته تر رسېدلو وروسته سمدستي نکاح سنت ده.
- تر نکاح وړاندي د مرکې ورلېږل سنت دي.
- مرکه د نجلۍ او هلک دواړو له لوري سنت ده.
- د نېک او صالح کس پلټنه سنت ده.
- پر یوه مهال د څلورو نکاحو کول جواز لري، په قرآن او حدیث ثابتې دي خو په دې شرط چې د ټولو حق ادا کړای شي.
- له کونډې سره نکاح هم سنت ده.
- د شوال په میاشت کي نکاح سنت، غوره او د برکت سبب ده.
- د جمعې د ورځې د برکت او خیر لپاره نکاح سنت ده.
- د نکاح اعلان سنت دی.
- په مسجد کي نکاح سنت ده.
- مسنونه نکاح هغه ده چې ساده وي او پکي د ځان ښودلو لپاره اسراف ونه شي.
- دومره مهر سنت دی چې تر وس وتلی نه وي او کمه اندازه یې لس درهمه ده.
- سمدستي مهر او وروسته ورکول یې دواړه جایز دي.

## د نکاح طریقه :-

ایجاب او قبول د نکاح ارکان دي په همدې سره نکاح تړل کېږي، تر نکاح وړاندې له نجلۍ څخه د ولي نکاح اخیستل سنت دي. نجلۍ ته دې ووایي چې له فلاني سړي سره په دومره ولور ستا نکاح تړل کېږي ایا خوښه دې ده؟. بیا دې ولي یا د هغه وکیل اجازه ورکړي او قاضي دې له هلک سره د هغې نکاح وتړي، هلک ته مخامخ د قاضي ناسته او خطبه ویل سنت دي.

(بهشتي زیور)

## طلاق او خلع :-

له ثوبان ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: کومه ښځه چې له علت پرته له خپل مېړه طلاق غواړي د جنت بوی پرې حرام دی.

(احمد، ترمذي، ابوداود، ابن ماجه، مشکوة)

له ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: په حلالو شیانو کې د الله په نزد تر ټولو بد شی طلاق دی. (ابوداود، مشکوة)

له معاذ بن جبل ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ما ته وویل: اې معاذه! الله چې د ځمکې پر سر څومره شیان پیدا کړي په ټولو کې مې د مینځې او مریيي ازادول خوښ دي او تر ټولو مې له طلاق څخه بد کېږي.

(دار قطني، مشکوة)

## د رسول الله ﷺ د لور فاطمې برکتمنه نکاح :-

د فاطمې ﷺ عمر پنځلس کاله وو چې د څو لويو کورنیو پیغامونه راغلل مګر رسول الله ﷺ خاموش وو، هغه مهال د علي ﷛ عمر یو ویشت کاله

وو. دی وایي چي په زړه کي مي دا غوښتنه پیدا شوه چي مرکه پرې وکړم مګر پر دې مي فکر کاوه چي دا کار به بالاخره څرنګه ترسره شي؟ له ما سره خو هیڅ هم نه شته، بالاخره مي د رسول الله ﷺ د شفقت له کبله زړه وکړاو حاضر شوم، خپله مدعا مي بیان کړه. رسول الله ﷺ ډېر خوشاله شو، سمدستي یې ومنله او پوښتنه یې وکړه: اې علي! له تا سره کوم څه هم شته؟. ما وویل: اې د الله رسوله! له یوه اس او زغرې پرته بل څه نه لرم. رسول الله ﷺ وویل: له سپاهي سره خو باید اس وي، ورشه خپله زغره وپلوره. علي ﷺ ولاړ او په نژدې څلور سوه درهمه یې خپله زغره خرڅه کړه. رسول الله ﷺ بلال ﷺ را وغوښت، یو څه خوشبویي او نور شیان یې را وغوښتل او انس ﷺ ته یې امر وکړ چي ورشه ابو بکر، عثمان، طلحه، زبیر او ځو انصار را وبوله. کله چي هغوی راغلل نو رسول الله ﷺ د نکاح خطبه وویله او د ټولو ښځو د سردارې فاطمې ﷺ نکاح په ډېر ساده ډول له علي ﷺ سره وتړل شوه. رسول الله ﷺ اعلان وکړ: شاهدان اوسئ ما د څلورو سوو سپینو زرو مثقالو په بدل کي خپله لور فاطمه علي ﷺ ته ورکړې او علي قبوله کړې ده او د دعا لپاره یې لاس پورته کړل.

رسول الله ﷺ دعا وکړه ویې ویل: اې الله! دواړه خوشاله او خوښ لرې، د دوی تر منځ برکت پیدا کړه او نېک اولادونه ورکړې. تر نکاح وروسته شیریني تقسیم شوه او دشپې یې د ام ایمن ﷺ په ملتیا په ساده ډول فاطمه ﷺ دعلي ﷺ کور ته ورولېږله د ماخوستن تر لمانځه وروسته رسول الله ﷺ په خپله ورغی او دواړو ته یې دعا وکړه. رسول الله ﷺ چي خپلې لور ته څه

ورکړل په هغو کې د سپینو زرو فایل، دوه یمني څادرونه، څلورنالی، یوه کمپله، یو بالښت، یوه کاسه، یوه مېچن، یو پلنګ، یو ژی او یو منګی وو.

(حصن حصین)

## فاطمه رضي الله عنها تر واده وروسته:—

کله چې رسول الله ﷺ له علي رضي الله عنه سره د فاطمې رضي الله عنها نکاح وتړله نو دی یې کورته ورغی او فاطمې ته یې وویل چې لږ اوبه راوړه، نو هغې د لرګي په کاسه کې یو څه اوبه راوړې. ده کاسه ترې واخیستله او یو غوړپ اوبه یې په خوله ورغړولې په کاسه کې یې واچولې او ویې ویل: را وړاندې شه. هغه مخ ته راغله ودرېده، نو ده یې پر سینه او سر اوبه وپاشلې ویې ویل: اللهم انی اعیذها بک و ذریتها من الشیطان الرجیم. بیا یې وویل: شا را وګرزوه نو هغې شا ور وګرزوله رسول الله ﷺ له هماغې دعا سره پاتې اوبه پرې وپاشلې بیا یې علي رضي الله عنه ته مخ ور واړاوه ویې ویل: اوبه راوړه. علي رضي الله عنه وایي چې زه پوه شوم دی څه غواړي نو ما هم ډکه کاسه اوبه ورته وړاندې کړې، ده وویل چې را مخکې شه زه ورغلم ده هماغه دعا وویله، د خپلې خولې اوبه یې په کاسه کې واچولې، زما پر سر او سینه یې وپاشلې بیا یې وویل: شا را وګرزوه زه د شا په ور ګرزولو ودرېدم بیا یې هماغه دعا وویله، د خپلې خولې اوبه یې په کاسه کې واچولې زما د ولیو تر منځ یې اوبه وپاشلې او وروسته یې وویل: اوس نو خپلې ناوې ته ورشه. (حصن حصین، شمایل ترمذي)

# د نوي ماشوم زوکړه

## د نوي ماشوم په غوږ کي دي اذان وشي: -

په روایت کي دي چي ماشوم دي تر زېږون وروسته ولمبوي، په راسته غوږ کي دي اذان او په چپه غوږ کي دي اقامت ور وکړي. کله چي حسنین ﷛ وزېږېد نو رسول الله ﷺ یې په غوږ کي اذان او اقامت ورکړل. (زاد المعاد، طبراني)

## تحنیک: -

له اسماء ﷝ څخه روایت دی چي کله عبدالله بن زبیر ﷛ وزېږېد نو ما د رسول الله ﷺ په غېږ کي ور کېښود، ده خورما را وغوښتله او ویې ژووله او ناوړې یې د عبدالله بن زبیر په خوله کي ور توک کړې، خورما یې د هغه په تالو ور وموښله او د خیر و برکت دعا یې ورته وکړه. (زاد المعاد)

له عائشي ﷝ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته به ماشومان راوړل کېدل، ده به یې تحنیک کاوه او هغوی ته به یې د خیر و برکت دعا کوله. (مسلم، بخاري، ترمذي)

## ښه نوم: -

پر ماشوم باید ښه نوم کښېښودل شي چي یا باید د الله تر نوم وړاندي اول د عبد له توري جوړ وي لکه عبدالله، عبد الرحمن او نور، یا د یوه رسول نوم وي او یا بل داسي نوم وي چي ښه معنا ولري.

رسول الله ﷺ ویلي: تاسو به د قیامت په ورځ په خپلو او د پلار په نومونو را بلل کېږئ څکه نو ښه نومونه انتخاب کړئ. (ابوداود)

**د ماشوم لومړنۍ زده کړه:-**

رسول اللهﷺ ویلي: کله چي ستاسو ماشوم خبرې وکړئ نو لا اله الا الله ور زده کړئ، بیا یې پروا مه کوئ چي کله مري او کله چي یې د شیدو غاښونه ووزي نو په لمانځه یې امر کړئ. (ابن السني، ترمذي، زاد المعاد)

**د ساتنې تعویذ:-**

له بد نظرۍ، هرډول افتونو، تکلیفونو او ناروغیو څخه د خوندیتوب لپاره دي دا لیکلی تعویذ ورپه غاړه کړي. اعوذ بکلمات الله التامات من شر کل شیطان و هامة ومن شر کل عین لامة، یعني زه د الله د پوره کلمو په واسطه له هر شیطان، زهري حیوان له شر او ضرر رسوونکې سترګې له شر څخه پناه غواړم.

دا کلمې دي یا په ویلو پر ماشوم دم کړي او یا دي لیکلې ورپه غاړه کړي. (حصن حصین، ترمذي)

**عقیقه:-**

رسول اللهﷺ ویلي چي که په تاسو کي څوک پر خپل اولاد عقیقه کوي نو پر ماشوم دي دوه پسونه او پر نجلۍ دي یو پسه حلال کړي او د عائشې ﷺ په صحیح روایت د هلک له خوا د دوو پسونو او د نجلۍ له خوا د یوه پسه حلالول ثابت دي. (زاد المعاد)

رسول اللهﷺ ویلي: هر ماشوم په خپله عقیقه ګرو وي، د هغه لپاره دي په اوومه ورځ قرباني وکړي سر دي وخریبي او نوم دي پرې کښېږدي.

(زاد المعاد)

مسئله:- که اوومه ورځ عقیقه ونه کړي نو هره ورځ چي يې کوي د اوومې ورځ خیال ساتل غوره دي. (بهشتي زيور)

مسئله:- له علي ﷺ څخه نقل شوی چي رسول الله ﷺ د حسن عقیقه په یوه پسه وکړه او ويې ویل: فاطمه دي د هغه سر ورو خريیي او د وېښتانو د وزن په اندازه سپين زر خیرات کړئ نو موږ يې وېښتان وتلل چي يو درهم يا تر دې يو څه کم وو. (زاد المعاد)

مسئله:- د عقیقې غوښه پخوي او که يې خامه وېشي او که مېلمستيا پرې جوړوي ټول صحيح دي.

مسئله:- د عقیقې غوښه پلار، نیکه، انا او ټولو ته ورکول صحیح دي.

مسئله:- که څوک وس نه لري او د هلک له خوا د یوه پسه عقیقه وکړي هم پروا نه لري او که يې هيڅ ونه کړي نو هم څه کیسه نه ده. (بهشتي زيور)

**ختنه یا سنتي:-**

ابن عباس ﷺ ويلي: خلګو په عمومي ډول تر هغه وخته ماشوم نه سنت کاوه چي عاقل شوی به نه وو، امام احمد بن حنبل وايي چي ابو عبدالله وويل: که اوومه ورځ ختنه وکړي نو هيڅ پروا نه لري. (زاد المعاد)

# اتم باب ... ناروغي، پوښتنه، مرګ او تر هغه وروسته چارې

## ناروغي او علاج

### هر مرض دوا لري :-

له جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: هره ناروغي دوا لري کله چي پر مرض برابره شي نو د الله په امر جوړيږي. (مسلم، مشکوة)

په سنن ابی داود کي له ابو الدرداء ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: بې شکه الله هم مرض نازل کړی او هم يې دوا، د هرې ناروغۍ لپاره يې دوا پيدا کړې له همدې کبله دوا کوئ خو له حرامو شيانو ځان ساتئ. (زاد المعاد)

### علاج ته پاملرنه او احتیاط :-

رسول الله ﷺ د مرض پر مهال په خپله هم دوا کاروله او خلګو ته يې هم د علاج سپارښتنه کوله، ده ویلي: اې د الله بندګانو! دوا کوئ ځکه الله له يوه مرض پرته د هر مرض لپاره دوا ټاکلې ده. خلګو وپوښتل چي هغه کوم مرض دی؟. ده وويل: ډېر بوډاتوب. (ترمذي، زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به خلګو ته په هوښيار طبيب د علاج او پرهيز حکم کاوه. (زاد المعاد)

ناپوه طبيب به يې له دې کاره منعه کاوه او هغه يې مريض ته د زيان رسولو مسئول باله. (زاد المعاد)

په حرامو شیانو یې له علاجه منعه کوله او ویل یې: الله ستاسو لپاره په حرامو شیانو کي شفا نه ده ایښې. (زاد المعاد)

## د ناروغ پوښتنه:-

په صحابه کرامو ﷺ کي چي به څوک ناروغ شو نو رسول الله ﷺ به یې پوښتني ته ورتلی. (زاد المعاد)

د ناروغ د پوښتني لپاره د ورځې ځانګړې کول یې عادت نه وو بلکي د شپې او ورځې په ټولو وختونو کي د اړتیا پر مهال د ناروغانو پوښتني ته ورتلی. (زاد المعاد)

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي پر ناروغ د پوښتني پر مهال شور او چیغې نه وهل او لږ کښېنستل هم سنت دي. (مشکوة)

رسول الله ﷺ به ناروغ ته ور نژدې کېده، د هغه پر سر به یې لاس ایښوده، د حالت پوښتنه به یې ترې کوله او ویل به یې چي طبیعت دي څرنګه دی؟.

(زاد المعاد)

کله چي به رسول الله ﷺ د ناروغ پوښتني ته ورغی نو د هغه پر تندي او نبض به یې لاس کښېښود، که به یې څه وغوښتل نو هغه شی یې ورته را غوښت او ویل به یې چي کوم څه ناروغ ته تاواني نه وي ورکوئ یې.

(حصن حصین)

## تسلي او خواخوږي:-

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که تاسو کله یوه ناروغ ته ورشئ نو د ژوند په اړه یې زړه خوشاله کړئ یعني د هغه د

عمر او ژوند په اړه زېرى ورکړئ. دا ډول خبرې هيڅ نه شي را ګرزولاى مګر د ده زړه خوشالېږي او همدا د پوښتنې هدف دى.

(جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ به ځيني وختونه د ناروغ پر تندي لاس کېښود، بيا به يې د هغه پر سينه او خېټه لاس تېراوه او ويل به يې: اې الله! روغ يې کړه. کله چي به ناروغ ته ورغى نو ويل به يې: هيڅ د اندېښنې خبره نه ده، الله به هر څه سم کړي. ډېر وختونه به يې ويل: ناروغي د ګناهونو کفاره ده او ترې پاک به شې. (زاد المعاد)

## د پوښتنې فضايل:-

له ثوبان ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وويل: کله چي يو څوک د خپل مومن ورور پوښتنې ته ورځي نو ګواکي تر را ستنېدو د جنت په باغ کي وي. (مسلم)

ام سلمه ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: کله چي تاسو ناروغ او يا مړه کېدونکي کس ته ورشئ نو په مخ کي يې ښه خبرې وکړئ ځکه تاسو چي څه واياست فرشتې امين ور باندي وايي. (مسلم، مشکوة)

عمر ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل: که کله تاسو د کوم ناروغ پوښتنې ته ورشئ نو دعا ترې وغواړئ ځکه د هغه دعا د فرشتو په څېر وي.

(ابن ماجه، مشکوة)

## د ناروغ دمول او هغه ته د صحت دعا: -

رسول الله ﷺ به مریض ته درې ځله دعا کوله چي دا دعا یې سعد ﷺ ته هم کړې ده، ده ویلي: اې الله! سعد تـه شفا ورکړه، اې الله! سعد تـه شفا ورکړه. (زاد المعاد)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي کله به په موږ کي څوک ناروغ شو نو ده به خپل لاس د هغه پر بدن تېراوه او دا دعا به یې ویله: اذهب البأس رب الناس الخ... اې د ټولو خلگو ربه! د ده تکلیف لرې کړه او روغ یې کړه، شفا یوازي ستا ده داسي کامله شفا چي ناروغي بېخي ختمه کړي.
(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له عائشې ﷺ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ ناروغ شو نو معوذتین به یې پر خپل ځان دمول او لاس به یې پر ټول بدن تېراوه. کله چي رسول الله ﷺ د وفات په ناروغۍ اخته شو نو معوذات ما پرې دم کړل او د ده لاس به مي پر بدن تېراوه. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

رسول الله ﷺ به د ناروغ پر تندي یا خوږ ځای خپل راسته لاس ایښوده ویل به یې: اللهم اذهب البأس رب الناس و اشف انت الشافی لا شفاء الا شفاءک شفاء لا یغادر سقما. اې د خلگو ربه! تکلیف لرې کړه او شفا ورکړه ځکه ته شفا ورکوونکی یې، ستا له شفا پرته بله هیڅ شفا نه شته، داسي شفا چي هیڅ مرض پرې نه ږدي.

دا دعا هم نقل شوې: اللهم اشفه اللهم عافیه. اې الله! شفا ورکړه او اې الله! سلامتي ورکړه.

یا به یې اووه ځله دا دعا ویله: اسئل الله العظیم رب العرش العظیم ان یشفیک. زه له الله څخه چې لوی او د ستر عرش څښتن دی ستا شفا غواړم.

که څوک د داسې ناروغ پوښتنې ته ورشي چې مرګ یې نه وي راغلی او دا دعا ووایي نو الله به یې له هغه مرض څخه روغ کړي.

(مسلم، بخاري، ترمذي، زاد المعاد، ابوداود، حصن حصین)

له عثمان بن ابی العاص ﷺ څخه روایت دی چې ده د خپل بدن په یوه برخه کې رسول الله ﷺ ته د درد شکایت وکړ نو رسول الله ﷺ ورته وویل: پر هغه ځای خپل لاس کښېږده او درې ځله بسم الله اووه ځله دا دعا ووایه: اعوذ بعزت الله و قدرته من شر ما اجد و احاذر. زه د الله په عزت او د هغه په قدرت د هغه تکلیف له شره چې زه یې مومم او ما ته یې خطره ده پناه غواړم. دی وایي چې ما همداسې وکړل نو الله مې هغه تکلیف لرې کړ. (صحیح مسلم، معارف الحدیث)

له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به پر حسن او حسین دا دعا ویله: اعیذ بکلمات الله التامة من شر کل شیطان و هامة و من شر کل عین لامة. زه تاسو ته د الله په پوره کلمو د هر شیطان، زهرجن حیوان او اغېز لرونکو سترګو له شره پناه غواړم. او ویل به یې: ستاسو نیکه ابراهیم ﷺ پر خپلو دواړو زامنو اسماعیل او اسحاق علیهما السلام دا دم کاوه. (بخاري، معارف الحدیث)

که به څوک زخمي وو، یا به دانه پر راختلې وه او یا به یې یو تکلیف درلود نو هغه یې دم کاوه، د شهادت ګوته به یې پر ځمکه کېښوده او دا دعا به یې ویله: بسم الله تربت ارضنا بریقه بعضنا یشفی سقیمنا باذن ربنا. زه د

الله په نوم برکت غواړم، دا زموږ د ځمکې خاوره ده چې د يوه لاري ورسره ګډې شوې دي څو زموږ ناروغ د رب په امر جوړ شي او پر هماغه ځای به يې ګوته تېروله. (زاد المعاد)

## د ناروغۍ دعا:-

که څوک د ناروغۍ پر مهال دا دعا څلوېښت ځله ووايي نو که مړ شو د شهيد په اندازه ثواب ورکول کېږي او که ورغېد نو ټول ګناهونه به يې وبخښل شي: لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظالمين.

او که په مرض کې دا دعا ووايي او ومري نو د دوزخ له اور څخه به وژغورل شي: لا اله الا الله الله اکبر لا اله الا الله وحده لا شريک له لا اله الا الله له الملک و له الحمد لا اله الا الله و لا حول و لا قوة الا بالله. (ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

د ناروغۍ په وخت کې دي د زړه له اخلاصه او په رښتنې جذبه دا دعا کوي. (معارف الحديث)

اللهم ارزقنی شهادتا فی سبيلک و اجعل موتی ببلد رسولک.

اې الله! ما ته ستا په لار کې شهادت راکړه او ستا د رسول په ښار کې مې وفات کړه. (حصن حصين)

په ناروغۍ کې د روغتيا پر مهال د کېدونکو اعمالو ثواب:-

له ابو موسی اشعري ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: که څوک ناروغ شي او يا په سفر ووزي او د ناروغۍ يا سفر له کبله د خپل عبادت او نورو عادات نه شي پر ځای کولای نو د الله په نزد يې هغه اعمال

داسي ليکل کېږي لکه دی چي جوړ، روغ او د اقامت په زمانه کي وو. (بخاري، معارف الحديث)

## په تکليف د درجو پور ته کېدل:-

محمد بن خالد له خپل پلار څخه روايت کوي او هغه له خپل نيکه څخه چي رسول الله ﷺ وويل: د الله له خوا يوه مومن بنده ته داسي لوړ مقام ټاکل کېږي چي دی يې په خپلو اعمالو نه شي تر لاسه کولای نو الله يې په بدني يا مالي تکليف او يا د اولاد په کوم مشکل اخته کوي او د صبر توفيق ورکوي ان تر دې چي پر سختيو او تکليفونو د صبر له امله هغه لوړ مقام ته رسېږي چي له وړاندي ورته ټاکل شوی وو.

(معارف الحديث، مسند احمد، سنن ابی داود)

## د بديو کفاره:-

له ابو سعيد خدري ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: مسلمان ته چي هر تکليف، غم او ازار رسېږي ان که ازغی ور جګ شي نو الله يې د هغو په وسيله له ګناهونو پاکوي. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## د مرګ ياد او له هغه سره شوق:-

له ابو هريره ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: اې خلکو! مرګ او هغه څه يادوئ چي د دنيا د خوندونو له منځه وړونکی دی.

(جامع ترمذي، سنن النسايي، سنن ابن ماجه، معارف الحديث)

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: مرګ د مومن تحفه ده. (شعب الايمان، معارف الحديث)

## د مرګ له غوښتنې او دعا څخه منعه :-

له انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: تاسو د کوم تکلیف او غم له وجې مه مرګ غواړئ او مه یې دعا کوئ او که څوک ښخي مجبور وي نو دا دعا دي ووایي: اللهم احیینی ما کان في الحیات خیرا لی و توفنی اذا کانت الوفات خیرا لی. اې الله! څو چي ژوند را ته غوره وي ژوند راکړه او کله چي مرګ را ته غوره شي نو مړ مي کړه.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د مرګ د اثارو پر مهال باید څه وشي؟ :-

له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: مړي ته د لا اله الا الله کلمه وایاست. (مسلم، معارف الحدیث)

له معقل بن یسار ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: پر خپلو مړو یس وایاست.

(معارف الحدیث، مسند احمد، سنن ابی داود، سنن ابن ماجه)

## د مرګ سختي :-

د مړه کېدونکي مخ دي د قبلې لور ته واړوي او په خپله هغه دي دا دعا وایي: اللهم اغفر لی و ارحمنی و الحقنی بالرفیق الاعلی، بیا دي لا اله الا الله ووایي او وروسته دي اللهم اعنی علی غمرات الموت و سکرات الموت. اې الله! ما وبخښه، پر ما رحم وکړه، پورتنیو ملګرو ته مي ورسوه، له الله پرته هیڅ معبود نه شته، اې الله! د مرګ په سختیو کي را سره مرسته وکړه.
(ترمذي)

**زکندن:-**

کله چي پر يو چا د مرګ اثار ښکاره شي يعني دواړې پښې يې سستې، پزه يې کږه او ژامې يې کښېني نو په کار ده چي پر راسته اړخ يې د قبلې لور ته پرېباسي او مستحبه ده چي د هغه په مخ کي يو نېک سړی په لوړ اواز د شهادت دا کلمه ووايي: اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له و اشهد ان محمدا عبده ورسوله او پر هغه دي د ويلو ټينګار نه کوي ځکه چي دی په تکليف اخته دی، که يې يو ځل ووايي نو کافي ده او که يې تر دې وروسته کومه خبره وکړه نو يو ځل بيا دي همدا سي تلقين وکړي. مستحبه دا ده چي د ده په خوا کي سورت يس ووايي او نېک و متقي سړی ور سره موجود وي.

(ترمذي)

کله چي يو څوک مړ شي نو له هغه سره تعلق درلودونکي کسان دي دا دعا ووايي: انا لله و انا اليه راجعون، اللهم اجرني في مصيبتي و اخلف لي خيرا منها. بې شکه موږ د الله يو او هغه ته ور ستنېږو، اې الله! ما ته په دې مصيبت کي اجر او تر دې يوه غوره بدله راکړه. کله چي يو څوک مړ شي نو د ټوکر په پټۍ دي يې ږېره له سر سره وتړي، سترګې دي په نرمي ور بندې کړي او د بندولو پر مهال دي دا دعا ووايي: بسم الله و علی ملة رسول الله اللهم يسر عليه امره و سهل عليه ما بعده و اسعده بلقائک واجعل ما خرج اليه خيرا من ما خرج عنه. د الله په نوم شروع کوم او د رسول الله پر دين، اې الله! ده ته خپل کار اسانه کړه، وروسته چي څه پرې راځي هغه يې سخت مه ګرزوه، په خپل ديدار يې مشرف کړه او کوم ځای ته چي تللی تر هغه يې ور ته غوره کړه چي ځني تللی. تر دې وروسته دي د هغه لاس او پښې سم کړي او

مستحبه داده چې کېږې ترې وباسي يو څادر ور باندي واچوي، پر چارپايي او يا لرګي يې کېښېږدي پر ځمکه دي نه پرېږدي. بيا يې خپلوان او دوستان خبر کړي چې د لمانځه ګډون کوونکي يې ډېر شي، هغه ته دعا وکړي او مستحبه داده چې پر ده کوم پور باندي وي هغه ادا کړئ، کفن او نور کارونه يې ژر خلاص کړئ او تر غسل وړاندي مړي ته نژدې قرآن ويل ممنوع دی.
(شرح التنوير، بهشتي زيور)

## پر مړي بايد ژړا او ماتم ونه شي:-

له عبدالله بن عمر ؓ څخه روايت دی چې يو ځل سعد بن عباده ؓ ناروغ شو نو رسول الله ﷺ له عبد الرحمن بن عوف، سعد بن ابی وقاص او عبدالله بن مسعود سره د هغه پوښتنې ته ورغی. کله چې ور ننووت نو هغه بې سده وو، ده وليدل چې شاوخوا خلک پرې را غونډ دي نو ده وويل: ختم شوی دی (يا د ناهيلی په ډول او يا له حاضرينو څخه د پوښتنې په توګه يې دا خبره وکړه) خلکو وويل: نه! تر اوسه لا نه دی ختم شوی. نو د دې حالت په ليدو رسول الله ﷺ ژړه غونی شو، کله چې نورو خلکو پر ده د ژړا اثار وليدل نو هغوی هم ژړا پيل کړه. ده وويل: اې خلکو! ښه واورئ او پوه شئ چې الله د سترګو پر اوښکو او د زړه پر غم سزا نه ورکوي ځکه دا د بنده په اختيار او توان کي نه دي، بيا يې ژبې ته په اشاره کولو وويل: مګر د دې پر غلطي يعني په خوله د ژړا او ماتم پر کولو سزا ورکوي، د انا لله و انا اليه راجعون او استغفار په دعا رحمت نازلوي. (صحيحين، معارف الحديث)

له ام سلمې ؓ څخه روايت دی چې د دې د مېړه ابو سلمه د مړينې پر مهال رسول الله ﷺ راغی، د هغه سترګې وازې وې ده وتړلې او ويې ويل: کله چې

روح وزي نو ديد هم ورسره ځي له همدې وجې بايد تر مرګ وروسته سترګې وتړل شي. د دې خبرې په اورېدو د هغه د کورنۍ کسانو ژړا پيل کړه او د غم و تکليف په حالت کې يې داسې خبرې وکړې چې په خپله د وی ته بنېرا وه، نو رسول الله ﷺ وويل: اې خلګو! ځان ته د خير او نېکۍ دعا وکړئ ځکه تاسو چې کوم څه وایاست ملايکې پرې امين وايي. بيا يې په خپله دا دعا وکړه: اې الله! ابو سلمه وبخښه، په هدايت موندونکو کې يې درجه لوړه کړه، د ده پر ځای يې ته د پاتې شويو کسانو ساتونکی شه، اې د نړۍ والو ربه! موږ او دی وبخښه، د ده قبر پراخ او منور کړه. (مسلم، معارف الحديث)

## پر مړي د اوښکو تويول روا دي: ـ

رسول الله ﷺ د خپل مړي لپاره د استرجاع جمله انا لله و انا اليه راجعون ويل او د الله په پرېکړه راضي کېدل مسنون بللي دي او دا خبرې د سترګو له اوښکو او د زړه له غم سره منافي نه دي، پر همدې بنسټ سره له دې چې رسول الله ﷺ په ټول مخلوق کې د الله په قضا تر هر چا راضي او د هغه پر حمد ويونکی وو خو له دې سره - سره يې د خپل زوی ابراهيم د مړينې پر مهال د مينې او شفقت له کبله وژړل او زړه يې د الله له شکر او رضا څخه ډک او ژبه يې د هغه په ذکر او حمد مشغوله وه. (زاد المعاد)

## د سترګو اوښکې او د زړه خپګان: ـ

له انس ﷺ څخه روايت دی چې موږ له رسول الله ﷺ سره د ابو يوسف کور ته ورغلو، ابو يوسف د رسول الله ﷺ د زوی ابراهيم د دايې خولې بنت المنذر مېړه وو او ابراهيم د هغه وخت له رواج سره سم د خپلې دايې په کور

کي وو. ده خپل زوی را پورته او ښکل کړ او د هغه پر بار خوګانو يې پزه کېښوده لکه د ماشومانو د نازولو پر مهال چې همداسې کېږي. تر دې وروسته يو بل ځل د ابراهيم په وروستۍ ناروغۍ کې هلته ورغلو او د ابراهيم زکندن وو، د دې حالت په ليدو د رسول الله ﷺ له سترګو اوښکې وبهيدې نو عبد الرحمن بن عوف په تعجب وويل چې اې د الله رسوله! ستا هم دا حالت دی؟. ده وويل: ابن عوفه! دا کومه بده خبره يا ناوړه حالت نه دی بلکې شفقت او خواخوږي ده، بيا يې دويم ځل په سترګو کې اوښکې راغلې نو ويې ويل: اوښکې بهېږي او زړه غمجن دی او په ژبه به هغه څه وايو چې د الله خوښ دي يعني انا لله و انا اليه راجعون او اې ابراهيمه! موږ ستا په بېلتون خپه يو. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

## د مړي مچول:-

د ډېري مينې او ګرانښت له کبله د مړي مچول روا دي، رسول الله ﷺ به ډېر ځله مړی مچاوه، ده عثمان بن مظعون مچ کړ او ويې ژړل، همدا راز ابو بکر صديق ﷺ د رسول الله ﷺ تر وفات وروسته هغه پر تندي ښکل کړ. (زاد المعاد)

## په کفن او نورو کې بيړه:-

له حصی بن وحوح څخه روايت دی چې کله طلحه بن وراء ناروغ شو نو رسول الله ﷺ يې پوښتنې ته ورغی، د هغه په ليدو رسول الله ﷺ نورو ته وويل چې ما ته داسې ښکاري چې مرګ يې راغلی که داسې وشول نو ما خبر کړئ

او په کفن و نورو چارو کي يې بيړه وکړئ ځکه د مسلمان مړي لپاره په کار نه ده چي ترډېره وخته د خپلې کورنۍ په منځ کي پروت وي.

(سنن ابی داود، معارف الحديث)

له عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي له رسول الله ﷺ مي واورېدل، ويل يې: که ستاسو کوم څوک مړ شي نو ترډېره يې په کور کي مه بندئ، قبر ته يې په رسولو او ښخولو کي له بيړې کار واخلئ، تر ښخېدو وروسته يې د سر خواته د بقرې لومړني اياتونه تر مفلحون او د پښو خواته وروستي اياتونه له امن الرسول څخه د سورت تر پايه وواياست.

(بيهقي في شعب الايمان، معارف الحديث)

## د مړي خپلوانو ته خوراک ورکول:-

رسول الله ﷺ ويلي چي د مړي خپلوانو ته خوراک ورکړئ ځکه هغوی د غم له کبله معذور دي، د خوراک پخولو انتظام نه شي کولای.

(مدارج النبوة)

له عبدالله بن جعفر رضی الله عنه څخه روايت دی چي کله د ده د پلار جعفر بن ابی طالب د شهادت خبر راغی نو رسول الله ﷺ خپلې کورنۍ ته وويل چي د هغوی لپاره خوراک تيار کړئ ځکه هغوی د دې خبر له کبله په داسي حال کي دي چي خوراک ته به توجو ونه کړای شي.

(جامع ترمذي، ابن ماجه، معارف الحديث)

د رسول الله ﷺ سنت دا هم وو چي د مړي تعزيت ته راتلونکي کسان دي د هغوی په کور کي خوراک نه کوي بلکي امر يې کړی وو چي نور کسان دي

خوراک چمتو کړي او هغوی ته دي ور ولېږي، دا کار د لوړو اخلاقو نمونه او له پاتو کسانو سره مرسته ده. (زاد المعاد)

## پر مړک صبر او د هغه ثواب:–

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: الله وايي چې کله زه د مومن بنده يو ګران روح اخلم نو هغه د ثواب په نيت صبر کوي نو له ما سره يې د ثوا ب لپاره صرف جنت دی. (بخاري، معارف الحديث)

## پر مړي وير کول:–

رسول الله ﷺ ويلي: د هيڅ مومن لپاره روا نه ده چې تر درو ورځو زيات وير وکړي البته د کونډې د وير موده څلور مياشتې او لس ورځې ده په دې موده کې دې نه رنګينه جامه اغوندي، نه دې خوشبويي لګوي او نه دې سينګار کوي. (بخاري، ترمذي)

## پاتې کسانو ته تسليت ورکول:–

رسول الله ﷺ ويلي: که څوک غم ځپلو ته تسليت ورکړي نو دومره ثواب به ورکړل شي لکه هغو غم ځپلو ته.

(جامع ترمذي، ابن ماجه، معارف الحديث)

د مړي کورنۍ ته تعزيت ورکول هم د رسول الله ﷺ سنت وو او دا هم مسنون کار دی چې د الله په پرېکړه رضا او خوښي وښودل شي، د الله حمد بيان کړي او انا لله و انا اليه راجعون ووايي، رسول الله ﷺ د مصيبت له کبله د جامو له څيرلو، نارو او بغارو، بې زارۍ ښودلو او وېښتانو له شکولو منعه کړې ده. (زاد المعاد)

رسول الله ﷺ به پر مړي د داسي شیانو احسان کاوه چي د ده لپاره به په قبر او اخرت کي ګټور وو، د هغه له قریبانو او کورنۍ سره به یې د تعزیت، پوښتني او کفن و نورو چارو کي مرسته کوله، له صحابه کرامو ﷺ سره یو ځای به یې د جنازې لمونځ ورکاوه، د هغه لپاره به یې استغفار غوښت او تر دې وروسته به له صحابه کرامو سره د ښخېدو تر ځایه تلی، د قبر سر ته په درېدو به یې دعا کوله، د ایمان پر کلمه به یې د ټینګېدو تلقین کاوه، د نکیر او منکر سوال او ځواب به یې بیاناوه، د هغه پر قبر به یې خاورې اچولې او د رحمت و مغفرت د نزول په خاطر به یې په سلام او دعا ځانګړې توجو کوله. له صحابه کرامو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د جنازې اخیري کوم لمونځ ورکړ په هغه کي څلور تکبیرونه وو چي همدا تیا کلي او مقرر شوي دي، په درود و سلام سره یې د جنازې لمونځ ختم کړ او همدا د امام ابو حنیفه مذهب دی. (مدارج النبوة)

## د مړي غسل او کفن:-

له ام عطیه انصارې ﷺ څخه روایت دی چي مونږ د رسول الله ﷺ یوې وفات شوې لور ته غسل ورکاوه، پر همدې مهال دی کور ته راغی او را ته ویې ویل: دې ته د بیرې په پاڼو کي په جوش اوبو درې، یا پنځه او یا هم تر دې زیات چي تاسو یې مناسبه وګڼئ غسل ورکړئ او په وروستي وار کافور هم ور سره یو ځای کړئ، کله چي غسل ورکړئ نو ما ته خبر را کړئ (ام عطیه وایي چي کله مو غسل ورکړ نو رسول الله ﷺ ته مو خبر ورولېږه) تر دې وروسته د ده خپل لنګ زمونږ لور ته را وغورځاوه او ویې ویل: تر ټولو اول دا ور واغونډئ او د دې حدیث په بل روایت کي دي چي ویې ویل: دې ته طاق

واري غسل ورکړئ یعني درې، پنځه، یا اووه ځله. له راسته اړخه او د اوداسه له ځایونو شروع وکړئ. (بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

## د مړي لمبولو سنت طریقه: -

پر کومه تخته چې مړي ته غسل ورکول کېږي هغه دې درې ځله په لوبانو ومینځي، مړی دې ورباندې پرېباسي، د بدن جامې دې یې وشیرې، پر عورت دې یې لنګ واچوي، د بدن جامې دې یې په ده کې شیرې او ترې لرې کړي، بیا دې یې ورو - ورو پر بدن لاس تېر کړي (کومو ځایونو ته چې په ژوند کې لاس ور وړل روا نه دي هلته تر مرګ وروسته له دستکښو پرته لاس ور وړل جواز نه لري) بیا که نجاست وي او که نه په دواړو صورتونو کې دې دستکلې په لاس کړي، په درو یا پنځو لوټو دې استنجا ور ووهي، بیا دې په اوبو ومینځي، وروسته دې اودس ور وکړي، نه دې په خوله اوبه رغړوي او نه په پزه او نه دې تر شنګلو لاس ور مینځي بلکې اول دې مخ ور ومینځي، بیا دې تر مړوندو لاسونه، بیا دې پر سر مسح ور وکړي، بیا دې درې ځله پنبه لانده کړي د هغه پر غاښو او ورېو دې ور تېر کړي او که یې د پزې په دواړو سوریو کې ور تېر کړي نو هم جواز لري (او که مړی غسل ته اړتیا ولري یا د حیض و نفاس په حالت کې مړ شوی وي نو د هغه خولې او پزې ته اوبه رسول ضروري دي، په پزه، خوله او غوږونو کې دې پنبه ور کښېږدي څو د اوداسه او لمبولو پر وخت اوبه ورنه شي) کله چې اودس ور وکړي نو سر دې په ګل خیر، صابون او یا بل پاکوونکي شي ور ومینځي او پاک دې کړي، بیا دې مړی پر چپ اړخ پرېباسي، د بېرې پاڼې دې ور واچوي، پخې شوې ګرمې اوبه دې درې ځله له سره تر پښو پرې توی کړي تر

دې چې چپ اړخ ته یې اوبه ورسېږي، بیا دې پر راسته اړخ پرېباسي او همدارنګه دې له سر څخه تر پښو درې ځله دومره اوبه پرې واچوي چې راسته اړخ ته ورسېږي، بیا دې مړي ته تکیه ورکړي، کښېنوي دې، نس ته دې یې ورو - ورو پشار ورکړي که کوم څه ترې ووتل نو هغه دې وچ کړي، او داسه او غسل ته یې تاوان نه رسېږي، تکرار ته یې ضرورت نه شته. تر دې وروسته دې بیا پر راسته اړخ پرېباسي او په کاپورو لړلې اوبه دې له سر څخه تر پښو درې ځله پرې واچوي او بیا دې ټول بدن په یوه ټوکر ورووچ او کفن دې ورکړي. (فتاوی هندیه، الدر المختار، بهشتي زیور)

که د بیرې له پاڼو سره پخې اوبه نه وي نو ساده نیمه ګرمې اوبه کافي دي، په هغه دې ومینځي او په ډېرو ایشېدلو اوبو دې غسل نه ورکوي. د لمبولو یاد شوې طریقه سنت ده او که یې څوک درې ځله دا ډول ونه لمبوي بلکې په یوه وار یې پر ټول بدن اوبه واچوي نو هم فرض ادا کېږي. (شرح امدادیه، بهشتي زیور)

کله چې مړی په کفن کې کېښودل شي نو پر سر دې عطر ور ولګوي او که نارینه وي نو پر ږیره دې هم عطر ولګوي، بیا دې پر تندي، پزه، دواړو ورغیو، ګونډو او دواړو پښو کاپور ور ومښي، ځینې کسان په کفن عطر مښي او په غوږ کې یې ور ږدي، دا د جهالت کار دی په شریعت کې چې څه راغلي تر هغه زیادت مه کوئ. (شرح هدایه)

مه یې سر ور ږمنځوئ، مه یې نوکان پرې کوئ او مه یې وېښتان غوڅوئ، هر څه همداسي پرېږدئ. (شرح هدایه)

غوره داده چي د مړي خپلوان غسل ورکړي که نه یو دیندار سړی دې یې ورکړي. (الدر المختار)

وروسته د غسل ورکوونکي لپاره هم غسل سنت دی. (بهشتي زیور)

په کفن کي باید څرنګه او څه ډول جامې وي؟:-

مړي ته کفن ورکول فرض کفایي دي او د مړي لپاره سنت کفن درې جامې دي: ۱) لنګ ۲) کمیس ۳) لفافه.

لنګ او لفافه له سر څخه تر پښو او کمیس له لستوڼو او غاړې څخه تر پښو. د ښځې لپاره پنځه جامې سنت دي ۱) کمیس ۲) لنګ ۳) سربند ۴) څادر یا لفافه ۵) سینه بند.

کمیس له اوږو تر پونډیو کېږئ، سینه بند له سینې څخه تر ګونډو یا نامه پوري، ټکری یا سربند درې لاسه اوږد، لنګ له سر څخه تر پښو پوري او لفافه یا څادر له سر څخه تر پښو پوري.

عائشه ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ ته په درو یمني جامو کي کفن ورکړل شو، په دې درو جامو کي نه کمیس وو نه لګوټه.

(بخاري، مسلم، معارف الحدیث)

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: سپینې جامې اغوندئ، دا ستاسو لپاره غوره لباس دی او په همدي کي مړي ته کفن ورکول کېږي. (سنن ابی داود، جامع ترمذي، سنن ابن ماجه، معارف الحدیث)

له علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: ګران بیه کفن مه استعمالوئ ځکه دستي له منځه ځي. (سنن ابی داود، معارف الحدیث)

تر ټولو غوره کفن سپين ټوکر دی، نوی او زوړ پروا نه لري، د نارينه وو لپاره د ورېښمو او رنګين ټوکر کفن مکروه دی او ښځو ته جايز.

(بهشتي زيور)

**د کفن ور کولو مسنونه طريقه:-**

کفن دي يو، يا درې او يا پنځه ځله په خوشبويي ومينځي، نارينه ته دي اول لفافه ورکړي، پر هغه سربېره دي لنګ او بيا دي مړی پرېباسي، کميس دي ور واغوندي، ورپسې دي په سر، ږيره او بدن خوشبويي ور وبخښي خو د زعفرانو خوشبويي دي نه ورکوي، د مړي په تندي، پزه، دواړو لاسونو، دواړو ځنګنونو او دواړو پښو دي کاپور ور ومښي، تر دې وروسته دي لنګ اول له چپه خوا، بيا له راسته خوا پرې وپېچي، بيا دي همدا رنګه لفافه اول له راسته خوا بيا له چپه خوا پرې وپېچي او کفن دي د سر او پښو له لوري په يوه پټۍ وتړي. د ښځې لپاره دي اول ټادر وغوړوي، پر هغه سربېره دي کميس خپور کړي او بيا دي مړی ور باندي کښېږدي، کميس دي ور واغوندي، وېښتان دي يې پر دوو برخو ووېشي، له دواړ خواوو دي پر کميس برسېره کښېږدي، پړونی دي يې پر سر ور وپېچي، پر دواړو اړخونو دي يې د دواړو لورو ويښتان ور پټ کړي، بيا دي پر هغه سربېره لنګ، بيا لفافه او بيا سينه بند پر سينه سربېره له بغلو څخه وباسي، د ګونډو تر کښتنې برخې دي ور باندي لو مړی چپ اړخ او بيا راسته اړخ وپېچي، بيا دي يې سينه بند وتړي او بيا دي ټادر پرې وپېچي، لو مړی چپ طرف او بيا راسته طرف، بيا دي کفن په يوه سپېنسي د سر او پښو له لوري وتړي، يو بند دي يې له ملا سره هم غوټه کړي. (فتاوی هنديه)

د کفن تر ورکړې وروسته دي پر مړي د جنازې لمونځ وکړي.

مسئله:- په کفن او یا قبر کي دننه عهد نامه یا د خپل پیر شجره او یا بله دعا ایښودل روا نه دي، همدارنګه پر کفن یا د مړي پر سینه په کاپور یا سیاهي کلمه او یا یوه دعا لیکل هم جواز نه لري. (رد المحتار)

مسئله:-

مړی چي په کوم ښار کي وفات شوی همالته دي ښخ کړي بل ځای ته یې وړل روا نه دي خو که مجبوري وي پروا نه لري. (طحطاوي)

## د مړي تر لمبولو وروسته غسل کول:-

له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل: که څوک مړي ته غسل ورکړي نو باید وروسته دی هم غسل وکړي. (ابن ماجه)

او په نورو احادیثو کي دا زیاتونه هم ده چي که څوک د مړي جنازه پورته کړي نو باید اودس وکړي. (معارف الحدیث)

## د جنازې وړلو سنت طریقه:-

د جنازې وړلو مسنونه طریقه داده چي د جنازې پورته کولو پر مهال بسم الله و وایي، څلور کسان یې څلور پښې ونیسي، پر لس - لس ګامه د هرو څلورو پایو اوږه بدله کړي، تر دې هم غوره طریقه داده چي د سر پښه اول پر ښي اوږه کښېږدي، لس ګامه وروسته د شا پښه، بیا پر لس ګامه د چپ اړخ د سر دویمه پښه، بیا لس ګامه وروسته د شا پاتي پښه پر اوږه کښېږدي په دې ډول دي هر سړی وار پر وار ځي څو د هر سړي څلوېښت ګامه پوره شي.

جنازه باید په ېیړه یو وړل شي خو دومره تېزه دي نه وي چي وښوري او جنازه باید مخ ته روانه وي. (بهشتي زیور)

له جنازې سره پیاده تګ غوره دی. (بهشتي ګوهر)

پر سپرلۍ تګ هم روا دی خو تر جنازې مخته کېدل مکروه دي.
(بهشتي زیور)

له جنازې سره روان خلک دي چوپ وي، خبرې - اترې، په لوړ اواز دعا او تلاوت مکروه دی. (بهشتي ګوهر)

په هدیره کي د جنازې تر ایښودلو وړاندي ناسته مکروه ده. (بهشتي ګوهر) غوره داده چي تر څو مړی ښخ شوی او قبر هوار شوی نه وي نو نه دي کښېني.

**له جنازې سره د تګ او لمانځه ثواب:-**

له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول اللهﷺ وویل: که څوک له ایمان او د ثواب له نېت سره د مسلمان جنازې ته ورشي او تر هغه وخته ورسره وي چي لمونځ کېږي او مړی ښخېږي نو د ثواب له دوو قراطو سره به را ستون شي چي هر قراط به یې د احد له غره سره برابر وي او څوک چي یوازې د جنازې تر لمانځه وروسته را ستون شي تر ښخېدو یې ملتیا ونه کړي نو هغه به د ثواب له داسي یوه قراط سره را ستون شي.
(بخاري، معارف الحدیث)

## له جنازې سره د بيړې او ګړندي تګ حکم:-

له ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل: جنازه په بيړه وړئ که هغه نېک وي نو قبر ورته غوره دی يعني ښه ځای دی چې هلته به يې تاسو ژر ورسوئ او که نېک نه وي نو له اوږو به مو بوج لرې شي او ژر به يې له خپلو اوږو کښته کړئ. (بخاري، مسلم، معارف الحديث)

رسول الله ﷺ به له جنازې سره په پښو تلی. (ترمذي)

او تر څو چې به جنازه له اوږو نه وه ايښودل شوې نه کښېنستی، ويل به يې: اذا اتيتم الجنازة فلا تجلسوا حتى توضع او په يوه روايت کې دي چې څو په لحد کې کښېښېنبودل شي مه کښېنئ. (مدارج النبوة)

د امام صيب په نزد تر جنازې وروسته تګ مستحب دی. اهل سننو روايت کړی چې کله به رسول الله ﷺ له جنازې سره تلی نو پياده به روان وو، ويل به يې: زه په داسې حال کې سپور نه ځم چې فرشتې پياده روانې وي، کله چې به خلاص شو نو ځينې وختونه به پياده راتلی او ځينې وختونه به سپور. (زاد المعاد)

د جنازې پر مهال به خاموش وو او له ځان سره به يې د مرګ په اړه خبرې کولې. (زاد المعاد)

## د جنازې مسايل:-

د جنازې لمونځ فرض کفايه دی، سرپرستي درلودونکي قريبان يې د امامت حق لري او يا هغه څوک چې دوی اجازه ورکړي.(بهشتي ګوهر)

د جنازې د لمانځه شرط دادی چي مړی به مخ ته پروت وي، امام به یې د سینې پر برابر دریږي او صفونه باید طاق وي. (بهشتي گوهر)

که د جنازې لمونځ کیږي او د اوداسه وخت نه وي نو د تیمم په وهلو دي لمونځ وکړي. (بهشتي گوهر)

مسئله:- که یو سړی د جنازې لمونځ وکړي نو هم فرض ادا کیږي، مړی نارینه وي او که ښځه، بالغ وي او که نا بالغ. (بهشتي گوهر)

د دې لپاره د جنازې لمونځ ځنډول چي خلک را ډېر شي مکروه دی. (بهشتي گوهر)

د جنازې په لمانځه کي دوه شیان فرض دي: ۱) څلور ځله الله اکبر ویل، هر تکبیر د یوه رکعت پر ځای بلل کیږي. ۲) په ولاړه د جنازې لمونځ کول. لکه څرنگه چي په فرضو او واجبو لمنځونو کي قیام فرض دی. (بهشتي گوهر)

د جنازې په لمانځه کي درې شیان سنت دي: ۱) د الله حمد ۲) پر رسول الله ﷺ درود ۳) د مړي لپاره دعا. (بهشتي گوهر)

د جنازې د لمانځه مسنونه او مستحبه طریقه داده چي مړی مخ ته وي او امام یې د سینې پر برابر ودریږي او که ښځه وي نو د نامه پر برابر دي ودریږي او ټول خلک دي داسي نیت وکړي: نویت ان اصلی للّٰہ تعالی صلوة الجنازة و دعاء للمیت یعني اراده مي کړې چي له څلورو تکبیرونو سره د جنازې لمونځ وکړم، د الله لپاره لمونځ او د مړي لپاره دعا ده.

(بهشتي گوهر)

## د جنازې د لمانځه طریقه:-

لومړی دي لاسونه تر غوږو پورته کړي الله اکبر دي ووایي او لاسونه دي وتړي بیا دي سبحنک اللهم و بحمدک و تبارک اسمک و تعالی جدک و جل ثناءک و لا اله غیرک ووایي. اې الله! موږ ستا پاکي بیانوو، ستا ستاینه کوو، ستا نوم برکتمن دی، لویي دي ډېره لوړه ده، ستاینه دي ډېره اوچته ده او له تا پرته هیڅ د عبادت لایق نه شته، بیا دي د الله اکبر په ویلو درود ووایي او غوره داده چې د لمانځه درود ووایي، بیا دي د لاس له پورته کولو پرته الله اکبر ووایي او دا دعا دي وکړي: اللهم اغفر لی لحیینا و میتنا و شاهدان و غایبینا. و صغیرنا و کبیرنا. وذکرنا و انثانا. اللهم من احییته منا فاحییه علی الاسلام و من توفیته منا فتوفاه علی الایمان. اې الله! زموږ ژوندي وبخښه او زموږ مړي، زموږ حاضر، غایب، کوچني، لوی، نارینه او ښځې وبخښه، اې الله! په موږ کې چې څوک ژوندي دي پر اسلام ژوند ورکړه او چې څوک مړه شوي دي پر ایمان یې مړه کړه.

د چا چې دا دعا یاده نه وي بله دعا دي ووایي، بیا دي د تکبیر په ویلو لومړی راسته اړخ او بیا چپه اړخ ته سلام ووایي، تکبیر او سلام دي یوازې امام په لوړ اواز ووایي. (بهشتي ګوهر)

که مړی کوچنی وي نو دا دعا دي ووایي: اللهم اجعله لنا فرطا و اجعله لنا اجرا و ذخرا و اجعله لنا شافعا و مشفعا. اې الله! دا ماشوم زموږ لپاره په وړاندې تلو انتظام کوونکی وګرزوه او زموږ لپاره یې اجر ذخیره، سپارښت کوونکی او سپارښت منل شوی وګرزوې او که نجلۍ وي نو داسې دي

ووايي: اللهم اجعلها لنا فرطا و اجعلها لنا اجرا و ذخرا و اجعلها لنا شافعة و مشفعة. اې الله! دا ماشومه زموږ لپاره لـه وړانـدې انتظام كـوونكې وګرزوه، زموږ لپاره يې اجر ذخيره، سپارښت كوونكې او سپارښت منل شوې وګرزوه.

**د جنازې په لمانځه كې د ګڼ شمېر خلكو بركت او ارزښت:-**

له عائشې ﷺ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ ووېل: كه پر يوه مړي د مسلمانانو داسې لويـه ډلـه لمونځ وكړي چې شمېر يې تر سلو رسېږي او هغوى ټول د الله په حضور كې د مړي سپارښتنه وكړي يعني د مغفرت او رحمت دعا وغواړي نو د دوى سپارښتنه او دعا به حتما قبول شي.

(مسلم، معارف الحديث)

لـه مالک بن ميسره ﷺ څخه روايت دى چې ما لـه رسول الله ﷺ څخه واورېدل وېـې ويـل: كـه كـوم مسلمان ومري او درې صفه مسلمانان يې د جنازې لمونځ وكړي او د هغـه لپاره د مغفرت و جنت دعا وغواړي نو الله حتما د هغوى په وسيله د ده لپاره جنت واجبوي. د مالک بن ميسره عادت دا وو چې كله به د جنازې د لمونځ كوونكو شمېر كم وو نو د دې حديث له كبله به يې خلک پر درو صفونو وېشل. (سنن ابى داود)

**د قبر نوعيت:-**

قبر دې لږ تر لږه د مړي د نيمايي قد په اندازه ژور شي، تر دې بايد زيات نه وي او د هغه له قد سره دې برابر وي چې جګه و نه لري، بغلي قبر تر منځني ښه دى خو كه ځمكه نرمه وي او د بغلي قبر د كېښنستلو اندېښنه وي نو بيا دې بغلي قبر نه كاږي. (الدر المختار، مدارج النبوة)

دا هم روا ده چي که ځمکه نرمه وي او بغلي قبر نه ايستل کېږي نو مړی په تابوت کي ښخ کړئ، د لرګي تابوت وي او که د اوسپينې، غوره دا ده چي په تابوت کي خاورې خپرې کړي. (الدر المختار)

په پخو خښتو او يا د لرګي په تختو د قبر بندول مکروه دي البته که کوم ځای ځمکه نرمه وي او قبر نړېږي نو بيا يې په پخو خښتو او يا لرګيو بندولای شي او په صندوق کي ايښودل يې هم روا دي. (بهشتي ګوهر)

رسول الله ﷺ نه قبرونه لوړول او نه يې په خښتو، ډبرو او نورو پخول. په سخته خاوره يې هم نه جوړول، پر قبر يې ودانۍ او ګنبده نه ودانول، دا هر څه بدعت او مکروه دي. د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو قبرونه هم له ځمکې سره برابر او سرې شګې پرې اچول شوې دي. (مدارج النبوة، سفر السعادة)

د سعد بن ابی وقاص ﷺ زوی عامر روايت کوي چي د ده پلار سعد بن ابی وقاص د خپلې مړينې په مرض کي وصيت وکړ چي زما لپاره دي بغلي قبل وکيندل شي او د بندولو لپاره دي يې هغه ډول خامې خښتې ودرول شي لکه د رسول الله ﷺ په قبر کي چي درول شوې وې. (معارف الحديث)

## د مړي ښخول:-

د مړي ښخول فرض کفايي دي، د مړي قبر دي لږ تر لږه د هغه د قد نيمايي وکيندل شي خو تر قد دي زيات نه وي، مړی دي اول د قبر د قبلې له اړخ څخه ور کښته کړي.

## لحد ته د ور کښته کولو پر مهال دي ووايي:-

بسم الله و علی ملة رسول الله، بیا دي مړی پر راسته اړخ مخامخ قبلې ته پرېباسي او د کفن غوټې دي خلاصې کړي، بیا دي قبر په تختو او یا بل شي بند کړي. ورپسې دي د سر له خوا خاورې پرې ورتوی کړي، هر سړی دي درې ځله یو موټ خاوره ورواچوي. د لومړي موټ پر مهال دي ووايي: منها خلقناکم، دویم ځل دي ووايي: و فیها نعیدکم او درېیم ځل دي ووايي: و منها نخرجکم تارة اخری. بیا دي قبر د اوښ د کومې په اندازه لوړ کړي، او به دي پرې وپاشي، د قبر سر ته دي د سورت البقرې لومړي ایاتونه تر مفلحون او بیا دي یې د پښو طرف ته د سورت البقرې ایاتونه له امن الرسول څخه تر پایه ووايي او قبر ته مخامخ د لاس په پورته کولو دعا غوښتل روا دي. (بهشتي ګوهر)

قبر ته د ښځې کښته کولو پر مهال پرده کول مستحب دي. (بهشتي ګوهر)

تر خاورو اچولو وروسته پر قبر او به پاشل مستحب دي.

(در مختار، شامي)

تر ښخولو وروسته یو څه وخت تمېدل او د مړي لپاره دعا کول، د قرآن د تلاوت ثواب ور بخښل سنت دي. (در مختار، شامي، عالمګیري)

تر یوه لوېشت د قبر زیات لوړول مکروه تحریمي دي.

(در مختار، شامي، بحر)

پر قبر د یاداشت لپاره یې یو شی ایښودل روا دي په دې شرط چې اړتیا وي که نه جواز نه لري. (در مختار، شامي)

د رسول الله ﷺ سنت دا وو چې لحد یې کیښ، قبر یې ور ژور کاوه او د مړي د سر و پښو ځایونه یې ور پراخول. په صحیح حدیث کې دي چې کله یې

عثمان بن مظعون ښخ کړ نو یوه لویه ډبره یې را واخیسته او د هغه پر قبر یې کېښوده. (مدارج النبوة)

**تر ښخولو وروسته:-**

کله چې به رسول الله ﷺ د مړي له ښخولو خلاص شو نو په خپله به یې هم استغفار غوښت، نورو ته به یې هم ویل چې د خپل ورور لپاره استغفار وغواړي او د ثابت قدم پاتېدو دعا وکړي چې الله یې د نکیر او منکر په ځواب کې ټینګ کړي. (ابوداود)

په صحیح حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ د خپل زوی ابراهیم پر قبر اوبه وپاشلې او یو څو شګې یې ورباندې واچولې. (زاد المعاد)

**پر قبر له ختلو او ناستې څخه منعه:-**

په حدیث کې دي چې پر قبرو له ختلو او ناستې څخه منعه شوې ده.

**د سنت خلاف کارونه:-**

دا د رسول الله ﷺ سنت نه دی چې قبر ډېر لوړ کړي، په پخو خښتو، ډبرو او خامو خښتو یې پخول او ګلول هم سنت نه دي او پر قبر ګنبده جوړول هم د سنت خلاف کار دی. (زاد المعاد)

پر قبر د څراغونو لګول ممنوع دي او قبرونو ته مخامخ لمونځ مکروه دی. (مدارج النبوة)

**غایبانه لمونځ:-**

رسول الله ﷺ غایبانه جنازه نه کوله مګر دا سمه ده چې د حبشې پاچا او معاویه اللیثي ته یې د غایبانه جنازې لمونځ ورکړ (مګر د هغوی مړي رسول

الله ﷺ ته ښکاره شوي وو ) او دا د رسول الله ﷺ خصوصيت وو. امام ابو حنيفه او امام مالک د جنازې غايبانه لمونځ مطلقا ممنوع بولي.
(مدارج النبوة)

د احنافو امامان پې پر نه جواز متفق دي، مړي ته دويم لمونځ ورکول جواز نه لري خو که يې کوم ولي راشي نو هغه حق لري او د ده حق څوک له منځه نه شي وړلای، د لمونځ کوونکو مخته د جنازې موجوديت يې د صحت لپاره شرط دی. (مدارج النبوة)

**د قبرونو زيارت:-**

د قبرونو زيارت يعني د عبرت او پند اخيستلو لپاره د هغو ليدل د نارينه وو لپاره مستحب دي، غوره داده چې په هفته کي لږ تر لږه يو ځل د قبرونو زيارت وشي او تر دې لا افضله داده چې د جمعې ورځ وي. د بزرگانو د قبر ليدلو لپاره سفر هم روا دی، خو په دې شرط چې د عقيدې او شريعت خلاف عمل نه وي لکه د نن سبا په عرسونو کي چې دا ډول مفسدات ترسره کېږي. (بهشتي زيور)

ځيني وختونه د قبرونو زيارت مستحب دی او کله - کله د برات په شپه هديرې ته تگ هم ثابت دی. هديرې ته په ورتلو دي داسي ووايي: السلام عليکم يا اهل القبور يغفر الله لنا و لکم انتم لنا سلف و نحن بالاثر. بيا چي څه ويلای شي ودي لولي او ثواب دي يې ور وبخښي لکه الحمد لله، يس، تبارک الذی، الهکم التکاثر او قل هو الله يوولس يا اووه ځله يا څومره چي ورته اسانه وي هغومره دي يې ولولي او ودي وايي چي اې الله! ثواب يې د قبر خاوند ته ور ورسوه. (بهشتي گوهر)

د رسول الله ﷺ عادت دا وو چې مړیو ته به یې د استغفار او ترحم د دعا غوښتلو لپاره زیارت کاوه، په همدې موخه چې کوم زیارت ترسره کېږي او بدعت و مکروه کار ونه شي نو هغه زیارت مسنون او مستحب دی. (مدارج النبوة)

له عبدالله بن مسعود ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل: تاسو مې د قبرونو له زیارت څخه منعه کړي واست اوس اجازه درکوم چې د قبرونو زیارت ته ورځئ ځکه ګټه یې داده چې له دنیا سره مو مینه کمېږي او د اخرت یاد و فکر پیدا کېږي. (سنن ابن ماجه)

له عبدالله بن عباس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د مدینې پر ځینو قبرونو ورغی او هغوی ته یې په مخ کولو وویل: السلام علیکم یا اهل القبور یغفر الله لنا و لکم انت لنا سلف و نحن بالاثر. اې د قبر خاوندانو! سلام، الله دې موږ او تاسو وبخښي، تاسو پر موږ مخته یاست او موږ له شا درپسې یو. (جامع ترمذي، معارف الحدیث)

**تعزیت:-**

په کوم کور کې چې غم وي نو هلته له درو ورځو یوه ورځ د تعزیت لپاره ور تلل مستحب دي او خپلوانو ته یې صبر و تسلي ورکول سنت دي. همدارنګه دي ووایي چې الله دې مړی وبخښي، د هغه ګناهونه دې معارف کړي، خپل رحمت دې پرې نازل کړي او خپلوانو و کورنۍ ته دې یې نېک صبر ورکړي. د ګاونډیانو او خپلوانو لپاره د مړي کورنۍ ته د یوه یا دوو وختونو خوراک ورکول هم سنت دي. (بهشتي زیور)

## د ثواب بخښل: ـ

د سلفو صالحینو له طریقې سره سم دي ثواب ور وبخښي هغه داسې چې هیڅ قید او معلومه ورځ دي نه وي، د خپل وس په اندازه دي له حلال مال څخه د مسکینانو پټه مرسته وکړي او که څومره وس یې وي له ځان سره دي قرآن ووایي او ثواب دي ور وبخښي. په هدیره کې تر ښخولو وړاندي دي د بې ځایه خبرو او پر خرافاتو د وخت تېرولو پر ځای کلمه ووایي او ثواب دي یې ور وبخښي. (بهشتي زیور)

## مړیو ته د ثواب بخښل: ـ

د یو چا تر مرګ وروسته د مغفرت او رحمت دعا او د جنازې لمونځ کول سنت اعمال دي. له دې پرته د ګټې رسولو دویمه طریقه داده چې د مړي له خوا صدقه وکړي او یا دي د خیر د کار ثواب ور وبخښي، هغه ته د ثواب بخښنې درجه ورکول کېږي په دې اړه لاندي احادیثو ته پام وکړئ. له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې د سعد بن عباده مور په داسې وخت کې مړه شوه چې سعد موجود نه وو، له رسول الله ﷺ سره غزا ته تللی وو کله چې را ستون شو نو رسول الله ﷺ ته راغی ویې ویل: اې د الله رسوله! زما په نه شتون کې مې مور وفات شوې که زه د هغې له لوري خیرات وکړم نو ایا ګټه به ورته وکړي او ثواب به یې ور ورسېږي؟. ده وویل: هو! ور رسېږي. هغه وویل: زه تا شاهد ګرزوم چې د مخراب خپل باغ مې د خپلې مرحومې مور لپاره خیرات کړی دی. (بخاري، معارف الحدیث)

**د معاذ بن جبل د زوی پر مړینه هغه ته د رسول الله ﷺ له خوا د تعزیت لیک: -**

ژباړه: د الله په نوم چې ډېر رحمت کوونکی او مهربان دی، د الله د رسول محمد له لوري د معاذ بن جبل په نوم. پر تا دې سلامتي وي، زه ستاسو په مخ کې د الله ستاینه کوم چې له ده پرته هیڅ معبود نه شته، تر حمد و ثنا وروسته دې الله تاسو ته لوی اجر او د صبر توفیق درکړي، موږ و تاسې ته دې د شکر ایستل را په برخه کړي ځکه چې بې شکه زموږ ځانونه، مالونه، اهل و عیال او زموږ اولادونه د ستر الله خوشالوونکې ډالۍ دي او د امانت په توګه یې راکړې دي چې له هغو څخه تر ټاکلې مودې د ګټې اخیستلو وخت را کول کېږي او په ټاکلي وخت کې یې بیرته اخلي نو زموږ مسئولیت دی چې کله یې راکړي د هغه شکر وباسو او چې کله مو وازمویي او را څخه وایې خلي نو صبر و کړو، ستا زوی هم د الله له غوره نعمتونو او ورکړیو امانتونو څخه یو وو. الله تا ته له دې خوشالوونکې ډالۍ څخه د ګټې اخیستلو فرصت درکړ او اوس یې د لوی اجر، رحمت، مغفرت او هدایت په بدله کې در څخه واخیست په دې شرط چې ته صبر وکړې، له همدې وجې صبر کوه او شکر ادا کوه، ستا فریاد او ژړا دې باید اجر ضایع نه کړي چې بیا به پښېمانه یې او خبردار اوسه چې ژړا او فریاد نه هیڅ راګرزوي او نه غم و تکلیف لرې کوي، څه چې کېدونکي وي هغه به کېږي او څه چې شوي هغه شوي دي، پر تا دې سلامتي وي. فقط (ترمذي، حصن حصین، معارف الحدیث)

## درود:-

عن علی کرم الله وجهه فی الصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم ان الله و ملائکته یصلون علی النبی یا ایها الذین امنوا صلوا علیه و سلموا تسلیما لبیک اللهم ربی و سعدیک صلوات الله البر الرحیم و الملائکة المقربین و النبیین و الصدیقین و الشهداء و الصالحین و ما سبح لکمن شیء یا رب العالمین علی محمد بن عبدالله خاتم النبیین و سید المرسلین و امام المتقین و رسول رب العالمین الشاهد النذیر البشیر الداعی الیک باذنک السراج المنیر و علیه السلام.

له علي ﷺ څخه روایت دی چي ده پر رسول الله ﷺ داسي درود وایه (لومړی یې د سورت الاحزاب هغه ایت تلاوت کړ چي پکي پر رسول الله ﷺ د درود امر شوی دی) بیا یې وویل: اې الله! زه ستا فرمان پر سر او سترګو عملي کوم او وایم چي د ستر احسان کوونکي او مهربان الله له لوري دي پر محمد بن عبدالله خاتم النبیین سید المرسلین، امام المتقین او رسول رب العالمین ځانګړې پېرزوینې او لورینې وي، همدا رنګه د نږدې ملایکو، انبیاوو، صدیقینو، شهداوو او صالحینو له خوا، دی د الله له خوا شاهدي ورکوونکی دی، د الله فرمان منونکو بندګانو ته د رحمت او جنت زېری ورکوونکی دی، ستا بندګان ستا په حکم ستا لور ته دربولي، ستا ځلانده ډیوه ده او پر ده دي سلام وي.

**نعت:-**

محمد سید الکونین و الثقلین
والفریقین من عرب و من عجم
فانسب الی ذاته ما شئت من شرف
وانسب الی قدره ما شئت من عظم
فان فضل رسول الله لیس له
حد فیعرب عنه ناطق بفم
فمبلغ العلم فیه انه بشر
وانه خیر خلق الله کلهم
یا رب صل وسلم دائما ابدا
علی حبیبک خیر الخلق کلهم
ومن تکن برسول الله نصرته
ان تلقه الاسد فی اجامها تجم

(قصیده برده)

ترجمه:- د کونینو او ثقلینو سردار او عرب و عجم رهنما محمد و شخصیت ته هغه شرف منسوب کړه چې تا څومره لوی شرف ټاکلی دی ځکه د رسول الله ﷺ فضل حد نه لري چې یو بیانوونکی یې په خوله بیان کړي، د علم وس همدومره ده چې دی بشر دی، د الله په ټول مخلوق کي غوره دی، اې ربه! تل دي ستا پر حبیب او د ټولو خلګو پر غوره شخصیت صلوة او سلام وي او د رسول الله ﷺ په وسیله چې له چا سره مرسته وشي نو که په ځپلو جونګړو کې د زمریانو له ډلې سره مخ شي نو هم به یې امر و مني.

**مناجات:-**

یا الله یا رحمن یا رحیم یا حي یا قیوم برحمتک نستغیث.

اې الله! دا صرف ستا لوی فضل او عام کرم دی چې دې عاجز، ناتوان او بې عمله و عمله بنده ته دې له ولولو ډک شوق ورکړ چې د خپل نبي د خصائلو او شمایلو سپېڅلي احادیث یې د ژوند تر بېلابېلو عنوانو لاندې را غونډ کړل او د هغو د ترتیب توان و نېکمرغي یې ومونده. اللهم لک الحمد ولک الشکر لا احصی ثناء علیک انت کما اثنیت علی نفسک حمدا کثیرا طیبا

اې الله! د خپل لطف، احسان او بنده نازونې له مخې دا ناچیزه لیکنه په خپل پالونکي دربار او د خپل محبوب او نامدار اقا د کرم په نظر کې مقبوله وګرزوې او په دواړو جهانونو کې سرلوړي راکړې. ربنا تقبل منا انک انت السمیع العلیم

او اې الله! ما چې د کومو سپېڅلو شخصیتونو له مبارکو لیکنو څخه استفاده کړې تل د هغوی پر پاکو روحونو خپل خاص رحمتونه نازل کړه او په خپلو مقاماتو کې پر له پسې د قرب او رضا د درجو ترقي ورکړه او د دوی علمي و دیني فیوض و برکات تر قیامته قایم او دایم ولره. آمین

اې الله! د دې کتاب لوستونکي هم د هغه له ټولو علمي او عملي ګټو برخمن کړه، د رسول الله ﷺ د اطاعت او اسوه رسول د اتباع پوره توفیق ورکړه. آمین

اې الله! د دې کتاب په معامله کې چې له ما سره کومو مخلصو دوستانو مرسته کړې ټولو ته په دواړو جهانونو کې لوی اجر ورکړه. آمین

اې الله! دا د خير کار زموږ ټولو لپاره د همېشني خيرات وسيله وګرزوه او اې الله! زموږ د کورنۍ، اهل و عيال، قريبانو و خپلوانو لپاره يې په اخرت کې د نجات سرمايه کړه. آمين يا رب العالمين بحق رحمة للعالمين شفيع المذنبين صلى الله عليه و آله و اصحابه و سلم تسليما کثيرا

اې الله! زموږ دا مناجات قبول کړه، اې الله! ته لطيف او خبير يې دعاوې قبلوې او حاجتونه پوره کوې، عفو، کريم، رحمان او رحيم يې. سبحان الملک القدوس. سبحان الله و بحمده سبحان الله العظيم.

اللهم اجعل صلواتک و رحمتک و برکاتک على سيد المرسلين و امام المتقين و خاتم النبيين محمد عبدک و رسولک امام الخير و قائد الخير و رسول الرحمة اللهم ابعثه مقاما محمودا يغبط به الاولون و الاخرون

(ابن ماجه)

بنده عاجز و بې نوا

محمد عبد الحی عفی عنه

# ماخذونه

۱) قرآن مجید
۲) صحیح البخاري
۳) شمایل ترمذي
۴) خصائل نبوي
۵) مشکوة شریف
۶) جامع ترمذي
۷) حصن حصین
۸) الادب المفرد
۹) مدارج النبوة
۱۰) کتاب الشفا
۱۱) زاد المعاد
۱۲) طبقات ابن سعد
۱۳) سیرت النبیﷺ
۱۴) تفسیر بیان القرآن
۱۵) نشر الطیب
۱۶) زاد السعید
۱۷) حیات المسلمین
۱۸) بهشتي زیور
۱۹) بهشتي گوهر
۲۰) کثرة الازواج
۲۱) معارف الحدیث
۲۲) ترجمان السنة

